# تفسیر ایوبی حنفی

تالیف

ملا متبحر وحید الدہر ابو الفضل مولانا محمد عبد الشہید الایوبی
القندھاری العیلا خیلی الحنفی النقشبندی عفی عنہ

ناشر
مکتبۃ القراءۃ والتجوید
کانسی روڈ مشا الدین کوئٹہ

بسم الله الرحمن الرحيم

په پښتو ژبه کښې اولنی او په افغاني تاریخ کښې بې سارې په
زرګونو جدیدو مسئلو باندې مشتمل

# تفسیر ایوبي حنفي

اوولسم ټوک ۱۷

قَالَ فَمَا خَطْبُكُمْ (۲۷) قَدْ سَمِعَ اللّٰهُ (۲۸)

تالیف او تصنیف

د علامة العصر ابو الفضل شیخ التفسیر والحدیث فقیه دوران مفسر الزمان

## حضرت مولانا محمد عبد الله الایوبي

الکندهاري السلیمانخیلي الحنفي النقشبندي حفظه الله تعالی

مکتبة القراءة والتجوید
کاسي روډ شالدره کوټه

# د کتاب پېژندنه

د کتاب نوم .............. تفسیر ایوبي پښتو او ولسم ټوک
مفسر .............. الحاج مولنا محمد عبید الله الایوبي الکندهاري
السلیمانخیلي الحنفي حفظه الله تعالی بفضله الوهبي
کمپوزر .............. حبیب الحق حقاني
ټایپ .............. حقاني کمپیوټر اداره
نشر کوونکې اداره .......... مکتبة القراءت والتجوید کاسي روډ کوټه
د چاپ ځای .............. لاهور

## یو نظر دې خوا

هیڅ یو مسلمان هم په قرآن مجید، احادیثو یا د فقهي په کتابو کې په قصده سره غلطي نه کوي، زموږ اداره تر خپله وسه پورې د کتابو تر لیکلو وروسته تصحیح ته زیاته پاملرنه کوي، چې له دې کبله زموږ کتابونه معیاري دي، خو بیا هم بنده بنده دی، یو نه یو ځای څه ناڅه غلطي په املاء کې یا په یوه جمله کې ځنې صادره سي، نو زموږ د ټولو ناظرینو څخه دا خواست دی چې که ستاسي تر نظر داسي غلطي تېره سي لطفاً زموږ سره تماس ونیسئ، تر څو د کتاب د دوهم وار په چاپ کې د هغې تېروتنې اصلاح وسي.

په درناوي ستاسي ورور شمس الحق شمس



# جميع الحقوق محفوظة



الطبعة الاولى

١٤٣٣ هجري - ٢٠١٢ ميلادي

**مكتبة القراءة و التجويد**

شارع كانسي كوئته – بلوجستان

رقم الهاتف ٠٣٠٠٣٨٨٥٥٣٥

**MAKTABTUL-QIRRAT WALTAJWEED**
KANSI ROAD QUETTA
BALOCHISTAN

ISBN 2-7451-3140-0





اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ وَكَفٰى وَالصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلٰى خَيْرِ الْوَرٰى

**وبعد:** محترمو لوستونکو! تاسو په دې حقيقت ښه خبرياست، چې د افضل الانبياء ﷺ رالېږنه الله تبارک وتعالی د ټولي نړۍ او ټوله عالم لپاره کړې ده.

او نبي کريم ﷺ اخيري نبي او استازی دی، نو دا دين به و مختلفو قومونو، مختلفو ژبو ويونکو، او مختلفو سيمو ته د دنيا څوک رسوي؟ د دې ځواب خپله نبي کريم ﷺ په خپلو مبارکو ويناوو کښې فرمايلي دی، فرمايي: اَلْعُلَمَاءُ وَرَثَةُ الْاَنْبِيَاءِ، له انبياء کرامو څخه په ميراث کې سره او سپين زر نه دي پاته سوي، بلکې له هغوی څخه علم په ميراث پاته سوی دی.

نو معلومه سوه چې علماء کرام د انبيا کرامو عليهم السلام وارثين دي، او دوی به د آنحضرت ﷺ دا دين و خپلو قومونو ته رسوي، دا خبره هم تر لمر روښانه ده چې هر څوک پخپله مورنی ژبه باندې تر نورو ژبو ډېر ژر او په ډېره اسانه طريقه سره پوهېږي، او کوم مقصد او کومه

موخه چي دی له ډېرو ژبو څخه اخستلای سي، کېدای سي چي دی دې د نورو ژبو له کتابونو څخه هغه مقصد وانه خلي، نو ځکه مفسر وخت

حضرت العلامة شيخ التفسير والحديث استاذ کل الحاج **مولانا محمد عبيدالله** الايوبي القندهاري صاحب د ډېرو هيواد والو مسلمانانو د فائدې لپاره د معتبرو تفاسيرو څخه دا يوه علمي ذخيره په نامه د تفسير ايوبي حنفي، په ډېره خوندوره او مورنۍ ژبه پښتو کښې وليکی، چي دادی او ولسم ټوک چي پکښې اووه ويشتمه او اته ويشتمه پاره ترتيب سوې ده ستاسي په لاسونو کښې دی.

مکتبه القرائت والتجويد په دې وياړي چي د قرآن مجيد ودې ستر خدمت ته يې ملا تړلې ده او د تجويد د کتابونو سره سره يې د علم تفسير، علم فقه او علم عقائد کتابونه هم چاپ ته سپارلي دي.

ستاسي د دعاؤ په هيله چي تر څو د حضرت ايوبي قلم نور هم ګړندی او صحت يې نور هم مخ په وړاندې سي.

والسلام

قاري فضل الحق حقاني

تلميذ حضرت ايوبي وباني مکتبة القرائت والتجويد

تفسير ايوبي حنفي د نصيراحمد احمدي لخوا سکين او pdf سو. د دعا په هيله احمدي! واتساپ ۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

الحمد لله رب حمدًا كثيرًا جزيلاً جميلاً طيبًا مباركًا، والصلوة والسلام على من دنٰى فتدلى فكان قاب قوسين او ادنى وعلى آله وصحبه البررة الكرام.

وبعد: فيقول العبد الفقير سامحه القدير بلطفه الخطير محمد عبيد الله الايوبي الكندهاري؛ تاريخ شروع تفسير جزء فما خطبكم جزء (٢٧) من اجزاء القرآن العزيز في شهر ذى القعدة الحرام (٢٥) في ليلة الجمعة ساعة (٩) من شهور سنه (١٤٣٢) هـ ق، و وفقني لتفسير بقية اجزاء القرآن المجيد بالخير والعافية والصحة والسلامة واجعله خيرًا باقيًا لي الى يوم نفخة الصور، اللهم سهل ويسر ولا تعسر.

## قَالَ فَمَا خَطْبُكُمْ اَيُّهَا الْمُرْسَلُوْنَ ۝

قال (اى ابراهيم) فما خطبكم (اى ماشانكم وفي اى حاجة ارسلتم) اى د خداى را استول سوو ملكو.

## قَالُوْٓا اِنَّآ اُرْسِلْنَآ اِلٰى قَوْمٍ مُّجْرِمِيْنَ ۝

ملكو وويل موږ را استول سوي يو و داسي قوم ته چي مجرمين دي يعني قوم لوط.

**پوه سه:** چي مجرم په اصطلاح د قرآن عظيم كي هغه چا ته وايي چي پر خپل جرم ټينګ ولاړ وي، دوى داسي خبيث كارونه كول يعني چي تر دې دمخه په بني نوع كي د انسان چا نه وه كړي يعني اللواطة الكبرىٰ چي اتيان په دبره كي د نر حتى چي حيوانات لا هم بد ګڼي وري، ته نه وينې چي نر خر چي پر بل خره د دبري د كار لپاره پوښې پورته كړي هغه يې په لغتو مخ ور تک شين كړي؛ يعني قوم لوط تر حيواناتو بد تر وه چي لوى لوى خلک يو پر بل سره ختل، ما لواطة الكبرى وو ايه د دې لپاره چي لواطت د مايني سره خو هم حرام دى لان الدبر موضع الفرث دى، او وطي د مايني سره خو په دې سبب روا دي چي ځاى د حرث دى چي بقا د نوع انساني په راسي لكن د نر دا اعظم جرمًا من لواطة زوجة، او قوم لوط قطع السبيل هم كاوه يعني پر مسافرو د دوى د وطنو لار بنده كړې وه ولي چي مسافر د لواطت له بېري د دوى پر لار نه راتله، نو خداى پاک چي د دوى د قبيلې سړى يعني لوط ؑ ور واستوى

چي دوى منع کړي له دې کار عظيم څخه، نو دوى انکار وکړى او چي لوط به دوى ته وويل چي عذاب به درباندې نازل سي دوى به ورته وويل: آئتنا بعذاب الله ان کنت من الصادقين، نو د لوط تر ډېر تبليغ وروسته او په منع کي ددوى بيا هم دوى نسوه منع، نو يې داسي وويل: رب نجني من القوم الظالمين وانصرني على القوم المفسدين، فارسل اليهم الملائکة، نو ملکو و ابراهيم ته دا خبره وکړه.

لِنُرْسِلَ عَلَيْهِمْ حِجَارَةً مِّنْ طِيْنٍ ۙ مُّسَوَّمَةً عِنْدَ رَبِّكَ لِلْمُسْرِفِيْنَ ۝

چي نازل کړو پر دوى يعني وه اوروو ډېري د خټو يعني هغه خټي چي په اور د جهنم لکه ډېري کلکي کړځېدلي وي چي سجيل يې بولي لکه چي په بل ځاى کـ د قرآن کريم راغلي دي (معرب دي له سنګ ګل څخه) "مسومة" چي علامه داري سوي وي چي پر هره ډېره هغه څوک چي به په ويشتل کېدى د هغه نوم به پر نوشته وُ.

**فائده:** د من طين د قيد فائده داده که دغه لفظ نه واى د سړي به خيال کېداى چي له حجارة څخه به ږلۍ مراد وي، ولي چي د اسمان له خوا را اورېږي، او ږليو ته هم اسماني ډېري خلک وايي.

"عند ربک للمسرفين" په نېز د خداى ستا د اسراف کونکو لپاره چي تجاوز يې کړى تر حد په فجور کي وهو الواطة مع الرجال، او ابن عباس وايي يعني للمشرکين فان الشرک اشرف الذنوب واعلاها.

**درويش وايي:** چي له دې روايت څخه دا معلومه سوه چي په قوم لوط کي دوه اسرافه موجود وه يو شرک او بل لواطت.

فَاَخْرَجْنَا مَنْ كَانَ فِيْهَا مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ ۝

نو موږ وايستل څوک چي وه په دى (قريې) کي د مسلمانانو څخه (يعني چي پر لوط يې ايمان راوړى وُ).

**سوال:** قرى لوط کله ذکر سوي وې، نو اضمار قبل الذکر به نه وي؟

**ځواب:** قرى لوط معلومي دي له سياق څخه د بيان.

**درويش وايي:** چي هغه قول د ملکو چي په بل ځاى کي د قرآن مبارک راغلى دى: انا رسل ربک لن يصلوا اليک فاسري باهلک بقطع من الليل ولا يلتفت احد

منکم (یعني تر شا دي نه کوري) لهول ما ینزل الا امر تک (یوه ستا ماینه چي واهله یا واعله نو مېده چي هغې به هر کرې تر شا کتل او د یا قوم ناري به یې وهلې) فانه مصیبها ما اصابهم، یعني د دې پر سر هم حجارة من طین را ایله کېږي.

فَمَا وَجَدْنَا فِيهَا غَيْرَ بَيْتٍ مِّنَ الْمُسْلِمِينَ

مو ونه کړې پیدا په قرې ؤ کې د قوم لوط "غیر بیت من المسلمین" یعني اهل بیت یعني لوط وبناته وصفهم الله بالایمان والاسلام جمیعًا لانه ما من مؤمن الا وهو مسلم.

وَتَرَكْنَا فِيهَا آيَةً لِّلَّذِينَ يَخَافُونَ الْعَذَابَ الْأَلِيمَ

او مو پرې ښول نښاني په هغه قرې کې د هغه چا لپاره چي له دردناک عذاب څخه بېرېږي، چي هغه ایت ډېري ډبري پر شا وخوا د قوم لوط او پر دوی چي مځکه چپه سوه پر هغو ځایو توري او به بد بویه پیدا سوې چي دا عبرت دی د هغو کسانو لپاره چي له خدایه بېرېږي... بیت:

پند گیز از مصائب دیگران ....... تانه گیرند دیگران ز تو پند

**یوه سه:** چي په دې ایت سره دلیل دی علی کمال قدرته تعالی علی انجاء من یؤید (په نجات ورکولو کې د هغه چا چي تائید د دین د خدای کوي) والانتقام من اعدائه ولو بعد حین.

وَفِي مُوسَىٰ إِذْ أَرْسَلْنَاهُ إِلَىٰ فِرْعَوْنَ بِسُلْطَانٍ مُّبِينٍ

او په استولو کې د موسیٰ څه وخت چي دی مو ورسول وګرځاوه (ای فرستاده شده) و فرعون ته (چي عمالقه یې قوم ؤ او فرعون دعوه د خدایي کړې وه او قوم یې هم ورسره منلې وه: انا ربکم الاعلی) "بسلطان مبین" په حجت ظاهره سره چي په تېرېدو سره د کلو او د زمانې په اوږدو کې دغه معجزات و فرعون ته ده ښکاره کړه (۱) لکه عصا چي مار کېدله به (۲) ید بیضاء: چي لاس به یې په ګرېوان څخ کړی چي را وه به یې ایستی لکه لمر برېښېدی به او چي بېرته به یې په ګرېوان دننه کړی عادي لاس به ؤ (۳) الطوفان: یعني ډېر باران چي په کورو کې چي به دوی ناست وه او به به یې تر حلق پوري رسېدلې، یعني طوفان نوح مراد نه دی بلکي مشابه د هغه سره چي تر عادي باران ډېر لوړ ؤ (۴) الجراد: ملخان یې پر مسلط

کړه چې باغونه او کښتونه د فرعونيانو بلکې د درختو پوستونه يې هم وخوړل (۵) والقمل: او سپوږې چې د غنمو مغز به يې وخوړی خالي پوستکی به يې پاته سو (۶) والضفادع: او چنګوښې چې صفا اوبه چې پر سر د منګي يا يو بل لوښي به ټوکر هوار هم ؤ چې فرعونيانو به پر سر راپورته کړی نو د مخه تر اوبو به يې چونګښه په خوله ور ننوتل، وعلى هذا خوراکي شيان (۷) والدم: اوبه به يې سرې ويني وګرځېدلې په وخت کې د څېښلو د دوی (۸) والسنين: کاختې يعني باران نه اوريدل څو کاله پر له پسې (۹) وفلق البحر: چې درياب کوڅې کوڅې سو د بني اسرائيلو د تېرېدو لپاره او فرعون او دده قوم ټوله پکښې غرق سوه.

فَتَوَلّٰى بِرُكْنِهٖ وَقَالَ سٰحِرٌ اَوْ مَجْنُوْنٌ ﴿۳۹﴾

روی ګرداني او انکار وکړی فرعون د ايمان راوړلو څخه او وه يې ويل چې دا موسٰى چې خوارق يې ښکاره کړه جادوګر دی يا لېونی دی.

**درويش وايي:** چې فرعون دومره بېوقوف ؤ چې د ساحر او لېوني ترمابين يې ترديد وکړی او سره ددې چې ساحر خو ډېر فهميده سړی وي، قاضي بيضاوي دده ترديد داسې توجيه کړې ده چې دا خوارق العادة معجزات چې فرعون وليدی نو دا يې په خيال کي ورغله چې دا خو د پيرانانو وظيفه ده نو په دې کي متردد ؤ چې موسٰى په اختيار به وي نو خو دی ساحر دی او که دده په اختيار نه وي نو پيرانان دا شيان ښکاره کوي.

**درويش وايي:** چې ددې لوی خره د توجيه څه ضرورت دی بلکې د وار خطايي څخه يې دا ترديد وکړی او قوم چې دده خدايي يې منله بلکې دا قول دده يې هم منی.

فَاَخَذْنٰهُ وَجُنُوْدَهٗ فَنَبَذْنٰهُمْ فِي الْيَمِّ وَهُوَ مُلِيْمٌ ﴿۴۰﴾

نو موږ دی ونيوی يعني سره د قوم او دده د لښکرو مو وغورځاوه په رود نيل يا بحر قلزم کي "وهو مليم" دده داسي کار وکړی چې راتګ يې په دده ملام يعني ملامتيا راغله چې عبارت دی هغه کار چې فرعون راتګ په وکړی هغه کفر، تکبر او عناد.

**فائده:** دا جمله حال ده له ضمير منصوب څخه د اخذناه.

وَفِيْ عَادٍ اِذْ اَرْسَلْنَا عَلَيْهِمُ الرِّيْحَ الْعَقِيْمَ ﴿۴۱﴾

اى في اهلاک قوم عاد آية چې نبي هود ؑ چې موږ را واستاوه پر دوی اصالة

(وي چي گمراهان او كافران خو دوى وه وعلى دورهم واموالهم ومواشيهم تبعًا) "الريح العقيم" يعني وچ باد.

**فائده:** العقيم باد هغه دى چي لا خير فيه ولا بركة او نه د كښت فائده او نه د درختو چي دبور يعني د كښېږ باد ؤ. لقوله عليه الصلوة والسلام نصرت بالصبا (يعني د پاسه باد) واهلكت عاد بالدبور.

مَا تَذَرُ مِنْ شَيْءٍ أَتَتْ عَلَيْهِ إِلَّا جَعَلَتْهُ كَالرَّمِيمِ ﴿٤٢﴾

نه پرېښو دغه باد چي دى پر راغلى (ريح چونكه مؤنث سماعي ؤ ځكه يې د اتت ضمير مؤنث ورته راجع كړى) مگر گرځاوه به يې هغه شى لكه ايرې، او بعض وايي لكه وچ وابښه چي تر پښو د خلكو لاندي ميده سي.

**فائده:** عقيم كه څه هم صفت د ښځي دي چي رحم يې نطفه نه قبلوي نو عيا ليې نه كېږي لكن دلته يې استعمال په ريح كي استعارة كړې ده، علاقه د تشبيه يې داده چي د دبور په باد كي هم فائده نسته.

وَفِي ثَمُودَ إِذْ قِيلَ لَهُمْ تَمَتَّعُوا حَتَّىٰ حِينٍ ﴿٤٣﴾

يعني په اهلاک کي د قوم د ثمود چي نبي يې صالح ؑ ؤ، اية يعني دليل د قدرت د خداى عزوجل سته او عبرت دى د من كانوا بعدهم "اذا قيل لهم" كله چي وويل سول دوى ته د صالح ؑ له خوا څخه چي دوى اوښه ذبح كړه او غوښي يې سره تقسيم كړې "تمتعوا" تاسي اوسېږئ او نفع اخلئ په خپلو كورو كي تر يو وخت پوري يعني درې ورځي.

**يوه سه:** چي دوى اوښه ذبح كړه د چهارشنبې په ورځ او په ورځ د شنبې پر دوى عذاب نازل سو، او صالح ؑ نښانې د نزول د عذاب داسي بيان كړي وې چي اوله ورځ چي سهار راپورته سئ مخان به مو ژړ وي، او دوهمه ورځ به مو مخان سره وي او دريمه ورځ به مو مخان تک تور وي، بيا عذاب الهي پر تاسي نازلېږي.

فَعَتَوْا عَنْ أَمْرِ رَبِّهِمْ فَأَخَذَتْهُمُ الصَّاعِقَةُ وَهُمْ يَنْظُرُونَ ﴿٤٤﴾

بيا هم دوى سركښي وكړه له امر څخه د خداىٴ يعني ايمان يې رانه وړى او د صالح ؑ متابعت يې ونه كړى او پر ده يې ايمان رانه وړى "فاخذتهم الصاعقة" نو دوى ونيول عذاب مهلک.

**فائده:** هر عذاب مهلک ته صاعقه وايي او صاعقه سخت عذاب ته هم وايي كذا في القاموس، او مراد دلته نعره شديده د جبرئيل دے "وهم ينظرون" او دوى دغه عذاب په سترګو ليدی، کريمه: فاصبحوا في دارهم جاثمين، پر زنګنو يې تکيه کړې وه.

فَمَا اسْتَطَاعُوْا مِنْ قِيَامٍ وَّمَا كَانُوْا مُنْتَصِرِيْنَ

دوى طاقت نه درلودی چي ولاړ سي او پريو خوا وتښتي، يعني بعد نزول العذاب "وما كانوا منتصرين" او نه وه دوى خلاصونکي د يو چا له خوا، راويان د قصې وايي چي دوى هغه علامات چي صالح عليه السلام ورته بيان کړي وليدل قصد د قتل د صالح عليه السلام يې وکړی صالح ته خدای نجات ورکړی ځني وتښتېدی شام ته يا فلسطين ته.

وَقَوْمَ نُوْحٍ مِّنْ قَبْلُ ۖ اِنَّهُمْ كَانُوْا قَوْمًا فٰسِقِيْنَ

په تحقيق ؤ قوم نوح فاسقان يعني خارجون له سمي لاري څخه و کفر او عصيان ته.

**پوه سه:** چي د قوم لفظ منصوب دی په يو فعل محذوف سره چي ماقبل دلالت پر کوي عند اكثر القراء، او بعض قراء يې په جر وايي چي عطف يې پر ثمود بولي، فالمعنى وتركنا في اهلاک قوم نوح اية کمامر.

**پوه سه:** چي لفظ قبل مبني پر ضمه دی عوضًا عن المضاف اليه (نو ځکه کلمه د من چي حرف جر دی عمل يې نه دی پکښي کړی) والمضاف اليه ای قبل قوم لوط و فرعون و جنوده وعاد و ثمود.

**پوښتنه:** دغه قصې چي تاسي واورېدلې په نورو سورتو کي د قرآن کريم په ډېر تفصيل سره ذکر کړل سوي دي، نو په دې اجمالو قصو کي د دوى څه حکمت الهى دی؟

**ځواب:** يو حکمت تسلي ده ورسول کريم صلی الله عليه وسلم ته، دوهمه فائده وعده ورکول و عليه الصلوة والسلام ته چي ته به منصور يې لکه هود او صالح او لوط او موسٰى عليهم السلام، دريمه فائده يې بېرول د اهل مکه او کافرانو دي چي تاسي به لکه د کفارو ماضيين عذاب درکړل سي لکه وهغو ته فمالكم لاتؤمنون ولا تصدون محمدًا صلی الله عليه وسلم.

وَالسَّمَآءَ بَنَيْنٰهَا بِاَيْىدٍ وَّاِنَّا لَمُوْسِعُوْنَ

**پوه سه:** چي لفظ السماء منصوب دی په وروسته فعل سره چي دی ته په نحو

کي منصوب علی شریطة التفسیر وایي یعني د مخه تر السماء لفظ بنیناها ۋ هغه یې حذف کړی وروسته یې تفسیر په بنیناها مذکور سره وکړی.

**سوال:** په حذف کي د عامل او وروسته تفسیر کولو کي فائده څه ده؟

**ځواب:** په دې قول کي د عبدالرحمن الجامي قدس سره په خپل یوسف زلیخا کي فکر وواهه جواب به در ته ښکاره سي:

**چه خوش باشد که بعد از انتظاری .... با امید رسد امیدواری**

او اسمان (چونکه اسم جنس دی نو ټولو اسمانو ته شامل دی) بناء کړی پر خپل قدرت او قوت سره (یعني د لفظ د اید معنی متعارف نه ده مراد)

"وانا لموسعون" ابن عباسؓ وایي ای قادرون مطیقون مشتق من الوسع بمعنی الطاقة، کریمه: لایکلف الله نفسًا الا وسعها ای طاقتها چي وسه یې پوره وي (ځکه پر مسکین زکوة او حج خدای نه دي فرض کړي) دا جمله حال ده له فاعل څخه د بنیناها.

**وَالْأَرْضَ فَرَشْنَاهَا فَنِعْمَ الْمَاهِدُونَ ﴿٤٨﴾**

او ځمکه غوړولې یعني لکه فراش چي انسانان قرار پر ونسي یعني د ژوند شپې او ورځي پر تېره وي، ښه فرش او مهد غوړونکي یو (مخصوص بالمدح یې محذوف دی ای نحن)

**وَمِنْ كُلِّ شَيْءٍ خَلَقْنَا زَوْجَيْنِ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ ﴿٤٩﴾**

**او له هر شي څخه پیدا کړي دي موږ دوه صنفه.**

**پوښتنه:** اصناف د هر شي خو په دوه کي حصر نه دي، وګوره چي خورما څومره ډېر اصناف لري، او انګور څونه ډېر اقسام لري وهکذا انار او نور مېوه جات او غذائیه د کښتو دانې؟

**ځواب:** د خدای پاک مراد صرف تعدد د اصنافو مخلوقاتۀ من ای جنس کان ذالک المخلوق بلکې یو شی دوه جهته درلودلای سي لکه هر سړی چي عاجز بالذات دی قادر بالغیر دی.

**درویش وایي:** چي بعض مفسران پر ظاهر د قرآن معنی د مثنی په هر شي کي

راوړي ده يعني متقابل او متضاد دوه شيه، لکه د مجاهد ؒ څخه روح المعاني نقل کړي دي لکه ذکر او انثی، اسمان او ځمکه، شپه او ورځ، لمر او سپوږمۍ، دوبی او ژمی، بر او بحر يعني دښت او درياب او خالي ځمکه او غر، انس او جن، نور او ظلمة، تور او سپين، دنيا او اخرت، ايمان او کفر، نېکبختي او بدبختي، حق او باطل، خوږ او تريخ، مرګ او ژوند، لوند او وچ، علم او جهل، قدرت او عجز، سخي او بخل، قوت او ضعف، صحت او ناجوړي، غنٰی او فقر، خندا او ژړا، خوشحالي او غم، لوړه او کښته، راسته لاس چپه لاس، د مخ خوا د شا خوا، ګرمي او يخ وهلم جرا.

**پوه سه:** چې د "تذکرون" اصل تتذکرون ؤ يوه تا يې په دال بدله کړه او ادغام يې وکړی لپاره ددې چې تاسي پند واخلئ او پر دې يقين وکړئ چې تعدد له خواصو څخه د ممکناتو دی والواجب بالذات لايقبل التعدد والانقسام ووجوده لايقبل العدم وقادر لاعجز له.

فَفِرُّوْٓا اِلَى اللّٰهِ ۭ اِنِّىْ لَكُمْ مِّنْهُ نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ ۝

الفاء اجراء لشرط محذوف ای اذا کان امر الله کما مر نو وتښتئ يعني موجه وکړئ له هر شي څخه و خدای ته بالمحبة وامتثال او امره والانتهاء لنواهيه وکسب السعادات او له نقائصو او شرور څخه پاک.

**پوه سه:** چې دا جمله حکايت ده د رسول الله ﷺ بتقدير القول ای قل يا محمد لهم ففروا الی الله، نو له وروسته ايت سره به يې ارتباط پيدا سي.

"اني لکم منه" زه تاسي لره د خدای له خوا ای من عذابه چې مرتب دی پر غضب او پر عصيان او پر هجران د خدای دی "نذير مبين" چې انذار د خدای له جانبه څخه چې معلوم دی په معجزاتو سره يا د مبين معنی دا ده چې زه مظهر يم لما يجب اظهاره من العذاب المنذر به.

وَلَا تَجْعَلُوْا مَعَ اللّٰهِ اِلٰـهًا اٰخَرَ ۭ اِنِّىْ لَكُمْ مِّنْهُ نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ ۝

تاسي مه ګرځوئ سره د خدای بل معبود لکه بتان د اهل مکه وغيرهم يا عيسٰی چې ابن الله يې بولي يا ملائکة چې د خدای لوڼې يې بولي او عبادت يې کوي "انی لکم منه نذير مبين" ترجمه ددې ايت خو عنقريب تېره سوه لکن پوښتنه ددې

کېږي چې دا آيت تکرار دا اول به نه وي او که څرنګه؟ بعض مفسران وايي چې دا آيت تاکيد د اول دی او بعض مفسران وايي چې اول دغه ايت لپاره د خواصو د مؤمنانو دی چې دوی و بېروي د مطلق توجه او محبت د غير سره د خدای او دوهم دغه ايت لپاره د بېرولو د عوامو د شرک او معاصيو څخه لکه له سياق څخه د کلام چې فهمېږي، يعني قوله تعالى: ولاتجعلوا مع الله الهًا اخر، فافهم هداک الله.

كَذٰلِكَ مَآ اَتَى الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ مِّنْ رَّسُوْلٍ

"كذالک" خبر د مبتداء محذوفي دی ای شانک، مع قومک کشان الرسل تر تا د مخه سره د خپلو قومو چونکه په دې تشبيه کي احتمالات وه، د و تعيين لپاره د تشبيه دا ايت نازل سو چې يو احتمال يې لپاره د تشبيه وتاکی.

**پوه سه:** چې د موصول يعني الذين څخه مراد کفار د پېشو امتو دي او ضمير د هم راجع دی و کفارو ته د مکې، او کلمه د من زائده ده لپاره د استغراق د نفي يعني يو رسول د رسولانو.

**فائده:** نحات وايي چې د دې قول د يو سړي ما اتاني اليوم رجل او د دې قول د سړي ما اتاني من رجل فرق سته ولي دوهم قول نص دی په استغراق کي د نفي د اتيان د رجل ما فتدبر.

اِلَّا قَالُوْا سَاحِرٌ اَوْ مَجْنُوْنٌ

"الا قالوا" دا استثناء مفرغ ده، يعني مستثنٰى منه يې محذوف دی، د اعراب له لاري په محل کي د نصب دی د فاعل د اتی يا د مفعول د اتی يا د دواړو، والتقدير ما اتاهم من رسول في حال من الاحوال (دا يې مستثنى منه محذوف ده الاحال قولهم) "ساحر او مجنون" د ترديد وجه يې داده چې دوی چې به يې معجزاتو ته وکتل چې خارق العادة وې، نو به يې ويل چې ساحر دی او چې و دې ته به يې نظر وکړی چې دی خو خلک و توحيد ته د معبود رابولي او بعث بعد الموت ته چې دا د دوی په عقيده محاله وه، نو به يې ويل چې مجنون دی.

**فائده:** ساحر او معطوف پر ده خبر د مبتداء محذوف دی ای هو ساحر او تول له مقول د قالوا ده، يعني قالوا هذا لکه چې کفارو د مکې به هم و عليه الصلوة والسلام

ته دا خبره کوله وفیه تسلیة لرسول اللهﷺ، پښتانه وايي: چې د عالم سره غم نه غم دی.

أَتَوَاصَوْا بِهِ ۚ بَلْ هُمْ قَوْمٌ طَاغُونَ

یعني کافرانو و اولینو او اخرینو یو وبل ته دا وصیت کړی دی چې د رسول په مقابل کې دغه وایاست ساحر او مجنون، والاستفهام للانکار لعدم اجتماع الاولین والاخرین في زمان واحد او په عین حال کې توبیخ هم ورسره ملګری دی "بل هم قوم طاغون" کلمه د بل لپاره د اضراب ده د تواصي څخه لما قلنا انما بل الجامع لهم علی هذا القول مشارکة الاولین والاخرین في الطغیان.

فَتَوَلَّ عَنْهُمْ فَمَا أَنْتَ بِمَلُومٍ

یعني اعراض وکړه یا محمد ﷺ یعني د بې فائدې بحث سره ددوی ولې چې تا په کراتو مراتو سره دوی ته دعوت ورکړی دی الی التوحید فابوا الانکار والاصرار علی الکفر والضلال "وما انت بملوم" یعني علی الاعراض ته ملامت نه یې د خدای ﷻ له خوا څخه لانک بذلت جهدک في التبلیغ والدعوة، ابن جریر ؒ وغیره له علي ؓ څخه بالواسطة روایت کړی دی چې دا آیت چې نازل سو فتول عنهم الایة، لم یبق منا احد الا ایقن بالهلاک اذ امر النبي ﷺ بالتولی عنهم.

وَذَكِّرْ فَإِنَّ الذِّكْرَىٰ تَنْفَعُ الْمُؤْمِنِينَ

یعني یکلخته تبلیغ مه پرېږده بلکې مؤمنانو ته یې کوه (راوي د حدیث مذکور وايي طابت انفسنا) زموږ زړونه خوشاله سوه، او له قتادة ؒ څخه داسي روایت راغلی دی چې ایت د فتول عنهم چې نازل سو پر اصحابو ؓ د رسول اللهﷺ ډېر سخت پرېوتی، ولې چې ددوی په خیال کې دا وه چې وحي قطع سوې او عذاب الهي حاضر دی فانزل الله تعالی اطمئنانا لقلوب المؤمنین و اذهاب ما اصابهم من الغم من قلوبهم.

"تنفع" تعلیل دی للامر بالتذکیر (المؤمنین) ولې چې تبلیغ او تذکیر نفع رسوي مؤمنانو ته یعني بصیرت ددوی زیاتېږي او هر شی ور پیاد ېږي بلکې د رسول کریم ﷺ د وعظ اورېدل عین رحمت دی.

وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْإِنْسَ إِلَّا لِيَعْبُدُونِ

**پوهه:** چې تقدیم د جن په اعتبار د شرافت نه دی بلکې باعتبار التقدم الزمان دی

ای خلقتهم لعبادتي او ادعوهم اليه ای وجوده تعالى حيث قال الله تعالى: وان سئلت عنهم من خلقهم ليقولن الله، وقيل معناه ليكون عبادتي او ليخضعوا اليّ ويتذكرون.

**پوه سه:** چي معنى د عبادة تذلل او انقياد دی وکل مخلوق خاضع لقضاء الله ومتذلل لمشيته (ايملک احد خروجها عما خلق له) وقيل معناه لتوحدون اما المؤمنون فتوحدونه في الشدة والرخا، واما للكافرون وتوحدونه في الشدة والبلاء دون النعمة والرخاء قال الله تعالى اذا ركبوا في الفلک دعوا الله مخلصين له الدين، قال صاحب المدارک الكفار يوحدون الله في الاخرة ايضًا كما قال الله تعالى لم يكن دعواهم الا ان قالوا والله ربنا ما كنا مشركين.

مَآ اُرِيْدُ مِنْهُمْ مِّنْ رِّزْقٍ وَّمَآ اُرِيْدُ اَنْ يُّطْعِمُوْنِ ﴿۵۷﴾

زه اراده نه لرم له دوی څخه د رزق او نه اراده لرم دد ې چي دوی ماته طعام را کړي.

**پوه سه:** چي له د ې ايت څخه دا مراد دی چي شان د خدای تعالى د بندګانو سره داسي نه دی لکه د دنيا سرداران او مالکان چي له خپلو مريانو څخه رزق غواړي او ذريعه د معاش خپل يې ګرځولی دی والله تعالى منزه من الطعام والاستمداد عن غيره لانه غني قدير.

اِنَّ اللّٰهَ هُوَ الرَّزَّاقُ ذُو الْقُوَّةِ الْمَتِيْنُ ﴿۵۸﴾

په تحقيق خدای جل سلطانه دی دی چي رزق ورکوي خپل مخلوق ته او په خپل مستغني دی له رزق څخه "ذو القوة" چي خاوند د قدرت دی پر ترزيق د مخلوق وعلى كل ما اراد "المتين" چي محکه او مبالغ في القدرة دي.

رساند رزق بر وجهی که شاید .... بسازد کارها نوعی که باید
بروزی بینوایان را نوازد .... برحمت بی کسان را کار سازد

فَاِنَّ لِلَّذِيْنَ ظَلَمُوْا ذَنُوْبًا مِّثْلَ ذَنُوْبِ اَصْحٰبِهِمْ فَلَا يَسْتَعْجِلُوْنِ ﴿۵۹﴾

نو په تحقيق هغو کسانو (چي ظلم يې پر ځانو کړی وي يعني په شرک او په ګنهو سره) چي په دې کارو سره يې فطرة سليمه خدا داده بدل کړی وي كما قال رسول الله ﷺ كل مولود يولد على فطرة الاسلام الحديث. "ذنوبًا" برخه سته د عذاب.

**يوه سه:** چي ذنوب په اصل لغت كي هغه لويي سولغې ته وايي چي خلك په نوبت له څاه څخه اوبه په راكاږي "مثل ذنوب اصحابهم" لكه برخه د ګنهو د دوی د ملګرو.

**يوه سه:** چي مراد له اصحابو څخه دلته مثل د دوی دي په كفر او معاصيو كي لكه ثموديان او عاديان، فرعونيان، قوم نوح و قوم لوط.

**فائده:** كلمه د فاء في قوله تعالى: فان الذين آه لپاره د سببيت ده لقوله تعالى فتولى عنهم يعني اذا سمعت وعيدي لكفار الامم الماضية فهو يكفيك لتسلية فلا تستعجل في نزول العذاب على قومك لان كل شيئ بقدر، فلهذا قال "فلا يستعجلون".

**درويش وايي:** چي په "لايستعجلون" كي يې صيغه د غائب راوړه مع ان سياق الكلام مع رسول اللهﷺ، تعظيمًا لحبيبه، او صيغه د جمع يې راوړه لان المراد الرسولﷺ واصحابهﷺ.

**فَوَيْلٌ لِّلَّذِينَ كَفَرُوا مِن يَوْمِهِمُ الَّذِي يُوعَدُونَ ﴿٦٠﴾**

افسوس دی او هلاكت دی (ويل مبتداء ده تنوين لپاره د تعظيم دی ای ويل عظيم شديد، نو ابتدائيه يې صحيح ده او الذين كفروا يې خبر دی) د هغه ورځي څخه ددوی چي ورځ د قيامت ده چي ددوی سره وعده كړه سوې ده يعني من جانب الله تعالى، او بعض مفسرين وايي چي ورځ د بدر ده.

**درويش وايي:** چي دا ترجمه مناسبه نه ده لان الكلام في هذه الاية في احوال جميع الكفرة ويوم بدر مخصوص بهذه الامة ای بكفار مكة فافهم.

**فقير وايي:** چي تفسير د سورة الذاريات پر نهه (۹) بجې د خميس د ورځي ۲۵ د ذوالقعدة الحرام من سنة (۱۴۳۲) هجري قصري پای ته ورسېدی، ومن الله التوفيق وله الحمد الجميل من جانب هذا العبد الذليل.

تفسير ايوبي حنفي د نصيراحمد احمدي لخوا سكين او pdf سو. د دعا په هيله احمدي! واتساپ ۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹

سُوْرَةُ الطُّوْرِ مَكِّيَّةٌ وَهِيَ تِسْعٌ وَّاَرْبَعُوْنَ اٰيَةً فِيْهَا رُكُوْعَانِ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

وَالطُّوْرِ ۝ وَكِتٰبٍ مَّسْطُوْرٍ ۝ فِيْ رَقٍّ مَّنْشُوْرٍ ۝ وَالْبَيْتِ الْمَعْمُوْرِ ۝

**پوه سه:** چي طور په سرياني ژبه مطلق غره ته وايي، او جمهور وايي چي په عربي ژبه مطلق غره ته وايي، او مراد دلته طور سينين دى چي د يو غره نوم دى په مدين كي چي په هغه غره كي موسىٰ ﷺ د خداى ﷻ سره خبري كړي دي.

**فائده:** كلمه د واو په الطور كي او په معطوفاتو كي لپاره د قسم ده والجواب هو قوله تعالى: ان عذاب ربک لواقع. او بعض مفسرين وايي چي مراد دلته مطلق غرونه ده چي اوتاد الارض دي او په غرو كي د اوبو چيني ستنه او نور منافع د انسانانو او خزائن و معدنيات پكښي ستنه، والاول هو الاظهر والاشهر.

**پوه سه:** چي السطر ترتيب الحروف، والمراد المكتوب، او رق هغه پوست ته وايي چي په عنصر قديم كي يې خط پر ليكى اوس مستعار دى لما كتب فيه الكتاب كه څه كاغذ وي يا تو كر.

**درويش وايي:** چي فراء النحوي وايي چي مراد له دې كتاب څخه هغه كتاب دى چي په هغه كي اعمال يعني كرام كاتبين يې ليكي (چي په پښتو يې عمل نامه بولي) او بنده ته وركول كېږي په ورځ د قيامت بيمينه او بشماله، وهو المذكور بقوله تعالى ونخرج له يوم القيامة كتابًا يلقاه منشورًا، انتهى الاحتمالات البعيدة كلبيؒ وايي چي مراد ځني تورات دى، او بعض وايي چي مراد ځني لوح محفوظ دى، ددې روايت سره دا لفظ منافي دى ”في رق منشور“ ولي چي لوح محفوظ خو رق منشور نه دى، وقيل هو الانجيل. البته دا احتمال چي مظهري ذكر كړى دى چي مراد ځني قرآن دى يا جنس الكتب چي په هغو كي شرائع د دين نوشته وي ډېر بعيد نه دى ”والبيت المعمور“ او هغه خونه چي اباده ده، قال البيضاويؒ المراد به الكعبة المباركة وعمارتها بالحجاج والمجاورين، او يا زړه د مؤمن دى وعمارته بالمعرفة (اى معرفته تعالى بجميع صفات الجلال والجمال) والاخلاص (چي په حديث صحيح كي د عمر ؓ يې روايت په احسان سره تعبير ځنى سوى

دی، حدیث چونکه طویل دی د مقصد د ځای عبارت داسي دی الاحسان ان تعبد الله کانک تراه فان لم تکن تراه فانه یراک، رواه البخاري بطوله.

**درویش وایي:** چي اکثر مفسرین پر دې دي چي بیت المعمور په اووم اسمان کي دی پر برابر د کعبة المبارکة، روایت کړی دی مسلم په حدیث کي د معراج النبوي ﷺ عن انس رضي الله عنه قال علیه الصلوة والسلام چي زه چي اووم اسمان ته ورسیدم فاذا انا بابراهیم علیه السلام مسند ظهره الی بیت المعمور (شا یې تکیه کړې وه بیت المعمور ته) او بیت المعمور داسي عظیم الشانه خونه وه چي هره ورځ اویا زره ملکي د طواف او د لمانځه لپاره ورتلې، ثم لا یعدون الیه ابدًا یعني نوبت بیا نه ور رسیدی.

**درویش وایي:** چي سره د دې چي بیت المعمور سره د خلق د سابع اسمان پیدا ده، لکن اول طواف کوونکو ته د ملکو بیا نوبت نه ور رسیږي ابدًا، نو دلیل دی د غایت کثرت د ملکو، کریمه: ولا یعلم جنود ربک الا هو.

**فائده:** د بیت المعمور بل نوم الضراح دی.

## وَالسَّقۡفِ الۡمَرۡفُوۡعِۙ وَالۡبَحۡرِ الۡمَسۡجُوۡرِۙ

قعه بام چي پورته دی، چي مراد ځني اسمان دی کما قال الله تعالی: وجعلنا السماء سقفًا مرفوعًا چي له مځکي څخه تر اول اسمانه پوري د پنځه سوه کالو (۵۰۰) لاره ده وهکذا الی العرش الکریم عند الله "والبحر المسجور" ډیر مفسران د بحر مسجور ترجمه داسي کوي ای الموقد نارًا، اخرج ابن جریر وابن المنذر وابن ابی حاتم وابو الشیخ في العظمة عن سعید بن المسیب رح قال قال علي رضي الله عنه لرجل من الیهود این موضع النار في کتابکم؟ قال البحر قال علي رضي الله عنه ما اراه الا صادقًا (دا یهودي نه وینم مګر صادق په دې خبره کي) وقرء علي رض واذا البحار سجرت (قعه وخت چي دریابونه ټول اور وګرځي) دا مذهب دی د مجاهد رح وشمر بن عطیة وابی بن کعب والضحاک والاخفش رحمهم الله، وقال قتادة رح سجره ای ملئه والمراد به عنده البحر بالارض، وقیل بحر في السماء لاندې تر عرش، او په قاموس کي وایي: سجر التنور ای حماه قال محمد بن اسحاق والضحاک رح ای الموقد المحمي مثل التنور المسجور ای المملو نارًا وهو قول ابن عباس رض، د دې بیان قعه دی چي خدای پاک ټول دریابونه په ورځ د قیامت اور وګرځوي او اور د جهنم په زیات کړي، روایت

کړی دی الضحاک ؒ له النزال بن سبرة ؒ څخه عن علي ؓ چي د بحر مسجور په باره کي
يې داسي وويل چي دا يو درياب دی لاندي تر عرش چي عمق يې د ومره دی او وه
اسمانه او اووه مځکي په هغه درياب کي څنه او به دي چي هغه درياب ته بحر
الحيوان وايي چي تر نفخه اولی وروسته چي پر مځکه څلويښت (۴۰) ورځي باران
څني اوري، نو مړي هر ځای د مځکي چي وي را وځي پيله روح لکه نباتات د
مځکي چي په باران را وځي، وروسته روحان را واستول سي چي بدونه ته داخل سي
توله ژوندي سي، شاوخوا گوري. او روح البيان اول تفسير د بحر مسجور داسي
کړی دی ای المملو وهو البحر المحيط الاعظم الذي منه مادة جميع البحار
المتصلة والمنقطعة وهو بحر لا يعلم له ساحل ولا عمقه الا الله.

**درويش وايي:** چي وروسته روح البيان په بيان کي د دې بحر عجائب او غرائب
راوړي دي، والله اعلم. فقير وايي چي پر عجائبو د قدرت د خدای ﷻ والملک
والملکوت علم د خدای ؒ محيط دی وبس، ولا يعلم جنود (ای المخلوق) ربک الا هو.

اِنَّ عَذَابَ رَبِّكَ لَوَاقِعٌ ۙ مَّا لَهٗ مِنْ دَافِعٍ ۙ

په تحقيق عذاب د خدای ؒ واقع کېدونکی دی يعني پر کافرانو او بيا دفع
کونکی يې نسته له دوی څخه يعني چي واقع سي. دا وروسته جمله صفت ده
واقع، له جبير بن مطعم ؓ څخه روايت دی، دی وايي چي زه مدينې ته ورغلم چي د
رسول الله ﷺ سره خبري وکړم په باره کي د بنديانو د بدر چي د عليه الصلوة
والسلام په لاس کي بنديان وه، نو زه په داسي وخت کي ورورسېدم چي عليه
الصلوة والسلام د ماښام لمونځ خلکو ته ورکاوه او دده جهري قرائت له مسجد
نبوي څخه دباندي اورېدل کېدی.

**درويش وايي:** چي په زمانه کي د حيوة النبي ﷺ مساحة د مسجد نبوي ډېر کوچنی
ؤ نو ځکه يې اواز دباندي اورېدل کېدی) جبير ؓ وايي ما چي غوږ ورته ونيوی عليه
الصلوة والسلام سورة الطور وايه، دې ځای ته چي راورسېدی ان عذاب ربک لواقع
ماله من دافع، فکانما صدع قلبي حين سمعته، ما چي ويل زما زړه به سره وچوي، جبير ؓ
وايي چي زه تر دغه وخته نه وم مسلمان، دی وايي چي دستي مي ايمان راوړی خوفًا من
نزول العذاب، دی وايي وما کنت اظن ان قوم من مقامي حتى ينزل العذاب.

**درويش وايي:** چي لـه دې قـصې څخـه دا معلومـه سوه چي نـرم زړونـه چي قساوت نه وي ورسره په لږ شي ژر متاثره کېږي خصوصًا چې وعظ د قرآن عظيم وي او تالي يې رسول کريم ﷺ وي او وارثه المستقيم وي، بخلاف القاسي (سخت زړه) لکه زړه د ابی جهل ونحوه... شيخ سعدي وايي:

آهني را که مـوريانه بخـورد.... نتوان برد ازو به صيقل زنگ

باسيه دل چه سود گفتن وعظ .... نرود ميـخ آهنين درسنگ

يعني هغه اوسپنه چي زنګ خوړلې وي صيقل په ښتو زنګ نائل بولي، او نه ننوزي ميخ د اوسپني په ډبره کي.

يَوْمَ تَمُوْرُ السَّمَآءُ مَوْرًا ۝ وَّتَسِيْرُ الْجِبَالُ سَيْرًا ۝

هغه ورځ (يوم منصوب دی ظرف دی د واقع چي بيان د کيفيت د وقوع دی يعني وقوع ددې عذاب د کمال هول او فضاعة سره همراه ده) چي په اضطراب کي واقع وي اسمان، والجريان السريع او تګ ؤ راتګ مبتلا وي، بعض مفسرين وايي لکه ژرنده ګرچي او خپل اهل کښته راغور ځوي، قتادهؒ يې په مطلق حرکت سره ترجمه کړې ده، او عطاء الخراسانيؒ دا ترجمه کړې ده چي اجزاء د اسمان يو په بل ګډوډ سي، حاصل دا چي ټولې ترجمې صاحب قاموس راوړي دي.

"وتسير الجبال سيرًا" عطف دی پر تمور، او روان سي غرونه له خپلو ځايو څخه او په دوران کي سره ټوټ ټوټ سي او ميده ميده سي فکانت هباء منبثًا (لکه ګرز فراګنده سي)

فَوَيْلٌ يَّوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِيْنَ ۝ الَّذِيْنَ هُمْ فِيْ خَوْضٍ يَّلْعَبُوْنَ ۝

الفاء جزاء لشرط محذوف اي اذا وقع ذالک المور والسير نو هلاک او افسوس دی هغه کسانو لره چي تکذيب يې کاوه (د قرآن يا تکذيب د عليه الصلوة والسلام او يا تکذيب د بعث بعد الموت) هغه کافران چي دوی په دنيا کي بحث کاوه په باطلو خبرو کي.

**پوهسه:** چي خوض په لغت کي ډوبېدلو ته وايي په اوبو کي، يعني دوی په باطلو خبرو کي ډوب وه چي تکذيب القرآن دی او تکذيب د عليه الصلوة والسلام دی استهزاءً و انکارًا کما يدل قوله يلعبون.

يَوْمَ يُدَعُّوْنَ اِلٰى نَارِ جَهَنَّمَ دَعًّا ﴿۱۳﴾

چي دوی به په شدت وغورځول سي اورته د دوږخ يعني خزنه د دوږخ به دوی وغورځوي اورته چي لاسونه به د دوی په غاړو كي تړلي وي او پښې به يې د تړلې په وېښتانو سره تړلي وي او څنځيرونه به يې هم پر پېچلي وي او پر مخي به يې دوږخ ته وغورځوي.

هٰذِهِ النَّارُ الَّتِيْ كُنْتُمْ بِهَا تُكَذِّبُوْنَ ﴿۱۴﴾

دا هغه اور دی چي په دنيا كي يې تاسو تكذيب كاوه چي دوږخ هر ګز نسته، ای يقول خزنة جهنم هذا القول لهم.

اَفَسِحْرٌ هٰذَآ اَمْ اَنْتُمْ لَا تُبْصِرُوْنَ ﴿۱۵﴾

آيا دا اور سحر دی؟ والاستفهام للانكار والتوبيخ، يعني تاسي به په دنيا كي قرآن او معجزاتو ته د عليه الصلوة والسلام سحر وايه، نو كه هغه سحر ؤ نو دا اور په هم سحر وي ستاسي په خيال واذ ليس هذا مسحرًا عندكم ايضًا فليس القرآن والمعجزات مسحرًا.

**يوه سه:** چي ام منقطعه دی په معنٰی د بل للانتقال والهمزة للانكار على كون النار سحرًا كما تقولون في الدنيا حين عاينتم المعجزة انما سكرت ابصارنا دا كلام تهكم بالكفار دی.

اِصْلَوْهَا فَاصْبِرُوْٓا اَوْ لَا تَصْبِرُوْا ۚ سَوَآءٌ عَلَيْكُمْ ۚ

ور داخل سئ دې اورته پس كه صبر كوئ پر سوځلو د اور، او كه صبر نه كوئ بلكې بغاري او چغاري وهئ، تاسي ته صبر كول او نه كول برابر دي.

**يوه سه:** چي سواء مصدر دی په معنی د فاعل خبر د مبتداء محذوفي دی او تصبروا او لا تصبروا په تأويل د مصدر دي ای الصبر وعدم الصبر مستويان عليكم يعني په يوه نه خلاصيږئ له عذاب څخه.

اِنَّمَا تُجْزَوْنَ مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿۱۶﴾

تاسي ته جزاء نه دركول كيږي بيله هغه شي چي تاسي يې عمل كاوه په دنيا كي

من الكفر والمعاصي، كلمه د ما كه مصدريه وي، نو معنى د آيت داده انما تجزون اعمالكم في الدنيا او كه موصوله وي نو عائد يې محذوف اى تعملونه.

**فائده**: عادت د خداى عزوجل په قرآن كريم كې غالبًا په دې سره جاري دى چې د مجرمانو يعني كافرانو حالات ذكر كړي وروسته د محسنانو يعني د مؤمنانو حالات بيانوي للانذار والتبشير.

**پوښتنه**: څه حكمت دى چې د اهل انذار حالات د مخه ذكر كوي تر حالاتو د اهل بشارت؟

**ځواب**: يو حكمت دادى چې اهل انذار په هره زمانه كې ډېر دي تر اهل بشارة فينبغي ان يهتم بحال اهل الانذار لعلهم يتذكرون، او بل حكمت دادى چې عاقلان وايي چې تخلية (بالخاء المعجمة) مقدم تر حلية (بالحاء المهملة) د مثال په توګه هغه څوک چې د خلګو خيرن دېګونه وغيره ور سپينوي چې په پښتو يې پوښان بولي تر هغو پورې چې د شګو او د پښو په ښوولو سره د دېګ خيره پاكه نه كړي قلاين نه پورې موږي تاچې دېګ سپين سي، فلهذا قال الحكيم المطلق.

إِنَّ الْمُتَّقِينَ فِي جَنَّاتٍ وَنَعِيمٍ ﴿١٧﴾

په تحقيق هغه كسان چې له خدايه ېرېږي (چې مؤمنين دي على تفاوت درجاتهم په جنتو او په نعمتو كې، والتنوين في كلاء اللفظين لتعظيم اى جنات عالية القدر ونعم في غاية التعميم)

فَاكِهِينَ بِمَا آتَاهُمْ رَبُّهُمْ وَوَقَاهُمْ رَبُّهُمْ عَذَابَ الْجَحِيمِ ﴿١٨﴾

متلذذين (فاكهين، حال دى له ضمير مستتر څخه في الجار والمجرور يعني في جنات) په هغه سره چې دوى ته وركړى دى رب ددوى، او وساتل دوى رب ددوى له عذاب څخه د دوږ، دا جمله "ووقاهم آه" عطف ده پر اتاهم چې كلمه د اتاهم چې ما مصدريه سي، ولي تقدير يې داسي كېږي اى متلذذين بسبب ايتاء ربهم و وقاتيهم عذاب الجحيم، او كه ما موصوله سي، نو تقدير يې داسي ګرځي بالذي ووقاهم ربهم آه، نو موصول بې عائده پاتېږي، نو پر تقدير د موصول دا جمله حال ده په تقدير د قد (يعني نحات وايي چې ماضي چې حال واقع سي تقدير د قد لازم دى)

**فائده:** اسناد د ما اتهم یې ورب ته د دوی وکړی لپاره د تعظیم د ما اتاهم، ولي ورکونکی رب د دوی دی چې ارحم الراحمین دی او خاوند د قدرت عظیمه دی، نو خامخا نعمت جلیل دی.

كُلُوا وَاشْرَبُوا هَنِيئًا بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ

په تقدیر د يقال يعني يقال لهم من جانب خزنة الجنة كلوا آه او وروسته تر تقدیر دا جمله خبر بعد الخبر ده ان، والتقدير ان المتقين في كذا و كذا وان المتقين يقال لهم كلوا و اشربوا، خورک کوئ او څښل کوئ.

**پوه سه:** چې د امر تکلیف نه دی لان الجنة ليست بدار التكليف بل امر التعظيم دی. "هنيئا" ای اكلا وشربا هنيئا، والهنيئ ما لا يلحق الآكل والشارب باكله وشربه ضرر وثقل المعدة او غير ذالک، په فارسي وايي: گوارنده، په پښتو وايي دارو درمان دي سه، نو هنيئا صفت د مصدر محذوف دی كما اشرنا اليه.

"بما كنتم تعملون" دا په سبب د هغو عملو ستاسي چې په دنيا کي به مو کوله من الايمان والطاعات ای العبادات.

**درویش وايي:** چې په تفسير فضل الرحمن کي وايي چې دد ې اية معنى داده چې درجې د جنت او مراتب د جنت په مقابل کي د اعمالو دي، واما نفس دخول الجنة په فضل او رحمت د خدای دي او اعمال د بندګانو پر خدای شی نه واجبوي.

مُتَّكِـِٔينَ عَلَىٰ سُرُرٍ مَّصْفُوفَةٍ وَزَوَّجْنَاهُم بِحُورٍ عِينٍ ﴿٢٠﴾

دوی تکیه کړي وي، متكئين حال دی له فاعل مستتر څخه په ظرف ای في جنات.

**سوال:** في جنات خو نه فعل دی او نه مشتق دی، نو د ضمیر مستتر په في جنات کي څه معنى؟

**ځواب:** اصل د في جنات داسي و چې ان المتكئين كائنون في جنات، نو كائنون چې یې حذف کړی لپاره د اختصار في العبارة په كائنون کي چې ضمیر و هغه یې نقل کړی و جار او مجرور ته یعني في جنات تا چې احجاف په کلمه د كائنون را نه سي (يعني بيخ كندن) نو یې ضمیر پر بښو و في جنات ته یې نقل کړی وهذا صرف اعتبار نحوي، ورنه في الجنات ځای د استتار د ضمیر نه دی كما لا يخفى.

**درویش وایي:** چي تصریح کړې ده په ټوله ما قلنا البحر الزاخر عبد الرحمن الجامي " في شرح الکافیة.

"علی سرر" جمع د سریر ده، چارپایي، چپرکټ، پلنګ په مختلفو اصطلاحاتو کي.

**یوه سه:** چي علی سرر متعلق دی په متکئین پوري "مصفوفة" یعني چي صف صف پرتې وي للتوسع علی اهل الجنة" وزوجناهم" عطف دی خبر د ان.

**پوښتنه:** د زوجنا لفظ خو ماضي دی او دا تزویج تر اوسه نه دی واقع سوی؟

**ځواب:** ماضي دلته په معنی د مستقبل ده وانما عبر عنه بالماضي لتیقن وقوعه حسب موعود الرحمن.

**یوه سه:** چي تزویج په معنی لغوي دی چي مقابل د تفرد دی یعني جفت والی او په معنی اصطلاحي في الدنیا نه دی من العقد والایجاب والقبول والشهود ولان الجنة لیس بدار التکلیف، کذا في فتح الرحمن، و روح البیان.

**یوه سه:** چي حور جمع یې حورا ده یعني سپین رنګ چي لږ ژړوالی ورسره وي چي دا احسن رنګ دی په دنیا کي د ښځو، او عین جمع د عینا ده چي معنی یې ده اوږدې سترګې والا چي دا هم اعلی رنګ د سترګو دی چي طول یې تر عرض ډېر وي.

وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَاتَّبَعَتْهُمْ ذُرِّيَّتُهُمْ بِاِيْمَانٍ اَلْحَقْنَا بِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ

او هغه کسان چي ایمان یې راوړی وي او د دوی متابعت کړی وي د دوی اولادونو په اصل ایمان کي "والذین آمنوا" مبتداء ده "بایمان" حال دی له ضمیر منصوب څخه په واتبعتهم کي، ای متلبسین بایمان چي ذریة یې هم ایمان راوړی وي، ایمان چي یې نکره راوړی لپاره د تنبیه پر دې چي الحاق لپاره د اشتراک او متابعت په اصل ایمان کي کافي د عملو شراکت نه دی مشروط په الحاق بلکې لپاره د ایمان حکمي هم کافي دی لکه په صغیر او لېوني کي چي مؤمنان دي تبعًا للابوین.

**یوه سه:** چي "الحقنا بهم ذریتهم" جمله خبر ده د "والذین آمنوا" له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت دی قال قال رسول الله ﷺ ان الله یرفع ذریة المؤمنین الی درجة المؤمنین وان کانوا دونهم (یعني في العمل) لیقر بهم عینه (تاچي خنکي

سي يعني خوشاله سي په دې ذرية سترګې د مؤمن) ثم قرء رسول اللهﷺ هذه الاية، رواه الحاكم، والبيهقي في سننه، و البزار، وابو نعيم في الحلية، وابن المنذر، وابن جرير، وابن ابى حاتم كذا قال المظهري".

**فائده:** له الحاق څخه د ذرية دا مراد نه دی چې کله کله زيارت ته د ابوين ورځي بلکې مراد اقامت دی على الدوام د مور او پلار سره، ودليله ما رواه ابن مردوية او الطبراني عن ابن عباس رضي الله عنه قال قال رسول اللهﷺ اذا دخل الرجل الجنة سئال عن ابويه وزوجته و ولده (هغه څېرې دي؟) نو ده ته وويل سي چې هغه خو ستا و درجې ته د عمل نه دي رسېدلي (يعني په کښته درجو کې دي د جنت) دا جنتي وايي يا رب قد عملت لي ولهم (ما خو عمل کړی څپل لپاره او د دوی لپاره) نو امر د رب ﷻ و ملکو ته وسي چې ورسئ د دې جنتي اقارب جنت ته راولئ، وقرء ابن عباس رض هذه الاية، بعض مفسرين وايي چې دا الحاق الذرية به مخصوص په بعض دون بعض سره وي آلوسي بغدادي دا خبره رد کړې ده چې په دې خبره کې تنګوالی دی د لوی احسان د خدای".

**درويش وايي:** چې تخصيص والا هغه حديث د ابن عباس رض راوړی دی چې د "الذين آمنوا" څخه مهاجرين او انصار ﷺ مراد دي، او د "الذرية" څخه مراد تابعين دي، فقير وايي چې د الذرية څخه تابعين اراده کول خلاف اللغة والاجماع ده، او علامه بغدادي" د دې حديث په باره کې ويلي دي، لا اظن صحته انتهى.

وَمَآ اَلَتْنٰهُمْ مِّنْ عَمَلِهِمْ مِّنْ شَيْءٍ ۚ كُلُّ امْرِئٍۭ بِمَا كَسَبَ رَهِيْنٌ ﴿۲۱﴾

مور نه کمو وله اباؤ څخه په سبب د الحاق د ذرية د دوی د عمل څخه اي من ثواب عملهم هيڅ شی، کلمه د من لپاره د استغراق د نفي ده يعني چې مور دې يو شی له ثوابو څخه د پلار کم کړو و زوی ته يې ورکړو نو ثوابونه د پلار به کم سي او درجه به يې په کښته سي، دا سي نه کوو بلکې مور ذريه پورته درجې ته د آباؤ په محض تفضل او احسان پر اباؤ کوو، چونکه له ماقبل څخه دا توهم کېدی چې مذکوره حالات خو د من آمن واتبعه ذريته بايمان فما شان من کسب سيئة فقال الله في جوابه.

"کل امرئ بما کسب رهين" هر سړی په عمل چې ده يې کسب کړی وي ګرو دی، مقاتل" وايي چې مراد دا دی کل امرئ کافر بما عمل من شرک يا غير له شرک څخه په

انواع د کفر مبتلاء وي لکه یهودیت هغه په عمل خپل من شرک وغیره گرو او محبوس وي یعني فلا یلحق بالکافر والعاصي ذریته چي هغو د پلار عمل نه وي کړی.

وَأَمْدَدْنٰهُم بِفٰكِهَةٍ وَلَحْمٍ مِّمَّا يَشْتَهُونَ ۝

او مونږ زیاتوو متقینو ته وقتًا بعد وقت مېوې قسم قسم او غوښي یا د مرغانو رقم رقم د هغه فاکهه او د مرغانو غوښي چي د دوی اشتهاء ورته کېږي، حاصل دا چي په جنت کي د هیڅ شي کمی نسته، "وامددناهم" عطف دی پر زوجنا.

يَتَنٰزَعُونَ فِيهَا كَأْسًا لَّا لَغْوٌ فِيهَا وَلَا تَأْثِيمٌ ۝

"یتنازعون" مشتق دی له نزع څخه چي اخستل د شي دي د بل د لاسه، او باب د تفاعل په معنی د مجرد دی لکه عاقبت اللص، یعني جنتیان به اخلي د ساقي د لاسه.

**سوال:** باب د تفاعل چي په معنی د مجرد دی، نو ولي یې ینزعون مجرد نه راوړی؟

**ځواب:** لپاره د دلالت پر کثرة د اخذ یعني ګړی په ګړی د لاس څخه د ساقي ګاهي د شرابو ګلاس اخلي ګاهي د شیدو ګلاس ګاهي د عسلو ګلاس ګاهي د اوبو ګلاس، "فیها" ای في الجنة.

**پوهه:** چي مراد دلته له "کأسًا" څخه ګلاس دی چي ډک وي له شرابو څخه، که څه هم په عربي کي خالي ګلاس ته هم وايي او ډک په شرابو ګلاس ته هم وايي کما یقال کأس خال و شربت کأسًا "لا لغو فیها" لغو باطل او فضول خبرو ته وايي لکه په شرابو کي د دنیا، او نه به یو و بل ته ښکنځل او نه جنګ سره کوي یعني عقول به یې پر ځای وي "ولا تاثیم" نه د ګناه نسل یا قول پکښي سته لکه د دینا په شرابو کي.

په تاریخ کي وايي چي یو سړي شراب څښل هغه وخت چي نشه یې سر ته وختل او عقل یې مغلوب سو بولو وتیوی پر بولو کښېنستی او دواړه لاسونه یې بولو ته ونیول چي غبرګه به یې ډکه سول مخ به یې په پرېولی او داسي به یې ویل: الحمد لله الذي جعل الماء طهورًا.

وَيَطُوفُ عَلَيْهِمْ غِلْمَانٌ لَّهُمْ كَأَنَّهُمْ لُؤْلُؤٌ مَّكْنُونٌ ۝

طواف کوي او ګرځي پر جنتیانو یعني د خدمت لپاره مریان مخصوص بهم، له

انس رضی الله عنه څخه روایت دی قال رسول الله ﷺ چې تر ټولو جنتيانو په کښته درجه کې من يقوم على رأسه لس زره خادمان، وفي رواية ابن ابی الدنيا عن ابی هريرة رضی الله عنه خمسة آلاف خادم د هر يوه په لاس کې به يو ظرف وي چې د بل خادم په لاس کې هغه نه وي.

**سوال:** غلمانهم يې نه وو ايه مع انه اخصر من غلمان لهم؟

**ځواب:** د دې لپاره چې غلمان لهم په سبب د لام اختصاص پر دې دلالت کوي چې پر يوه جنتي مخصوص په ده پورې دی يعني غلمان مشترکه نه دي، او بل له دې سببه چې که يې غلمانهم ويلی وای توهم به د دې کېدای چې مراد له غلمانو څخه مريان د دنيا دي، كذا في روح البيان "كانهم لوءلوء مكنون" لکه ملغلره چې محفوظ په صدف کې د درياب وي يعني لاسونو د چا نه وي مسه کړې او غبار د مځکې نه وي پرواقع سوی، حسين کاشفي وايي: گويا ايشان در صفا ولطافت مرواريد پوشيده در صدف اند که دست کسی بريشان نه رسيده انتهى، او په حديث کې راغلي دي چې اصحاب کرامو رضی الله عنهم و عليه الصلوة والسلام ته وويل: الخادم كاللؤلؤ فكيف المخدوم؟ فقال عليه الصلوة والسلام فضل المخدوم على الخادم كفضل القمر ليلة البدر (يعني د څورلسم د شپې سپوږمۍ) على سائر الكواكب.

وَأَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ يَتَسَاءَلُونَ ۝

مخ را اړوي بعض د جنتيانو پر بل بعض پوښتنې سره کوي چې تا په دنيا کې څه عمل کاوه او خوف له عذاب څخه د خدای دې څو مره ؤ الى غير ذالک.

**پوهه:** چې اقبل ماضي صيغه ده په معنی د مستقبل ده، او دا جمله چونکه لفظًا ماضي ده نو حال ده په تقدير د قد کما هو القانون في النحو له ضمير مجرور څخه د عليهم.

**فائده:** د دې اية معنی دا نه ده چې يو بعض معين د بل بعض معين څخه پوښتنه کوي بلکې هر بعض هم سائل دی او هم مسئول.

**فائده:** دا پوښتنې ظاهره دا ده چې په جنت کې سره کېږي او هغه روايت چې طبري له ابن عباس رضی الله عنهما څخه کړې ده چې دا پوښتنې هغه وخت کېږي چې نفخه ثانيه وسي في الحال کېږي، علامه بغدادي وايي لا اراه صحيحًا عن ابن عباس رضی الله عنهما لبعده جدًا.

**درويش وايي:** چي عند النفخة الثانية هغه وخت ټول له محشر ګاه د حيرت په درياب کي غرق وي حتی چي انبيا عليهم السلام د نفسي نفسي نعرې وهي.

قَالُوٓا۟ إِنَّا كُنَّا قَبْلُ فِىٓ أَهْلِنَا مُشْفِقِينَ

دوی به وايي اي يقول المسؤلون، جمله مستأنفه ده في جواب من يقول ماذا يقولون المسئلون موږ وُ تر دې د مخه يعني في الدنيا په خپلو کورو کي بيرېدلو له عذاب څخه د خدای ﷻ، د في اهلنا فائده دا ده چي په دنيا کي نو دا تاکيد دی د قبل، او دا احتمال هم سته چي کلمه في لپاره د معيت وي يعني موږ او اهل زموږ ټول له د خدای له عذاب څخه بېرېدلو ولې چي اهل هم زموږ متابعت يې کاوه.

فَمَنَّ ٱللَّهُ عَلَيْنَا وَوَقَىٰنَا عَذَابَ ٱلسَّمُومِ

نو خدای عزوجل احسان وکړی زموږ سره چي توفيق د ايمان يې راکړی او زموږ ګنهونه يې را وبخښل او احسان يې راسره وکړی په دخول کي د جنت (کما قال العلماء قاطبة ان ادخال الجنة انما هو بفضل الله فقط، البته تقسيم د درجاتو د جنت پر اندازه د عمل د دنيا دی) او موږ له عذاب څخه د اور چي د بدن په کوچني سوريو ننوځي لکه مار او لندی او غونډک زهر چي په مسامو کي د بدن نفوذ کوي، او الحسن وايي چي السموم د دوږخ له نومانو څخه دی.

إِنَّا كُنَّا مِن قَبْلُ نَدْعُوهُ ۖ إِنَّهُۥ هُوَ ٱلْبَرُّ ٱلرَّحِيمُ

موږ وُ د مخه يعني په دنيا کي عبادت د خدای مو په وحدانيت کاوه او امان مو له اوره غوښتی، په تحقيق خدای محسن دی، او ابن عباس وايي مهربان دی، او الضحاک وايي الصادق فيما وعد دی او کثير الرحمة دی.

فَذَكِّرْ فَمَآ أَنتَ بِنِعْمَتِ رَبِّكَ بِكَاهِنٍ وَلَا مَجْنُونٍ

"فذکر" ای دوام وکړه پر ما انت عليه من التذکير بما انزلت عليک من الآيات والذکر الحکيم، او باک مه کوه په هغه عيبو چي کفار مکه پر تا وايي من الاباطيل "فما انت" تعليل للامر بالتذکير ولي ته نبي يې من الله، او نه يې ته "بنعمت ربک" ای متلبسًا بنعمة ربک، نو دا لفظ حال دی له انت ضمير څخه "بکاهن ولا مجنون" مراد له نعمت څخه د خدای نبوت او عقل سليم دی يعني

نبوتک ينافي الكهانة (وغيب كوي د شيطانانو او جنيانو په ذريعه) لانها وظيفة اخوان الشياطين وعقلک السليم ينافي الجنون، مفسرين وايي چي دا ايت نازل دی په حق کي د هغو کسانو يعني من اهل مكة چي دوی په اشهر کي د حج پر لويو لارو چي مکې ته به مسافر راتله خلک به يې کښېنولي وه چي مسافرانو ته به يې ويل چي په مکه کي يو سړی دی په نامه د محمد (ﷺ) چي د هغه ملاقات ونه کړئ، ولي چي هغه هم کاهن او هم ساحر او هم شاعر او هم مجنون دی، ابن جرير له ابن عباس ؓ څخه روايت کړی دی چي کفارو د مکې د عليه الصلوة والسلام په باره کي په دار الندوة (چي د دوی قومي مشورتي ځای ؤ) سره کښېنستل چي بايد موږ د محمد (ﷺ) سره څه وکړو، بعض د دوی دا رای وړاندي کړه چي په يو سرای کي به يې لاس تړلی بندي کړو يا ورځي يا مياشتي يا کلونه، انتظار ورته وکړئ چي په خپله مړ سي او موږ به ځني خلاس سو، ولي دی خو هم يو له شاعرانو څخه دی لکه زهير او نابغه چي برجسته شاعران وه او مړه سوه، فانزل الله تعالى:

﴿أَمْ يَقُولُونَ شَاعِرٌ نَّتَرَبَّصُ بِهِۦ رَيْبَ ٱلْمَنُونِ﴾

**پوه سه**: چي ام په معنی د بل أ دی چي بل لپاره د نقل من مضمون الى مضمون آخر دی، او معنی أ استفهام انكاري ده، يعني شاعر نه دی او تربص انتظار ته وايي، او منون مشتق دی له من څخه په معنی د قطع او مراد ځني دهر او زمانه ده، ولي چي د زمانې تېرېدل قطع د اعمار كوي او ريب مصدر دی د رابه ای اضطربه واقلقه او حمل يې مبالغة دی لکه زيد عدل.

**پوه سه**: چي تفسير د منون په دهر سره مروي دی عن مجاهد ؒ واخرج ابن جرير وغيره عن ابن عباس ؓ چي ده تفسير د منون په موت سره کړی دی، والظاهر ان المنون لفظ مشترک بين الدهر والموت.

**فائده**: په بعض رواياتو کي رِيَبُ په صيغه د جمع راغلی دی لقصد تعدد انواع المنايا يعني بعض انسانان په يوه مرض مړه کېږي او بعض په بل مرض كما يشهد به المشاهدة.

﴿قُلْ تَرَبَّصُوا۟ فَإِنِّى مَعَكُم مِّنَ ٱلْمُتَرَبِّصِينَ﴾

ته ووايه يا محمد (ﷺ) دوی ته يعني كفارو ته د مکې چي تاسي انتظار کوئ زما

و مرګ ته زه منتظر یم ستاسي و هلاک ته تر څو امر او تقدیر د خدای راځي په تاسي کي چي یا به خدای عذاب در کړي فتعذبوا بالسیف کیوم بدر وقد کان کذالک.

أَمْ تَأْمُرُهُمْ أَحْلَامُهُم بِهَٰذَا ۚ أَمْ هُمْ قَوْمٌ طَاغُونَ

(احلامهم، ای عقولهم، ام منقطعه په معنی د بل آه دی بل لپاره د انتقال دی او همزه لپاره د تعجیب او انکار دی) "بهذا" یعني په دې اقوالو سره چي یو د بل نقیض دي ولي چي کاهن خو ذی فطانة او صاحب د فکر وي هره خبره چي کوي په ډېر غور سره یې کوي او لیوني مغلوب العقل وي هر څه چي پر خوله ورغله هغه خبره کوي او شاعر یو کلام موذون په اوزانو مخصوصه ؤ سره وایي چي په کتابو کي د اوزان الشعر و القوافي لکه محیط الدائرة وشرح المختصر الشافي، او قرآن مجید له دې قسم څخه نه دی چي پر رسول اللهﷺ د رب الجلیل له خوا نازل سوی دی ولا تیاتي من المجنون، بل من کثیر من العلماء.

**درویش وایي:** چي سردارانو د قریشو به ویل چي علیه الصلوة والسلام شاعر دی، او لیونی او کاهن دی، نو خدای عزوجل پر دوی رد وکړی چي ستاسي څومره ضعیف عقلونه دي چي دا خبري په علیه الصلوة والسلام پوري تړئ چي نه پېرېږئ چي ستاسي د خاله د خور زوی پر تا شاهدي د کذب او بیعقلي اداء کړي.

**پوه سه:** چي ام ثاني په معنی د بل دی یعني بلکې دوی یو قوم دی چي تر اندازه یې تېری کړی دی په صرف عناد کي، ولي بېله عناده بل شی دوی ته نه دی پاته لانه لاسبیل لهم الی القدح في القرآن لانه کلام معجز لبلغاء العدنان عن الاتیان بسورة من مثله کما مر تفصیله في تفسیر سورة البقرة ولا الی القدح في الرسولﷺ لان المعجزات الباهرات کشق القمر لیلة البدر علی السماء بمحض اشارته وامثالها شاهدة صدق علی نبوة محمدﷺ وقد مر بیان الاقوال المتناقضة لهم في شان النبيﷺ کما مر تفصیله فلم یبق في ایدیهم الا العناد وانکار الامر المعلوم لکل عاقل.

أَمْ يَقُولُونَ تَقَوَّلَهُ ۚ بَل لَّا يُؤْمِنُونَ

ام په معنی د بل دی، یعني دوی وایي چي قرآن کریم د محمدﷺ اختراع ده له ځانه څخه من عند الله شی نه دی، بلکې دوی ایمان نه لري پر قرآن عنادًا واستکبارًا، نو ځکه دوی مذکوره طعنونه پر قرآن کریم وایي.

فَلْيَأْتُوا بِحَدِيثٍ مِّثْلِهِ إِن كَانُوا صَادِقِينَ

دوى دي راتگ وکړي په داسي يوه خبره سره چي هغه مثل د قرآن وي (ولي چي دوى خو عرب دي او په دوى کي فصحاء او بلغاء هم سته، کريمه: قل لو اجتمعت الانس والجن على ان يأتون بمثل هذا القرآن الى اخير الآية) "ان كانوا صادقين" شرط مستغن عن الجزاء بما قبله، هذا رد للتقول فقط، وقال المظهري هذا رد لجميع دعاويهم وعبارته فيما قالوا كاهن، او مجنون، او شاعر اذ فيهم كثير من الكهنة، والمجانين والشعراء آه.

**درويش وايي**: چي د هغو قولو د دوى جوابات خو د مخه تېر سوي وه ماسوى د تقول د جواب څخه، نو مناسب داده چي دا يوازي د تقول د اعتراض جواب دى كما اعترف بذالک المظهري بقوله ويجوز انيكون رداً للتقول فقط آه والله اعلم بالصواب.

**درويش وايي**: چي روح البيان هم دا آيت رد د دعوى د تقول بو للى دى ولبس.

أَمْ خُلِقُوا مِنْ غَيْرِ شَيْءٍ أَمْ هُمُ الْخَالِقُونَ

آيا دوى پيدا سوي دي بېله خالق؟ ابن عباس وايي وذالک محال ولي هغه شى چي د مخه موجود نه وي نه دى متصور وجود د ده بېله موجد لکه دهريه ملاعنه چي وايي او عقل نه مني چي دا احسن الصور چي دا انسان دى بېله خالق حكيم او عليم دي پيدا سوى وي فتبارک الله احسن الخالقين، او الطبراني وايي چي معنى د ايت داده چي دا نوع انساني چي حواس ظاهره او باطنه او عقل او ادراک لري نه دى عبث لا شى دي پيدا وي يعني من العبادات والمجازات بلکي عبث لا يؤمرون ولا ينهون كذا قال الزجاج وابن كيسان.

"ام هم الخالقون" او يا دي دوى د خپلو ځانو پيدا كونكي وي، لان ذالک اظهر في الاستحالة وبداهة استحالته ظاهر عند العوام ايضاً.

أَمْ خَلَقُوا السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ بَل لَّا يُوقِنُونَ

يا دوى يعني الكفارو دي پيدا كړي وي اسمانونه او مځکه، ولي چي د دوى څخه چي به چا پوښتنه وکړه چي اسمانونه او مځکه چا پيدا كړي دي؟ دوى به ويل الله خلقها "بل لا يؤمنون" او دوى پر خپله خبره يقين نه لري ولي كه دوى يقين درلوداى،

نو د بتانو له عبادت څخه (چي د يوې ذرې خالق هم نه دي) به يې مخ اړولی وای و عبادت ته د خالق السموات والارض بلا شركة الجمادات معه تعالى في العبادة.

اَمْ عِنْدَهُمْ خَزَآئِنُ رَبِّكَ اَمْ هُمُ الْمُصَيْطِرُوْنَ ﴿۳۷﴾

آيا د دوی په تصرف کي وې خزانې د تصرفاتو د خدای حتی چي دوی به نبوت و هغه چا ته ورکولای چي د دوی خوښ وای لکه وليد بن المغيرة په مکه کي يا عروة بن مسعود الثقفي په طائف کي لکه دوی چي به ويل چي که نبوت من الله حق وای له جانبه څخه د خدای نو خو دوو نامړو کسانو ته به يې ورکړی وای لا ليتيم ابي طالب، يا مراد له خزائنو څخه خزانې د علم د خدای دي حتی چي به پوهېدای چي مستحق د نبوت څوک دی "ام هم المصيطرون" او يا دوی مسلط دي (په فارسي وايي برگماشته گان) پر ټولو شيانو چي يجعلونها حسب مشيتهم.

اَمْ لَهُمْ سُلَّمٌ يَّسْتَمِعُوْنَ فِيْهِ ۚ فَلْيَاْتِ مُسْتَمِعُهُمْ بِسُلْطٰنٍ مُّبِيْنٍ ﴿۳۸﴾

او يا دوی لره يوه ځينه سته (چي په فارسي يې نردبان بولي او په اردو يې سېړهي بولي) چي دوی غوږ نيولی وای و خبرو ته د ملکو "فيه" يعني صاعدين په هغه سلم کي، چي ملکي څه وايي نو دوی ته به علم غيب حاصل سوی وای، نو دلته فيه په معنی د عليه دی كما في قوله تعالى: لاصلبكم في جزوع النخل (اى على جزوع النخل)

"فليأت مستمعهم" بايد دوی راوړي هغه څه چي اورېدلي يې وي (وبالفارسية: پس بيايد بآرد شنونده ايشان كه بر آسمان بر فتند و پيغام غيب شنيدند، دا امر تعجيز دی يعني اظهار عجزهم للناس كافة) بسلطان: اى بحجة واضحة تصدق استماعهم، وبالفارسية حجتی روشن كه گواه باشد بر صدق استماع ايشان.

اَمْ لَهُ الْبَنٰتُ وَلَكُمُ الْبَنُوْنَ ﴿۳۹﴾

آيا خدای لره لوڼې سته (حيث يقولون الملائكة بنات الله) او تاسي لره زامن سته.

**يوه سه:** چي په دې ايت کي اظهار د سفاهت د دوی دی چي دوی بې‌قوفان دي چي خدای ته هغه څه منسوبوي (يعني لوڼې) چي د دوی په خپله نه دي خوښې، لکه بيل چي راغلي دي واذا بشر احدهم بالانثى ظل وجهه مسودًا كظيم الآية، نو ګويا دوی ځانونه تر خدای بالا بولي! نعوذ بالله، نو چي څوک دو مره خروي هغه

بايد په تعداد کي د ذوي العقل حساب نه سي، فضلاً عن الترقي الى عالم الملكوت وسماع كلام ذي العزة والجبروت.

**درويش وايي:** چي ددې بيان سره چي موږ وکړی ارتباط ددې ايت د ماقبل ايت سره ام لهم سلم ثابت سو.

**فائده:** التفات له غيبت څخه و خطاب ته لتشديد الانكار عليهم والتوبيخ لهم فافهم، له دې کبله خدای عزوجل په بل ځای کي د قرآن کريم داسي ويلي دي:- الكم الذكر وله الانثى تلك اذاً قسمة ضيزى.

اَمْ تَسْـَٔلُهُمْ اَجْرًا فَهُمْ مِّنْ مَّغْرَمٍ مُّثْقَلُوْنَ

آيا ته غواړې له دوی څخه مزدوري پر تبليغ د رسالت "فهم من مغرم" له التزام څخه د اجر چي تاوان دی "مثقلون" درانه دي، نو له دې سببه چي ته د دوی وړې په درانه بار د اجرور درنې کړې دوی ستا متابعت نه کوي سره ددې معجزات باهرات پر لزوم د اتباع ستا پر دوی باندي موجود دي.

**يوه سه:** چي ام دلته په معنی د همزة الانكار دی.

اَمْ عِنْدَهُمُ الْغَيْبُ فَهُمْ يَكْتُبُوْنَ

ابن عباس وايي چي مراد له غيب څخه لوح محفوظ دی چي غائب شيان په هغه کي مثبت دي "فهم يكتبون" او دوی له هغه څخه نوشته کوي چي محمد ﷺ نبي نه دی متقول دی، يا بعث بعد الموت نسته يا ثواب بالجنة او عقاب بالنار لکه محمد (ﷺ) چي وايي باطل دی.

اَمْ يُرِيْدُوْنَ كَيْدًا فَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا هُمُ الْمَكِيْدُوْنَ

يعني که کفار مکه په هغه څه چي د مخه تېري سوې يعني مقالات فاسدة لهم (کاهن و شاعر و مجنون) کفايت نه کوي بلکې تا ته يې بل پلان سنجويلی دی چي دوی په دار الندوة کي مشوره سره وکړه چي تا به يا وژني يا به حبس دائم در کوي يا به دي له مکې څخه اخراجوي، قال الله تعالى في بيان ذالك الكيد: اذ يمكر بك الذين كفروا ليثبتوك (اي يحبسوك) او يقتلوك او يخرجوك الآية.

**فائده:** په دې آيت سره اخبار بالغيب دى او معجزه ده، ولې مشوره د دار الندوة په هغه وخت كې وه چې عليه الصلوة والسلام هجرت ته اماده ؤ يعنې دا مشوره د دوى په دار الندوة كې آنحضرت ﷺ يې مجبور كړى و هجرت ته او نزول د دې سورة خو قبل ؤ د دار الندوة تر مشورې كما يدل الاثار الصحيحة فافهم.

"فالذين كفروا هم المكيدون" پس هغه كسان چې دا كيد يې سنجولى ؤ د دوى كيد به پر دوى احاطه وكړي او جزاء د كيد به دوى ته وركړي ولې اكثر د دې كيد د كولو لپاره چې اماده وه په بدر كې و وژل سول په شمول د فرعون هذه الامة چې مشري د دار الندوة د مشورې ده پر غاړه اخستې وه يعنې ابو جهل.

**فائده:** د بدر غزاء په دويم كال كې د هجرت وه چې د نبوت د عليه الصلوة والسلام پنځلسم كال ؤ.

اَمْ لَهُمْ اِلٰهٌ غَيْرُ اللّٰهِ ؕ سُبْحٰنَ اللّٰهِ عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ﴿۴۳﴾

آيا دوى لره سته اله چې دوى له عذاب څخه وساتي او له دوى سره دې مرسته وكړي، پاک او منزه دى الله د دوى له شرک څخه، كه كلمه د ما مصدريه وي او كه كلمه د ما موصوله وي نو عائد يې محذوف دى، والتقدير عن الذي يشركونه يعني به تعالى، يو محقق شاعر وايي:

**بر زيل عزتش ننشيند غبار شرک .... باوحدتش كسى دم شركت چه سان زند**

وَاِنْ يَّرَوْا كِسْفًا مِّنَ السَّمَآءِ سَاقِطًا يَّقُوْلُوْا سَحَابٌ مَّرْكُوْمٌ ﴿۴۴﴾

دا جواب د هغه قول د دوى دى: فاسقط من السماء كسفًا.

**فائده جديده:** لفظ د كسفًا په كسره د كاف او په سكون د سين مفرد دى په دې ايت كې فقط، نور په ټوله قرآن كې كِسَفًا وكِسْفًا په سكون د سين او په حركت د سين دواړه قراءته مجوز دي كما قال القراء السبعة.

وحاصل هذه الآية: كه زه د دوى د عذاب لپاره يوه ټوټه له اسمانه را وغورځوم نو هم دوى له خپل كفر څخه لاس نه اخلي حتى يهلكوا بالاستيصال، لكن حكمت الهي د دوى د استيصال اراده نه لري، دوى به له فرط جهل څخه وايي "يقولوا سحاب مركوم" دا وريځ ده جمع سوې او پنډه باران به واوري، لكه عاديان چې توره وريځ

وليدل مستقبل اوديتهم قالوا هذا عارض ممطرنا، دا وريځ ده باران به و اوروي چي هغه د خدای عزوجل عذاب وُ چي په ځای کي د معهود باران یې د اور باران پر وکړی.

فَذَرْهُمْ حَتّٰى يُلٰقُوْا يَوْمَهُمُ الَّذِيْ فِيْهِ يُصْعَقُوْنَ ۙ

دوی پریږده او طلب د نزول د عذاب پر دوی مه کوه (حسین کاشفي" وایي: پس دست بدار از ایشان یعني حرب مکن با ایشان که هنوز به قتال مامور نیستی ومکافات ایشان بگذار) "حتی یلاقوا" یعني یعاینوا.

**پوه سه:** چي یـومهم مفعـول بـه دی د یلاقـوا ظرف نـه دی "یصعقون" ای یهلکون وهو یوم یصیبهم الصعقه بالقتل یوم بدر لا النفخة الاولی کما قیل اذ لا یصعق بها الا من کان حیًا حینئذ او د مکي کافران د عصر نبوي خو تر نفخة اولی پوري ژوندي نه پاتېږي.

**پوښتنه:** په هغه ایت کي: فصعق من في السموات والارض د صعقة څخه څه شی مراد دی؟

**ځواب:** مراد ځني موت د کل ذی روح دی وهو عند النفخة الاولی کذا في روح البیان.

يَوْمَ لَا يُغْنِيْ عَنْهُمْ كَيْدُهُمْ شَيْئًا وَّلَا هُمْ يُنْصَرُوْنَ ۝

هغه ورځ چي فائده نه رسوي کید د دوی (چي و علیه الصلوة والسلام ته دوی سنجولی وُ شیئًا من الاغناء) نه د دوی سره کومک کړه کېږي چي له عذاب څخه د خدای د دي خلاص کړي.

وَاِنَّ لِلَّذِيْنَ ظَلَمُوْا عَذَابًا دُوْنَ ذٰلِكَ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ۝

"عذابًا" ای في الدنیا "دون ذالک" ای قبل ذالک الیوم یعني یوم موتهم في البرزخ. قال ابن عباس یعني القتل یوم بدر، وقال مجاهد" هو الجوع و قحط بسبع سنین چي علیه الصلوة والسلام دوی ته ښېرا وکړه: اللهم اعني علیهم بسبع کسبع یوسف، او براء بن عاذب وایي یعني عذاب القبر.

"ولکن اکثرهم لایعلمون" لکن اکثر د دوی نه پوهېږي چي حال خو کما ذکر دی لفظ د اکثریې و وایه اشاره و دې ته ده چي بعض د دوی پوهېږي و لکن پر کفر چي ټینګ دي عنادًا.

وَاصْبِرْ لِحُكْمِ رَبِّكَ فَإِنَّكَ بِأَعْيُنِنَا وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ حِيْنَ تَقُوْمُ ۝

او ته صبر وكړه پر حكم د خداى يا محمد چي دوى ته مهلت وركړي تر يوم الموعود پوري او ته يې د دوى په مابين كي پرې ايښى يې مع مقاسات الاحزان والهموم "فانك باعيننا" ته زموږ په حفاظت كي يې، فالعين مجاز عن الحفظ، زجاج وايي چي دوى مكروه نه سي رسولاى و تا ته لكه دوى چي يې په دار الندوة كي ترون كړى وُ.

**پوه سه:** چي "و سبح آه" عطف دى پر و اصبر، و معناه ته تسبيح و وايه متلبس په حمد د رب ستا اى قل سبحان الله و بحمده "حين تقوم" هغه وخت چي ته ولاړيږې له هر مجلس څخه، فائده يې داده چي كه مجلس د خير وُ خير به دي زيات سي او كه خير نه وُ دا سبحان الله و بحمده به يې كفاره سي، له ابو هريره څخه روايت دى، دى وايي چي رسول الله ﷺ وويل كه څوک په يو مجلس كي ناست وُ فكثر فيه لغطه (په مجلس كي ده ډېرې بېهوده خبري يعني تو كي ټكالي وكړې) نو د مخه تر ولاړېدو له هغه مجلس څخه ده داسي وويل: سبحانك اللهم و بحمدك اشهد ان لا اله الا انت استغفرك و اتوب اليك، كان كفارة لما بينهما، رواه البغوي او د ترمذي په روايت كي داسي راغلي دي: الا غفرله ماكان في مجلسه، وعن رافع بن خديج ده وويل چي رسول الله ﷺ په اخير د عمره دده مبارك چي اصحاب كرام به ورته را جمع سوه، نو چي هر وخت به دى مبارك ولاړېدى نو به يې داسي وويل: سبحان الله و بحمدك اشهد ان لا اله الا انت استغفرك و اتوب اليك ان عملت سوء او ظلمت نفسي فاغفرلي انه لا يغفر الذنوب الا انت استغفرك و اتوب اليك ان عملت سوء، رافع بن خديج وايي قلنا يا رسول الله ﷺ ان هذه الكلمات احدثتهن قال اجل (هو) جبرئيل ما ته راغلى فقال يا محمد دغه كلمات كفارات دي د مجلس، رواه النسائي والله واعلم، او حاكم دا حديث صحيح بللى دى، آلوسي بغدادي وايي و الاثار في ذالك (يعني چي دغه كلمات په وخت كي د ولاړېدو له مجلس څخه ويلي دي كمامر) او بعض مفسرين وايي چي د حين تقوم معنى داده چي لمانځه ته ولاړيږې چنانچه اخرج ابو عبيد و ابن المنذر عن سعيد بن المسيب حق على كل مسلم حين يقوم الى الصلوة ان يقول

سبحان الله وبحمده، لان يقول لنبيهﷺ وسبح بحمد ربک حين تقوم.

**درويش وايي:** چي د سعيد بن المسيبؒ په نيز له تقوم څخه مراد قيام الى الصلوة دی لا القيام من المجلس، او د سعيد بن منصورؒ وغيره عن الضحاک انه قال في تفسير الآية حين تقوم الى الصلوة تقول هؤلاء الكلمات سبحانک اللهم و بحمدک وتبارک اسمک وتعالى جدک ولا اله غيرک، وحكاه صاحب البحر عن ابن عباسؓ او ابن مردوية له ابن عباسؓ څخه دا روايت هم کړی دی انه قال وسبح بحمد ربک حين تقوم من فراشک الى ان تدخل في الصلوة، ورته روايت له ابن السائبؒ څخه هم منقول دی، او زيد بن اسلمؒ وايي حين تقوم من القائلة (د غرمې له خوب څخه) دې وايي والتسبيح اذ ذاک صلوة الظهر دی، او عاصم بن حميدؒ وايي چي ما له عائشېؓ څخه پوښتنه وکړه چي په څه شي افتتاح کوله رسول الله ﷺ چي د شپې به راوېښ سو (يعني للتهجد) دې؟ وويل اذا قام كبر الله (يعني الله اكبر) لس واره و حمد الله لس واره وسبح الله لس واره، و استغفر الله لس واره، وقال اللهم اغفرلي واهدني و ارزقني وعافني، او پناه به يې و غوښتل من ضيق المقام يوم القيامة، رواه البغويؒ.

**درويش وايي:** چي دا حال وُ د سيد المرسلين شفيع المذنبين محبوب رب العالمينﷺ، نو موږ ته لازمه ده چي وايو به يې، رشتيا داده چي هر څونه چي قرب و خداى عزوجل ته د پرېږي هغونه عجز او انکسار او بېره له خداى ﷻ څخه زياتېږي.

وَمِنَ الَّيْلِ فَسَبِّحْهُ وَإِدْبَارَ النُّجُومِ ﴿٤٩﴾

کلمه د من لپاره د تبعيض ده باتفاق المفسرينؒ، مقاتلؒ وايي د صلوة الليل څخه مراد صلوة المغرب والعشاء دي، لکن هغه تفاسير چي د درويش سره حاضر دي عند التفسير الايوبي هغه ټوله وايي چي مراد څني د تهجد لمونځ دی نو د سبحه څخه مراد صل دی تسمية للكل باسم بعض اجرائه.

**نکته:** صلوة الليل يې ولي خاص کړی په ذکر سره لان العبادة بالليل خصوصًا بعد النوم اشد دی پر نفس باندي او ابعد دی له رياء څخه هم له دې سببه يې جار و مجرور دمخه کړی، او بله وجه يې داده چي لمونځ معراج المؤمنين دی او معراج

نبوي ﷺ هم په بعض کي د شپې ؤ کما مر قصته الطويلة مع غاية التفصيل في تفسير قوله تعالى: سبحان الذي اسرى بعبده ليلا الاية، في التفسير الايوبي.

"وادبار النجوم" چي ستوري شا و ګرځوي يعني غائب سي په سبب د طلوع الفجر، الضحاک" وايي چي مراد ځني د سهار لمونځ دی، لکن اکثر مفسرين پر دې دي چي مراد ځني دوه رکعته سنت دي د سهار تر لمانځه د مخه، له سيدتنا وامنا عائشة ؓ څخه روايت دی دې ويل قال رسول الله ﷺ رکعتا الفجر (ای قبل صلوة الفجر) خير من الدنيا ومافيها.

**درويش وايي:** چي علماء بالاجماع وايي چي اکد السنن دوه رکعته سنت د سهار دي، که څه هم روح البيان څه ناڅه مخالفت بنکاره کړی دی لکن العزة والغلبة للتکاثر.

تمت بالخير والعافية تفسير سورة الطور.

**درويش وايي:** چي زه د دغه سورة له تفسير څخه پر لس بجې تخميناً د ورځي د يکشنبې (۵) تاريخ د ذی الحجة الحرام من شهور سنه (۱۴۳۲) هـ فارغ سوم بعونه تعالى و حسن توفيقه اياى فاحمده حمدًا کثيرًا جزيلاً جميلاً کما يحب ربنا و يرضٰى والصلوة والسلام على نبيه المجتبٰى و على آله وصحبه الاتقياء.

بيت:- بضاعت نيا وردم الا اميد .... خدايا زعفوم مکن نا اميد

چهار چيز اورده ام شاها که در کنج تو نيست

عـــاجزی و مسکينی فقر گناه اورده ام

مصرع:

چي شاګرد راته بلا سو له حاسده څه ګله

بيت:

صبا مدينے ميں مصطفٰیؐ سے ہم غريبوں کا سلام کہنا .... نہيں کوئی بجز تمہاری بس ميرا اتنا پيام کہنا

سُورَةُ النَّجْمِ مَكِّيَّةٌ وَهِيَ اِثْنَانِ وَسِتُّونَ آيَةً وَثَلٰثُ رُكُوْعَاتٍ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

**پوه سه:** چي دې سورة ته سورة النجم بدون الواو هم وايي، دا سورة مکيه دی عند اکثر المفسرين على الاطلاق يعني ټوله او په تفسير اتقان کې وايي چې بعض مفسرين وايي چې الذين يجتنبون الى اتقى، او بعض مفسرين وايي چې افرئيت الذی تولی دا مدني دي او ايتونه ددې سورة دو شپېته (۶۲) دي د کوفيانو په نېز او غير کوفيان يې يو شپېته (۶۱) بولي، اخرج ابن مردوية عن ابن مسعودؓ وهي اول سورة اعلن رسول اللّٰهﷺ بقرأتها نو په حرم مکي کې يې تلاوت وکړی والمشرکون يسمعون (غوږ يې ورته نيولی وُ) او بخاري، مسلم، ابو داوُد او نسائي له ابن مسعودؓ څخه روايت کړی دی چې دا اول سورة دی چې سجده تلاوت پکښې راغلی، نو عليه الصلوة والسلام چې د سجدې ايت ته ورسېدی سجده يې وکړه او ټولو خلګو يعنې مشرکانو هم سجده وکړه مګر يوه سړي سجده ونه کړه هغه په لاس کې څه خاوري واخستلې پر هغو خاورو يې سجده وکړه او دا يې وويل چې ماته دغه کفايت کوي، ابن مسعودؓ وايي "فرئيته بعد ذالک قتل کافرا وهو امية بن خلف" او بحر العلوم وايي چې عليه الصلوة والسلام چې سجده وکړه سجد معه المؤمنين والمشرکون والجن والانس غير ابی لهب فانه رفع جفنة من تراب فسجد عليه (يعني پر يوه موټ خاوره) او ددې دوو روايتو منافات نسته، ولې احتمال سته چې امية بن خلف او ابی لهب دواړو دي دا کار کړی وي.

**فائده:** سورة النجم په مياشت کې د روژې من السنة الخامسة للنبوة نازل سوی دی.

**درويش وايي:** چې روح البيان د سجده نه کونکي درې کسان ذکر کړي دي، يو ابی لهب، او بل روايت دادی چې وليد بن مغيرة او په بل روايت امية بن خلف وُ، روح البيان وايي چې احتمال سته چې دغو درې سره کسانو دي دا کار کړی وي يعني رفع التراب الى الجبهة لکن بعضهم فعل ذالک تکبرا وبعضهم فعل ذالک عجزا عن السجود، چنانچه وليد بن المغيرة شيخ کبير وُ طاقت د سجدې يې نه درلود ی او ابو لهب خو يقينًا کبرًا و عنادًا سجده ونه کړه او په اميه بن خلف کې دواړه احتماله سته، ولې چې هغه خو هم شيخ وُ لکن دومره نه وُ شيخ لکه وليد بن المغيرة لکن ډېر سخت دښمن د عليه الصلوة والسلام وُ فيحتمل عدم سجدته لاجل التکبر او لاجل الشيخوخة فافهم.

وَالنَّجْمِ إِذَا هَوٰى ①

**درویش وايي:** چي په ''النجم'' کي هم اختلاف دی او په ''هوٰی'' کي هم اختلاف دی، والاظهر والاشهر دا دی چي مراد له النجم څخه ثريا (چي په پښتو يې پيروني بولي چي اووه يا اته ستوري ببخي سره نژدې دي مجموعې ته د هغو ثريا وايي) او هوٰی د دې النجم غروب يا طلوع ته هم وايي، دا روايت دی د الوالبي او العوفي عن ابن عباسؓ وجاء في الحديث عن ابی هريرةؓ ما اطلع النجم (ای الثريا قاله البغوي) صباحًا او په مځکه کي يو آفت وي (لکه وبا يا نور امراض) الا رفع، او مجاهدؒ وايي چي مراد له النجم څخه ټول ستوري د اسمان دي حين تغرب، واللام للجنس، او مراد له غروب څخه يا حقيقت غروب دی، يا غيبوبت له ابصارو څخه په سبب د طلوع الشمس او يا مراد له هوٰی څخه يې طلوع ده، دوی وايي هر طالع نجم بولي او عکرمهؒ له ابن عباسؓ څخه روايت کوي چي مراد له نجم څخه هغه ستوري دي چي شيطان په وشتل کېږي وقت استراق السمع، او ابو حمزه الثمالي وايي چي مراد هغه ستوري دي چي له اسمان څخه را لوېږي يعني يوم القيامة، او عطاءؒ له ابن عباسؓ څخه داسي روايت کړی دی چي مراد له النجم څخه قرآن مبارک دی قرآن مبارک په دې نجم بولي چي نزول يې عليه الصلوة والسلام ته نجمًا نجمًا سوی دی په درويشت (۲۳) کاله زمانه کي د نبوت د ده، وفي العربية يسمى التفريق تنجيمًا، وقال الكلبيؒ الهوى النزول من الاعلى واسفل ته، وقال الاخفشؒ النجم هو النبت الذي لاساق له (له بادرنګ، هندواني، چمبر خيال وغيرها) ومنه قوله والنجم والشجر يسجدان، وهوئه سقوطه على الارض (چي پر مځکه پرېوزي) وقال جعفر الصادقؒ چي مراد له النجم څخه محمد ﷺ دی وهويه نزوله ليلة المعراج الى الارض، او بعض علماء وايي چي مراد له نجم څخه مسلمانان دي وهويه دفنه في القبر.

**پوښتنه:** تعين د دغو وختو چي ذکر سوه په قسم سره د څه حکمت لپاره وکړی؟

**ځواب:** ان وقت الهوى للنجم چي مراد ځني ثريا سي افضل له او قاتو څخه د ثريا دی کما مر، او که مراد له نجم څخه مطلق ستوري وي يعني چي شيطانان په ولي په

وخت کي د استراق السمع او هوی يې شغله د ستوري وي چي شيطانان په سوځي فلاشک ان رجم الشيطان اهم مقصود دی من خلق النجوم کما نطق به القرآن (وجعلناها رجومًا للشياطين) او که امر انتشار د ستورو په ورځ د قيامت وي فذالک وقت اتمام المقاصد التي خلق لاجلها النجوم، او که مراد له هوی څخه غروب وي د ستورو فلانه اوضح دليل علی وجود الصانع القادر، او هم دا سبب دی چي خليل الرحمن ابراهيم نفي د خدايي له ستورو څخه او د لمر او سپوږمۍ څخه وکړه په دې عبارت سره لا احب الآفلين ای الغاربين، او که له نجم څخه مراد آيات القرآن و سوره او له هوی څخه نزولها الی النبي ﷺ او يا مراد له نجم څخه محمد ﷺ او له هوی څخه مراد راکښته کېدل د ده مځکې ته په ليلة المعراج کي فلاشک ان نزول القرآن لهداية الناس اهم شيئ في الدنيا ولاشک ايضًا ان نزوله من السماء الی الارض ليلة المعراج نعمة جليلة من الله تعالی لا نظير لها، او که مراد له نجم څخه مسلمانان وي او له هوی څخه مراد د دوی دفن وي په قبر کي فلاشک ان المسلم مع ايمانه واعماله الصالحة نعمة جليلة له، ولي دی خلاص سو له غوائل څخه د نفس د شيطان چي په ژوند کي يې احتمال ؤ، و جواب القسم قوله تعالی:

مَا ضَلَّ صَاحِبُكُمْ وَمَا غَوَىٰ ﴿٢﴾

نه دی ګمراه سوی له لاري څخه د هدايت، او نه يې ستا بعثت کړی دی و باطلي لاري ته بل هو علی صراط مستقيم چي د آخرت لار ده.

**پوه سه:** چي ضلال او غي سره يو شی نه دی بلکې عطف د ما غوی پر ماضل عطف الخاص علی العام دی لان الانسان قد يکون غير معتقد اصلاً لاصالح ولا فاسد وقد يکون معتقدًا لشيئ فاسد وهذا الثاني هو الغي فان الغواية هو الخطا في الاعتقاد خاصة، والضلال قد يکون في الاقوال والافعال والاخلاق وقد يکون في العقائد التي شرعها الله فالغواية فرد من الضلال.

**فائده:** دا نفي د ضلال او غواية له عليه الصلوة والسلام څخه چي خدای پاک وکړې رد دی د هغه قول د مشرکانو د مکې چي دوی به ويل ضل محمد عن دين آبائه وخرج من الطريق وتقول شيئًا من تلقا نفسه چي مراد د دوی قرآن دی (يعني ده په ډېر تکلف لکه چي خاصيت چي باب د تفعل د يو شي له ځانه څخه جوړ کړی

دی چې قرآن دی او نسبت یې و خدای ته کوي) فرد الله علیهم ما ضل صاحبکم آه.

**پوښتنه:** علیه الصلوة والسلام په عنوان کې د صاحبکم ولې راوړی؟

**ځواب:** اشاره و دې ته ده چې ده مبارک ستاسې سره طول صحبت کړی دی من صباه الی عنفوان الشباب ومنه الی اربعین سنة، نو تاسې ده ده پر ټولو اخلاق حسنهٔ قبل النبوة یې درلوده چې نه یې یو وخت شعر او غزل جوړه کړې ده او نه یې کهانت کړی دی او نه یې د لهوني کارونه کړي دي بلکې تاسې د مخه تر دعوی د نبوت امین مکه بالی، نو اوس څرنګه نسبت د ضلال او غي وده ته کوئ؟

این خیال است و محال است و جنون، یعني د اهل مکې له خوا څخه.

وَمَا يَنطِقُ عَنِ الْهَوَىٰ ﴿٣﴾

او دی خبري نه کوي، من القرآن وغیره "عن الهوی" صفت د مصدر محذوف دی ای نطقًا ناشیًا عن الهوی النفساني بلکې قرآن مستند دی الی الوحي من الله عزوجل.

إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْيٌ يُوحَىٰ ﴿٤﴾

نه دی قرآن مګر وحي دی ده ته کړه کېږي یعني د خدای له خوا په وساطت د جبرئیل.

**پوښتنه:** قرآن چېري ذکر سوی دی، نو اضمار قبل الذکر به نه وي؟

**ځواب:** له سیاق څخه د کلام قرآن فهمېږي ولې دا خبره چې تقول خو مراد یې قرآن ؤ، او کلمه د ان نافیه ده.

**سوال:** بطور جمله معترضه په دې ایت کې خدای پاک وویل "ما ضل آه" او په سورة الضحیٰ کې وایي "ووجدک ضالاً" نو تطبیق به یې څرنګه کوو؟

**ځواب:** دلته خو له ضلال څخه هغه معنی مراد ده چې مشرکینو به ویل چې محمد (ﷺ) ګمراه سو له لاري څخه د هدایت چې متابعت د دین الآباء یعني الشرک یې پرېښو، او په سورة الضحیٰ کې په اتفاق د مفسرینو معنی د ضال داده یعني ناخبره له معالمو څخه د نبوت او له احکامو څخه د شریعت غافلاً من کل ما لاطریق الی درکه الا السمع.

**درویش وایي:** چې په تفسیر کې د سورة الضحیٰ به زه ان شاء الله پوره تحقیق د دې جواب وکړم.

**فائده**: في قوله وما ينطق عن الهوى.

**پوه سه**: چي هوى خواهش دى چي د نفس د لاري پيدا کېږي وهي لايکون الا شرًا نو له دې سببه له متابعت څخه د هوا خلاص دى په توفيق د خداى ﷻ.

**حکايت**: بعض اولياء الله وايي چي يوه ورځ په وعظ کي د يو واعظ ناست وم، نو هغه خپل خبرو ته دوام ورکړى حتى چي ويې ويل لا مخلص من الهوى ولو کان فلان يعني د آنحضرت ﷺ نوم يې واخستى، ده ويل چي رسول الله ﷺ ويلي دي او په صحيح حديث کي هم راغلي دي خبب الي من دنياکم ثلث، الطيب والنساء وقرة عيني في الصلوة، نو ما پر واعظ رغ وکړى اما تسحي من الله فانه انما قال خبب من دنياکم آه، يعني بصيغة الماضي المجهول وما قال اجبت فکيف يلام العبد على ماکان من عند الله تعالى، خير دېر مغموم له مجلس څخه د واعظ ولاړ سوم داغسي غمجن د شپې بيده سوم، څرنګه چي د خوب په درياب کي غرق سوم، عليه الصلوة والسلام مي په خوب وليدى فقال لا تغتم فانا قد کفينا امره ثم سمعت شخصًا چي فلانى واعظ سهار له کوره وتلى ؤ هورې دده کښت ؤ هغه يې په لاره کي نا معلومه سړي وژلى ؤ، خداى مو دي وساتي چي په ژبه نکته چيني کوو پر يو نبي د انبياء کرامو عليهم السلام.

عَلَّمَهٗ شَدِيْدُ الْقُوٰى ۝

(علمه) يعني محمدًا ﷺ.

**پوه سه**: چي ضمير چي راجع و محمد ﷺ ته دى مفعول دى د علم والقرآن و جميع ما اوحى عليه السلام مطلقًا من حيث انه لکلام تام قائم مقام مفعوليه الثاني والثالث.

(شديد القوى) جمع د قوت ده يعني چي محکم دى قوت او قدرت د هغه، والمراد به الله سبحانه تعالى ذو القوة المتين، مظهري، او علامه بغدادي وايي چي مراد د شديد القوى څخه جبرئيل ﷺ دى، کما قال ابن عباس وقتادة والربيع ولي چي جبرئيل في ابداء الخوارق عن العبادة واسطه دى او تا لره کافي دليلاً على شدة قوته چي قرى د قوم د لوط ابو څخه چي تحت الثرى وې او پورته کړي پر خپل وزر او پورته يې کړي د اسمان پر خوا ثم قلبها او هم د يوه نعره

پر ثمودیانو وکړه فاصبحوا جاثمین یعني میتین، او هبوط دده پر انبیاء علیهم السلام وصعوده في اسرع من طرف العین، او دا معنی صاحب د روح البیان بیان کړې ده یعني له شدید القوی څخه مراد جبرئیل علیه السلام دی.

ذُوْ مِرَّةٍ فَاسْتَوٰى ﴿۶﴾

"ذو مرة" په قاموس کې وایي المرة بالکسر قوة الخلق وشدته والعقل والاحکام و ذو مرة هو جبرئیل ، والمریرة هغه رسۍ ته وایي چې محکمه ودل سوې وي او سعید بن المسیب وایي ذو حکمة وقال لان کلام الحکماء متین وقال الطیبي ذو منظر حسن و صححه الطبري.

**پوهسه:** چې نافع الارزق له ابن عباس څخه پوښتنه وکړه یعني د ذو مرة د معنی، ابن عباس ورته وویل ذو شدة في امر الله تعالی.

"فاستوی" نو جبرئیل ورته ودرېدی پر خپل واقعي شکل چې خدای عزوجل دی پر هغه پیدا کړی ؤ د حراء په صحراء کې (دا لیدل په ابتدائي حالاتو کې د نبوت ؤ) احمد او عبد بن حمید او نورو دېرو راویانو له ابن مسعود څخه روایت کړی دی چې جبرئیل لره شپږ سوه (۶۰۰) وزرونه وه کل جناح قد سد الافق، قال الخفاجي چې په توصیف کې د جبرئیل علیه السلام بغایة القوة و بعض الصفات السریة دلیل پر دې چې علیه الصلوة والسلام ته به جبرئیل راتلی دمخه په غیر کې د خپل صورت حقیقي، وهذا تفصیل لجواب سوال کانه قیل هل رئی النبي ﷺ جبرئیل في صورة الحقیقیة؟ فقیل نعم رآه.

وَهُوَ بِالْاُفُقِ الْاَعْلٰى ﴿۷﴾

او حال دا ؤ چې جبرئیل په افق اعلی کې ؤ.

**پوهسه:** چې افق هغه دائرې ته وایي چې فاصل بین ما یری من الفلک وما لا یری منه والافق الاعلی مطلع الشمس دی، دا جمله حال ده له فاعل څخه د استوی.

ثُمَّ دَنَا فَتَدَلّٰى ﴿۸﴾

بیا نژدې سو جبرئیل من النبي ﷺ "فتدلی" ای فتعلق جبرئیل من النبي ﷺ في الهواء وهو کنایة عن غایة القرب کتدلی الدلو مع الرشاء.

فَكَانَ قَابَ قَوْسَيْنِ أَوْ أَدْنَىٰ

نو وګرځېدی جبرئیل من النبي ﷺ، روح المعاني وايي چې قاب وکذالک القيب و القاد والقيد والقيس المقدار، نو معنی یې داده چې وګرځېدی قرب د جبرئيل او د نبي ﷺ په مقدار د دوو قوسو د عربو، او ادنی کلمه لپاره د شک نه ده بلکې د بل په معنی ده.

**درویش وايي:** چې عرب ګاهي تعیین د مسافت بین الشیئین په زراع سره کوي او ګاهي یې په شبر او ګاهي یې په قوس سره.

**درویش وايي:** چې امام مظهري د شدید القوی څخه مراد خدای عزوجل بولي او د ذو مرة څخه هم مراد خدای بولي، او استوی ته چې را رسېدلی دی داسي یې ویلي دي دا عبارت د متشابهاتو څخه دی مثال یې الرحمن علی العرش استوی دی بیا یې کلام د سلف علماؤ په هغه کي راوړی دی، نو فقیر وايي چې الرحمن علی العرش استوی بیله تشابه بله لار نسته او په دې موجوده ایت کي بیله حمل کولو پر تشابه بله لار موجوده ده چې هم تفسیر روح البیان راوړې ده او هم روح المعاني او هم امام رازي راوړې ده چې مراد د کما مر من النقل عن تفسیر روح المعاني او فقیر انفا وویل چې روح البیان هم داغسي وايي، والعجب منه چې مظهري وروسته د سیدتنا عائشة حدیث نقل کړی دی او دا یې هم ویلي دي واختاره اکثر المفسرین چې مراد له شدید القوی څخه جبرئیل ﷺ دی، بیا یې پوره لکه درویش چې وړاندي کړی تفصیل کړی دی، وجه التعجب چې دا تفسیر تاسي لیدلی ؤ نو به اول تاسي هغه د جبرئیل قصه کړې وای د تشابه د دعوی څخه به هم خلاص وای، او د اکثر المفسرین له رائي څخه اعراض کول خو اسانه کار نه دی، او دا د خپل اول تفسیر په باره کي ویلي دي چې دا تفسیر مروي دی د انس او ابن عباس وغیرهما من السلف ولا غبار علیه انتهی، والله اعلم بمراده في کتابه.

فَأَوْحَىٰ إِلَىٰ عَبْدِهِ مَا أَوْحَىٰ

وحي وکړې خدای په ذریعه د جبرئیل و خپل بنده یعني نبي کریم ﷺ ته.

**سوال:** ذکر د خدای خو د مخه نه دی تېر سوی حتی چې ضمیر د عبده ورته

راجع سي، نو اضمار قبل الذکر به نه وي؟

**ځواب:** ددې سوال په ځواب کي روح المعاني وايي: والاضمار ولم يجر له تعالی ذکر لکونه في غاية الظهور کانه المذکور او داسي اضمار په قرآن کي ډېر سته کما في قوله تعالی: ولو يؤاخذ الله الناس بما کسبوا ما ترک علی ظهرها من دابة چي ضمير د ظهرها راجع دی و مځکي ته او لفظ د ارض دمخه نه دی ذکر سوی وقوله سبحانه و تعالی انا انزلناه في ليلة القدر آه، چي ضمير د انزلناه راجع دی و قرآن ته مع انه لم يجر للقرآن ذکر.

**درويش وايي:** ومثل هذا السوال والجواب الاستشهاد بما ذکره روح المعاني اورده روح البيان ايضًا.

"ما اوحی" ای الذي اوحاه، والضمير المستتر في اوحی راجع الی جبرئيل ﷺ.

**پوښتنه:** ما اوحی به خدای پاک نه کړی ذکر چي هغه څه شی ؤ؟

**ځواب:** لپاره د تعظيم يې ذکر نه کړی کما في قوله في قصة فرعون، فغشيهم من اليم ما غشيهم چي مقدار د ما غشيهم يې معين نه کړی د تعظيم لپاره ای کثير من الماء لا يقار مقداره.

مَا كَذَبَ الْفُؤَادُ مَا رَاٰى ⑪

يعني تکذيب نه دی کړی زړه د محمد ﷺ، ای ما رءاه ببصره من صورة جبرئيل يعني زړه د عليه الصلوة والسلام انکار نه دی کړی چي ما چي هغه څوک وليدی هغه جبرئيل ؤ يعني زړه د عليه الصلوة والسلام هغه څوک چي په سترګو وليدی داسي يې نه وويل لم اعرفک زه دي نه پېژنم والا لکان کاذبًا ولي زړه څو پېژندلی ؤ چي جبرئيل دی کما راه ببصره.

اَفَتُمٰرُوْنَهٗ عَلٰى مَا يَرٰى ⑫

آيا تاسي ايها المشرکون مجادلة يعني ناحقه بحث کوئ د محمد ﷺ سره پر هغه شي چي دده سترګو ليدلی دی، همزه لپاره د استفهام انکاري دی ای لا ينبغي الانکار فيما يدعيه محمد ﷺ رؤيته وهو صورة جبرئيل ؑ.

**پوښتنه**: دا رؤيه د جبرئيل ماضي ده نو په مضارع يې ولې تعبير وكړى چې داسي ويل سوي واى بنه به نه واى على ما رأى بصيغة الماضي؟

**ځواب**: تعبير په مضارع سره لپاره د استحضار ده صورة ماضيه غريبه دى لان المضارع للحال.

وَلَقَدْ رَاٰهُ نَزْلَةً اُخْرٰى ﴿١٣﴾

لام موطئه د قسم محذوف دى او همزه مستتر دى په راه كي راجع دى و نبي ته او بارز ضمير يې راجع دى و جبرئيل ته يعني وليدى نبي ﷺ جبرئيل في صورته الحقيقية التي خلقه الله عليها.

**پوښتنه**: چې په علم الصرف كي وايي چې فعلة بفتح الفاء د مرة (يعني يو وار) او فعلة بكسر الفاء لپاره د هيئت دى نحو جلست جلسة اى جلست واحدة ونحو جلست جلسة بكسر الجيم اى على هيئة جلوس، نو معنى د ايت داده مرة اخرى من النزول اقيمت نزلة مقام مرة نو په دې سبب يې نزلة ته نصب وركړى بناء پر ظرفيت.

**سوال**: نو مرة اخرى نه وويل سو بلكې نزلة يې ووايه؟

**ځواب**: نزلة چې يې ووايه لپاره د دلالت پر دې چې دا وار نزول د جبرئيل داسي دى لكه نزول د جبرئيل په اول وار كي بالدنو والقرب، او مراد له جملة قسميه څخه نفي د ريبة والشك دى من الرؤية الاخيرة او دا وار ليدل د عليه الصلوة والسلام جبرئيل لره په ليلة الأسراء كي وه يعني المعراج.

عِنْدَ سِدْرَةِ الْمُنْتَهٰى ﴿١٤﴾

په نېز د سدرة المنتهى، دا يوه درخته ده چې نبق يې بولي او په پښتو يې بېره بولي عن يمين العرش في السماء السابعة على المشهور، وروى في حديث اخرجه احمد ومسلم والترمذي وغيرهم انها في السماء السادسة نبقها (مېوه يې) لكه قلال هجر (لكه ژى د هجر د قبيلې) او بلګونه يې لكه د غوږ د فيل، يسير الراكب في ظلها سبعين عامًا لايقطعها واخرج الحاكم عن اسماء بنت ابي بكر مرفوعًا (الى رسول الله ﷺ يسير الراكب في الفتن منها) په يو ښاخ كي د دې درختي، مأة سنة، روح المعاني وايي چې ظاهره له احاديث څخه داده چې درخته د

نبق ده حقیقةً یعني د بېرې درخته ده.

**سوال**: درخته حقیقةً څو خاوري غواړي او اوبه غواړي او هواء غواړي؟

**ځواب**: لایبعد من قدرة الله الباهرة ان یخلقها في ای مکان شاء لکه خدای عزوجل چي اخبار د شجرة الزقوم کړی دی انها تنبت في اصل الجحیم، والعقل یتحیر في اثبات الشجرة في النار لکن القدرة القاهرة انبتها في النار.

**پوهه**: چي دا درخته مقام د جبرئیل ؑ دی چي بالا تر دغه ځای پرواز نسي کولای چنانچه په شپه د معراج چي علیه الصلوة والسلام مستوی العرش ته پورته کېدی جبرئیل امین ؑ په سدرة المنتهی کي څنې پاته سو، قال علیه الصلوة والسلام رئیته عند سدرة المنتهی چي پر ده شپږ سوه وزره ویتناثر منه الدرر والیواقیت.

**درویش وایي**: چي دغي قصې ته سعدي شیرازي قدس سره په دې خوږو بیتو کي اشاره کړی ده.

چنان گرم درتیه قربت براند — که درسدرة جبرئیل ازو ماند
بدو گفت سالار بیت الحرام — که ای عامل وحی برتر خرام
بگفتا فراتر مجالم نماند — بماندم که نیروی بالم نماند
اگر یک سر موی برتر برم — فروغ تجلی بسوزد پرم

بعض مفسران وایي چي اطلاق ههنا مجاز دی یعني درخته نه ده بلکې ځای د اجتماع د ملکو علیهم السلام دی کما یجتمع الناس في ظل سدرة.

**درویش وایي**: وهذا القول ضعیف جدًا، او ابن ابی حاتم وعبد بن حمید له ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت کړی دی چي سدرة المنتهٰی یې په دې بولي چي تر دې ځایه پوري علم د هر عالم رسېږي وما ورائها لا یعلمه الا الله، یا له دې سببه یې منتهٰی بولي چي تر دغه ځایه پوري رسېږي اعمال د مخلوقاتو چي پېشېږي له دغه ځایه و خدای ﷻ ته او یا له دې سببه یې منتهٰی بولي چي تر دغه ځایه پوري رسېږي علم د انبیاء علیهم السلام تر دغه ځای بل خوا ته د دوی څخه هم غائب ده، او یا له دې سببه یې منتهٰی بولي چي تر دغه ځایه پوري رسېږي ارواح د شهداء او المؤمنین مطلقًا، او یا منتهٰی په یې په دې بولي چي دې ته رسېږي ما ینزل من فوقها وما یصعد من تحتها.

**درویش وایي**: چي قصه د معراج د رسول کریم ﷺ چي تفصیل او بیان د دې

ايت په تفسير کي تېر سوی دی سبحان الذي اسری بعبده ليلاً من المسجد الحرام الی المسجد الاقصی الاية لکن اختلاف د مفسرينو په دې کي دی چي د رسول اکرم ﷺ په سترګو خدای ﷻ ليدلی دی او که څرنګه؟ سدتنا ام المؤمنين رض سخت انکار کوي و روی البخاري عن مسروق دی وايي چي ما پوښتنه وکړه د دې څخه يا اماه هل رئ محمد ﷺ ربه فقالت لقد قف شعري (زما پر بدن وېښتان جګ ودرېدل نه) مما قلت اين انت من ثلث (له درو خبرو څخه که چا تاته وکړې هغه دروغ دي) من حدثک (که چا تاته ووېل) ان محمداً رئ ربه فقد کذب، دې د آيت ښېل دليل وګرځاوه لا تدرکه الابصار (يعني الله) وهو يدرک الابصار الاية او بل دا ايت: ما کان لبشر ان يکلمه الله الا وحيا او من وراء حجاب ومن حدثک انه ﷺ يعلم ما في غد فقد کذب دا ايت يې دليل وګرځاوه ما تدري نفس ما ذا تکسب غداً، ومن حدثک که چا درته ووېل چي عليه الصلوة والسلام يو شی د وحي څخه پټ کړی دی فقد کذب دليل يې دا وو ايه يا ايها الرسول بلغ ما انزل اليک من ربک الآية دې ووېل ولکن رئی جبرئيل ؑ في صورته (ای الخالصة) مرتين او ابن عباس رض وايي ما کذب الفؤاد و ما رئی ولقد رئه نزلة اخری ان محمد ﷺ رئی ربه بفؤاده مرتين. کذا روی مسلم.

**درويش وايي:** چي د زړه د رؤية معنی داده چي من وراء الحجاب چي خدای ؑ د چا سره خبري وکړي زړه يې متيقن وي چي دا خبري د خدای عزوجل دي او ابن جرير د ابن عباس رض څخه روايت کړی دی چي يو چا پوښتنه وکړه د عليه الصلوة والسلام څخه قال: هل رئيت ربک؟ قال رئيته بفوائدي، لکن مظهري چي دی معتقد دی د رؤية بالبصر الظاهري يعني په سترګو يې خدای ؑ ليدلی دی، ګاهي وايي چي قول د ابن مسعود رض عائشي رض شهادة علی النفي ای نفي الرؤية بالبصر وشهادة الاثبات ارجح، او دا هم وايي چي ما احتج به عائشة رض علی نفي رؤيته ﷺ بالبصر لا يخفی ضعفه.

**درويش وايي:** چي سبحان الله کيف اجترئ علی ضعف حديث ام المؤمنين عائشة ﷺ وقد صح انه عليه الصلوة والسلام قال خذوا ثلثی الدين من الحميراء اعني عائشة رض. او مظهري دا هم ويلي دي وقول النبي ﷺ رئيته بفؤادي لو ثبت (يعني اول خو دا حديث ثابت نه دی) وهذه جبرئة اخری من المظهري لا يدل علی نفي الرؤية بالبصر.

**درویش وايي:** چي كيف لايدل على نفي الرؤية البصر لان السائل انما سئل رسول اللهﷺ هل رئيت ربک؟ فقال رئيته بفؤادي فهو نص على نفي الرؤية البصر والا لقال نعم لان غرض السائل هو السؤال عن الرؤية بالبصر كما هو ظاهر، فالجواب عنه نعم ليس الا.

قصة معراج النبيﷺ على وجه الاختصار: په بخاري او مسلم كي چي متفق عليه يې بولي په اصطلاح د محدثينو، عن انس بن مالک عن مالک بن صعصعةؓ عن النبيﷺ قال بينا انا في الحطيم مضطجعًا (په دې مابين كي زه پروت وم په حطيم كي پراڅ) وفي رواية في بيت ام هاني بنت ابی طالبؓ)

درویش وايي وهذه الرواية هو الاشهر كما يدل عليه قول العارف الجاميؒ:

چو دولت شد زيد خواهان نهانی ..... سو دولت سرای ام هانی

اذا اتاني آت (هو جبرئيلؑ) فشق بين هذه وهذه يعني بين ثغرة نحره الى شعرته (نو څيري يې كړې په مابين كي د ثغرة النحر يعني د ځيګر د حلالېدو غار تر وېښتانو پورې يعني د نس چي د نس اوله حصه ده.

**پوه سه:** چي دا څيرېدل په ذريعه د آلة النحر من السكين وغيره نه وه بلكې په صرف ګوته سره د جبرئيل وه چي نه وينه بهېدلې وه او نه درد ؤ، فاستخرج قلبي (زما زړه يې را وكښی له خپل ځای څخه)

**فائده:** دا قدرتي اپرېشن ؤ، ولي كه عادي وای نو زړه چي له خپل ځای څخه جلا سي سړی فوراً مري، ثم اتيت بطسة من ذهب (بيا راتګ وكړل سو و ماته په يو لګن يا كاسه سره د سرو زرو) مملو ايمانًا (چي هغه ډكه وه په ايمان سره، يعني داسي شی پكښې ؤ چي استعمال يې د زړه په چاكو كي سبب د زياتوالي د ايمان ګرځېدی چي په صورت د داوريؤ (فغسل قلبي) نو زما زړه يې را پرېولی (فحشى به) هغه شی چي په طست كي ؤ په ډک يې كړی، يعني بعد ما اخرج من قلبهﷺ بعض الدم الجامد (ثم اعيد) بيا يې زړه بيرته په خپل ځای كي پيوند كړی (ثم اتيت بدابة دون البغل وفوق الحمار) بيا ماته راوستل سو يعني جبرئيلؑ را وستل يوه دابه يعني د سپرتيا لپاره چي تر غاتره كوچنۍ وه او تر خره غټه وه (يقال لها البراق) يا يې له دې سببه براق باله چي رنګ يې پر پرېښېدی او يا له دې سببه

چي تېز رفتاره ؤ لکه پيلبو کما يدل عليه ما بعده (ليضع خطوه عند منتهى طرفه) چي گام به يې ايښو په تېز د هغه ځاى چي دده ديد به هورې رسېدى زه يې پر هغه سپور کړم يعني جبرئيل، جامي قدس سره وايي:

شد از سبو حيان گردون صداده .... که سبحان الذى اسرى بعبده

**درويش وايي:** چي تر دې وروسته قصه يعني د مسجد اقصى ورتله کما دل عليه الآية ''سُبْحَانَ الَّذِىٓ اَسْرٰى بِعَبْدِهٖ لَيْلًا مِّنَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ اِلَى الْمَسْجِدِ الْاَقْصَى" الآية، ملتوي کړل سو صرف د اسمانو حالات ددې وروسته بيانېږي. لان القصة تمامها وتفصيلها قد مرت في سورة الاسرى حتى چي دا بيت د مسجد الاقصىٰ د حال بيان دى:

درآن مسجد امام الانبياء شد .... صف پيشينانرا پيشوا شد

جامي.

(فانطلق بى جبرئيل حتى اتى السماء الدنيا) يعني ورغلى جبرئيل اول اسمان ته زه هم ورسره وم (فاستفتح) جبرئيل طلب د خلاصوالي د دروازې وکړى له خازن څخه د اسمان (قيل من هذا) دربان وويل چي څوک يې؟ جبرئيل ځپل ځان ورته ذکر کړى، دربان ورته وويل (من معک) څوک درسره دى؟ (قال محمد ﷺ قال وقد ارسلت اليه) ته ور استول سوى يې و ده ته يعني که تا پر ځپل سر را راهي کړى دى، جبرئيل وويل (نعم) د دربان له خوا وويل سول (مرحبًا به) دا د ملکو ښه راغلى دى په پښتو کي (فنعم المجئ جاء) په ښه راتک سره راغلې، نو دروازه يې خلاصه کړه، عليه الصلوة والسلام وايي زه چي ور پورته سوم نو په دې اول اسمان کي آدم ﷺ موجود ؤ جبرئيل راته وويل (هذا ابوک آدم فسلم عليه (لان الجائي يسلم على القاعد) نو ما سلام ورواچاوه ده جواب د سلام را کړى (ثم قال مرحبا بالابن الصالح والنبي الصالح ثم صعد بي السماء الثانية فاستفتح فذکر مثل ما ذکر في السماء الدنيا وکذا ذکر في کل سماء، قال رسول الله ﷺ فلما خلصت يعني الى السماء الثانية اذا يحيى و عيسى عليهما السلام (او دوى دوه سره د خاله زامن وه) قال يعني جبرئيل هذا يحيى وهذا عيسىٰ فسلم عليهما فسلمت

عليهما فرداً السلام علي يعني وعليک السلام، بيا دواړو وويل (مرحبًا بالاخ الصالح والنبي الصالح فلنعم المجئ جئت، وذكر في السماء الثالثة يوسفؑ فاذا هو اعطي شطر الحسن، وفي الرابعة اى السماء الرابعة ادريسؑ فقلت ما قلت واجبت كمامر، قال رسول اللهﷺ، وفي الخامسة هارونؑ فالحال الحال كمامر، وفي السادسة په شپږم اسمان کي موسیٰؑ فقلت ما قلت كمامر، واجبت مامر فلما جاوزت تر موسیٰؑ ده وويل غلامًا بعث بعدي.

**درويش وايي:** چي دا لفظ د اهانت د عليه الصلوة والسلام لپاره نه دی معاذ الله من انبياء الله تحقير بعضهم بعضًا بلكي معنى يي داده چي په عمر ځوان دی يدخل الجنة من امته اكثر من يدخلها من امتي.

**درويش وايي:** چي د موسیٰؑ دا خبره هم حسداً نه وه بلكي ترحمًا لامته، قالؑ ثم صعد بي الى السماء السابعة فذكر الاستفتاح وغيره كمامر وذكر هناک ابراهيمؑ قال جبرئيل هذا ابوک (يعني جدک الاكبر) فسلم عليه فسلمت عليه فرد السلام وقال مرحبًا بالابن الصالح والنبي الصالح، ثم زه پورته كړه سوم الى سدرة المنتهى فاذا نبقها مبده مثل قلال هجر و اوراقها مثل اذان الفيلة وقد مر معنا هذا قال جبرئيلؑ هذه سدرة المنتهى، ناګاه ما وليدلې څلور ويالې چي دوې په مخكه كي پټي رواني وې او دوې ښكاره، قلت ما هذا يا جبرئيل؟ قال اما الباطنان فنيران في الجنة، واما الظاهران فالنيل والفرات، قال عليه الصلوة والسلام ثم رفع بي الى البيت المعمور، زه تږی سوم نو جبرئيلؑ ما ته راوړی يو لوښی چي په هغه كي شراب وه او يو بل لوښی چي په هغه كي شيدې وې، فاخذت اللبن، فقال جبرئيل هي الفطرة يعني شيدې د فطرة اسلامي سره برابري دي، انت عليها وامتک اما لو شربت الخمر غوت امتک، قال عليه الصلوة والسلام ثم فرضت علي (اى علي و على امتي) خمسون صلوات في كل يوم وليلة (يعني من جانب الله عزوجل) فرجعت الى موسیٰؑ فقال بما امرت؟ قلت امرت بخمسين (۵۰) صلوات في كل يوم وليلة، موسیٰؑ راته وويل په څه شي سره ته امر سوې؟ ما ورته وويل په پنځوسو لمونځو په شبانه روز كي، موسیٰؑ راته وويل ستا امت طاقت د پنځوسو لمونځو نه لري په شبا روز كي او موسیٰؑ راته ووېل ما تجربه كړي ده تر تا دمخه په بني اسرائيلو اشد المعالجة



Scanned by CamScanner

فارجع الى ربک فاسئله التخفيف لامتک فرجعت فوضع عني عشرًا لس لمونځونه يې را معاف کړه چې څلوېښت پاته سي (وفي رواية في كل رجعة خمس صلوات) فرجعت الى موسىٰؑ فقال مثله (اى مثل كلامه السابق) يعني څلوېښت هم ډېر دي فارجع الى ربک فاسئله التخفيف، فرجعت فوضع عشرًا لس يې معاف کړه چې دېرش پاته سي. فرجعت الى موسىٰ ﷺ فقال مثل ما قال اولاً فرجعت الى ربي فوضع عشرًا چې شل پاته سي، فرجعت الى ربي فقال مثل ما قال فرجعت الى ربي فوضع عشرًا چې لس پاته سي، فرجعت الى موسىٰ ﷺ فقال مثل ما قال اولاً فرجعت الى ربي فوضع عني خمسًا چې پنځه پاته سي، فرجعت الى موسىٰ ﷺ فقال مثل ما قال اولاً يعني لا تستطيع امتک خمس صلوات في کل يوم فارجع فسئل الله التخفيف ما ورته وويل سئلت ربي فاستحيت، نور نو شرمېږم لکني ارض واسلم په دغو پنځو لمونځو راضي يم او تسليم يم، زه تر موسىٰ ﷺ تېر سوم يو منادي له جانبه څخه د خداى ﷻ نعره وکړه: لامضيت مريضتي ما خپل پرض چې پنځه لمونځونه وه پر ځای کړه يعني په واقع کي لان الحسنة بعشر امثالها ثواب هذه الامة المرحومة يعني دا يې پنځوس و خففت عن عبادي يعني في الظاهر چې پنځه لمونځونه دي.

**درويش وايي:** چې په حديث کي د مسلم د ثابت البناني له انس ؓ څخه دا عبارت زائد سته چې په اووم اسمان کي چې ما ملاقات د ابراهيم ﷺ سره وکړی نو ده شا تکيه کړې وه و بيت المعمور ته، جبرئيل ﷺ ماته وويل چې دا بيت المعمور دی چې هره ورځ اوويا زره ملکي ورته راځي د عبادت لپاره چې دوی شباروز پوره کړي بيا نوبت نه ور رسېږي اخير ما عليهم يعني تر اخيره پوري دوی وي.

**درويش وايي:** چې د دې کثرت بلا نهايت د ملکو فهمېږي ولا يعلم جنود ربک الا هو، او په هغه حديث کي دا عبارت هم زائد سته که يو څوک قصد وکړي د يو ښه کار يعني د عبادت او په سبب د عارض يې ونه کړي يوه حسنه ورته نوشته کېږي او که هغه حسنه وکړه په لس حسنه ؤ ورته نوشته کېږي، او که يې د يو بد کار يعني ګناه قصد وکړی او ويې نه کړی هيڅ شی نه ورته نوشته کېږي او که يې وکړي يوه سيئه ورته نوشته کېږي.

عِنْدَهَا جَنَّةُ الْمَأْوٰى ﴿۱۵﴾

الضمير راجع الى السدرة، قال صاحب روح المعاني والمأوى على مانص عليه الجمهور اسم مكان دی والاضافة (ای الاضافة الجنة الى المأوى بيانية) يعني هغه جنت چي مأوى يې بولي د مأوى معنى مرجع ده، الحسنؒ وايي مأوى اليها المتقون يوم القيامة، وقيل يأوى جبرئيل والملائكة اليها. او قتادهؒ وايي هي جنة تأوى اليها ارواح الشهداء وليست بالتي وعد المتقون. اعراب جنت المأوى مبتداء ده عندها يې خبر مقدم دی والجملة صفت للسدرة.

إِذْ يَغْشَى السِّدْرَةَ مَا يَغْشٰى ﴿۱۶﴾

چي پټه کړه هغه شي چي دا يې پټه کړه، زيادة في تعظيم السدرة، روح البيان وايي چي اذ ظرف زمان دی لراه (في قوله تعالى: ولقد راه نزلة اخرى) لا لما بعده من الجملة المنفية (يعني ما زاغ البصر آه) دی وايي لان ما النافية لايعمل ما بعدها في ماقبلها آه لکن روح المعاني دا خبره د روح البيان رد کړې ده په دې سره چي اذ خو ظرف دی او په ظروف کي توسع د ليس في غيرها آه.

**سوال:** دا غشيان د سدرة المنتهى خو په ماضي کي وُ، نو تعبير يې په مضارع ولي څني وکړی؟

**خواب:** ټوله مفسرين وايي چي تعبير بالمضارع يې لپاره د استحضار د حالت ماضيه غريبه بديعه دی (که مضارع په معنى د حال سي) او يا ددې لپاره چي دا غشيان پر طريقه د تجدد په مستقبل کي (که مضارع لپاره د استقبال تجددي سي) والمعنى ولقد رئ محمد ﷺ جبرئيلؑ عند السدرة وقت ما غشيها آه.

**فائده:** خدای عزوجل ما غشيها مبهم ووايه تعيين يې و نه کړی ليذهب نفس سامع الى مذهب ممکن او يا لپاره د تعظيم د ما غشيها کما في قوله تعالى قي قصة غرق فرعون في اليم فغشيهم من اليم ما غشيهم.

**درويش وايي:** چي په دې ماغشيهم کي اختلاف دی د مفسرينو (۱) دا يو جماعت عظيم دی د ملکو چي د خدای عزوجل څخه اجازه د ملاقات د عليه الصلوة والسلام غوښتل لکن سره يعني د نشاره چي په ښتو يې خونی بولي. نو

هري ملكي يو طبق (يعني پيالہ) لہ اطباقو څخه د جنت را اخستې وه من التحائف ما لايخفى، نو د عليه الصلوة والسلام په حضور كي يې اطباق خالي كړه تقربًا اليه. د رسول كريم ﷺ څخه روايت: غشيها الوان لا ادري ما هي فليس احد من خلق الله يستطيع ان ينعتها يعني چي هيڅ د هغه ماغشيها بيان تفصيلي دي وكړي، او دغه رنګه په حديث صحيح كي راغلي دي رئيت السدرة يغشاها (چي پټه يې كړه) فراش من ذهب ورئيت على كاورقة (پر هر بلګ) د سدرة ملكا قائمًا يسبح الله. وقال الحسين الكاشفي في التفسير الحسيني، و ګويند بر حوالى آن سدرة فرشتګان طيران ميكردند چون پر آنها زرين بودند آه، او روح المعاني له الحسن څخه په روايت وايي چي پټه كړه سدرة انوارو د خداى حين تجلى لها.

**پوښتنه**: په قصه كي د موسى عليه السلام راغلي دي چي ده چي پر كوه طور د خداى پاک خبري اوريدې داسي يې وويل: رب ارني انظر اليک (ته په ما ځان ووينه چي زه دي ديدار وكړم) په جواب كي خداى پاک ورته وويل: لن تراني (يعني په دنيا كي په موجوده ستر ګو ستا) لكن انظر الى الجبل فان استقر مكانه فسوف تراني فلما تجلى ربه للجبل جعله دكا (يعني غر ټوټه ټوټه سو) وخر موسى صعقًا (غوځار سو موسى بېهوشه) الى اخير الايات هنالک، نو پوښتنه داده كه پر سدرة باندي الهيه فيض سوى واى نو بايد سدرة هم لكه جبل موسى ټوک ټوک سوى واى؟

**ځواب**: جبل د موسى عليه السلام خو په عالم الملک ضعيف كي ؤ او سدرة المنتهى خو په عالم ملكوت قوي كي وه ولهذا لم يصبها ما اصاب جبل موسى فافهم، او هم دا سبب دى چي عليه الصلوة والسلام چي جبرئيل په افق اعلى كي پر خپل صورة واقعي وليدى پر عليه الصلوة والسلام غشي او بېهوشي راغله او دلته د سدرة المنتهى سره چي عليه الصلوة والسلام جبرئيل پر خپل صورت اصلي وليدى هيڅ نه سوه پېښه و عليه الصلوة والسلام ته فافهم فانه سانح عزيز، وقيل يغشاها الجم الغفير من الملائكة امثال الغربان (لكه كارګان چي پر يوه درخته كښېني) يعبدون الله (اى الملائكة) او يا زيارت د سدرة المنتهى يې كاوه كما يزورون الناس الكعبة الشريفة.

**درويش وايي**: چي مفسرينو نور اقوال په ماغشاها اى السدرة كي ذكر كړي دي وفيما ذكرناه كفايت لمن القى السمع وهو شهيد يعني بالقلب، نو كه ماته څوک ووايي چي ستا فتوى پر كوم يوه ده. نو فقير به ورته ووايم:

نه قــاضـــي يــم نه مـــفــتـــي يم .... بلکې ذلـــيل عـبـيد قندهاري يم
د ساداتو مفسرينو اقوال رانقل کوم .... نور قضا و فتوی وتاسي ته پرېږدم

مَا زَاغَ الۡبَصَرُ وَمَا طَغٰى ۝

او نه دي کږې سوي ستر ګې د عليه الصلوة والسلام سره سره د رؤية د عجائبو د سدرة المنتهى، او نه يې تجاوز کړی دی يو خوا او بلي خوا ته سره د رؤية د عجائبو چي بېشماره وي، بل اثبت البصر الى المقصود الاعلى وهو رؤية الله تعالى، دا اية روح البيان دليل بولي ددې چي رؤيت د جمال د رب العزة بواسطه بصره عليه الصلوة والسلام يقظة په وېښه لان وصف البصر بعدم الزيغ بان ذالک کان يقظه، او که چېري رؤيت قلبي وای لقال مازاغ قلبه او فؤاده لکن مفسرين وايي چي مراد له بصر څخه بصر القلب دی فلا بد من قرينة صارفة عن بصر القلب الى بصر الرأس وهي ههنا معدومة، والجواب ان البصر حقيقة في بصر الرأس فلا بد لصرفها الى بصر القلب وهو مجاز من قرينة وهي ههنا معدومة فتامل، قال الحسين الکاشفي في تفسير هذه الآية: ميل نکرد چشم محمد ﷺ و بچپ و راست نګريست ودر نګذشت از حدی که مقرر کرده و ويرا درين ايت ستايش است آن حضرت را بحسن ادب بارب العزة وعلو همت که درآن پرتو التفات بر هيچ ذره از ذرات کائنات يفګند و ديده دل بجز مشاهده جمال بی زوال الهی که درآن پرتو التفات بر هيچ ذره از ذرات کائنات نيفګند وديده دل بجز مشاهده جمال بی زوال الهی نشود.

**درويش وايي:** چي کاشفي" حيث قال و ديده دل آه چي دی هم قائل د رؤيت قلبي دی والله اعلم وروسته کاشفي" دا ابيات راوړي دي:

در ديده کـشيده کحمل مازاغ .... نی زاغ نـګه لــرد ونی بـــاغ
ميراند بــراق عــــرش پرواز ...... تا مــــحـجــله ناز و پرده راز
پس پرده زپيش ديده برخاست ...... بی پرده بريد آنچه دلش خواست

درويش ميګويد که درين بيت آخير اشاره خفی است برؤيت بصری عند الکاشفي".

**درويش وايي:** چي په رؤيت کي د عليه الصلوة والسلام خدای پاک برؤية

البصر الظاهري او القلبي في ليلة المعراج اختلافات من عصر الصحابة ﷺ الى يومنا هذا وهكذا للمفسرين اختلاف فيها وصاحب روح المعاني قد اطال الكلام، او په صفحو صفحو خبري په دې باب کي کړي دي، او روح البيان هم پر خپل حال ډېري خبري کړي دي د ټولو نقل کول به ډېر بوج وي پر متعلمينو د تفسير ايوبي لهذا درويش بما قال کفايت وکړی علما که تحقيق د رؤية بصري او قلبي د عليه الصلوة والسلام په ليلة المعراج کي غواړي نو مطولات د تفاسيرو دي مطالعه کړي مع ذهن ثاقب ومطالعة جديدة لکن هيهات في الزمان الحاضر، ولي ددې زماني بعض علماء پر خپلو استاذانو تعريضات کوي او په سپک نامه يې بولي، درمحضرش دست بوسيدن... ودرغياب ازار دادن.

لَقَدْ رَاٰى مِنْ اٰيٰتِ رَبِّهِ الْكُبْرٰى ۝

کلمه د لام موطئه د قسم محذوف ده او قد لپاره د تحقيق دی، ضمير د رئ راجع دی و عليه الصلوة والسلام ته. والمعنى والله په تحقيق وليدل عليه الصلوة والسلام "من ايات ربه الكبرى" کلمه د من لپاره د تبعيض ده، ولي چي ايات د قدرت د خدای عزوجل في العالم العلوي والسفلي غير متناهية لايسعها علم البشر.

اعراب: الكبرٰى مفعول به دی د رئ ومن اياته حال مقدم دی، والمراد بالايات الكبرٰى ما رئ رسول الله ﷺ العجائب الملكوتية التي رئ ها في ليلة المعراج چي ددې خوا يعني بيت الحرام له خوا تللی او بيرته بيت الحرام ته راتللی من البراق، والملائكة والسدرة المنتهى و افاض عليها كمامر تفصيله وجنة المأوى، ورؤية جبرئيل في صورته الاصلية له ستماءة جناح، ورئ رفرف اخضر (وهو بساط طويل عريض جلس عليه النبي ﷺ بلغه الى غاية المتبنى.

**فائده**: اجمع المؤمنون من اهل السنة والجماعة ان معراجه ﷺ كان في اليقظه.

**مسئله**: معراج د عليه الصلوة والسلام له مسجد الحرام څخه تر بيت الاقصٰى پوري قطعي ثابت بالقرآن دی يعني قوله تعالى: "سُبْحَانَ الَّذِيْٓ اَسْرٰى بِعَبْدِهٖ لَيْلًا مِّنَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ اِلَى الْمَسْجِدِ الْاَقْصٰى" الآية، فمنكره كافر، والصحيح ان

معراجه الى سدرة المنتهى قطعي ايضًا ثابت بهذه الآية فيكفر منكره ايضًا.

وما فوقها فثابت بالاحاديث الصحيحة، نو منكريې فاسق دی کافر نه دی.

يقول الفقير سامحه القدير اتفق اهل العلم على ان المعراج كان بعد الوحي تقريبًا اثنى عشر سنة بعد النبوة قبل الهجرة بسنة، او بعض اهل الحديث وايي چي معراج النبي ﷺ اول وار خوب ؤ چي قبل الوحي عليه الصلوة والسلام ليدلی ؤ وهو في المسجد الحرام ثم عرجه في اليقظة بعد الوحي قبل الهجرة تحقيقًا لرؤياه من قبل، د دې داسي مثال دی چي عليه الصلوة والسلام په خوب کي فتح د مکې ليدلې وه په کال د حديبية بسنة (۶) من الهجرة وروسته فتح د مکې په سنه (۸) پای ته ورسېده، ونزل قوله تعالى: في ذالک لقد صدق الله رسوله الرؤيا بالحق.

**فائده:** خدای پاک چي ذکر وکړی تفصيلاً د عليه الصلوة والسلام د رؤيت ربه وآيات ربه وتعلمه ﷺ وتصديق قلبه وروسته بيان د تقبيح د کافرانو د مکې يې وکړی په دې ايت سره.

## اَفَرَءَيْتُمُ اللّٰتَ وَالْعُزّٰى ﴿۱۹﴾

آيا تاسي ليدلي دي (فالاستفهام للانکار والتوبيخ على عباده الهية الثلاثة للمشرکين کما سيئاتي ذکرها، والفاء للعطف على مقدر انظرتم ما تعبدونه فرئيتم) "اللات والعزى" دا نومان دي د مشرکانو د هغو خدايانو چي دوی به يې عبادت کاوه، په بعض تفاسيرو کي وايي چي دوی پر يوه بت د الله نوم کښېښاوی فصرف الله من الاسم الجليل الى اللات، او پر بل يې د العزيز نوم کښېښاوی چي د خدای پاک نوم دی فصرف السنتهم الى العزى، والله اعلم، روح المعاني وايي چي قتادةؒ وايي چي لات د ثقيف د قبيلې معبود ؤ په طائف کي، ابو عبيده وغيره وايي کان اللات بالکعبة يعبده اهل مکة او ابن زيد وايي چي لات په نخلة کي عند سوق عکاظ يعبده قريش، ابو حيان وايي چي د دې روايتونو جمع ممکن ده چي د لات په نامه دې ډېر بتان وه فاخبر عن کل صنم بالاسم المذکور بمکانه المذکور.

او بعض مفسرين وايي چي اصل د لات لَوَيْتُ على وزن فعلة لانهم يلؤون عليها اي يطوفون بها قلبت الواو الفًا وحذفت الياء على خلاف قياس ووضعت

تاء التانيث مكانها فلهذا كتبت طويلة كتاء اخت وبنت.

**درويش وايي:** چي په لات كي نوري خبري هم په تفاسيرو كي سته تركناها لمكان التطويل بلا فائدة، واما العزى فقال مجاهد" شجرة بغطفان كانوا يعني اهل غطفان يعبدونها، او ابن اسحق وايي چي عزى يوه خونه وه په نخلة كي چي خادمان او پهره داران يې بني شيبان وه چي حليفان د بني هاشم وه وكانت اعظم اصنام قريش و جميع بني كنانة.

تاريخ وايي: چي د قريشو لوى گمراه عمرو بن لحي به ويل چي خداى ژمى په طائف كي تېروي عند اللات او دوبى د العزى سره تېروي، نو تاسي د لات والعزى تعظيم كوئ او د دغو دوو بتانو لپاره دوى يوه خونه جوړه كړې وه چي خلگو به هديې ورته راوړلې او هغه هديې به د دغو دوو بتانو ساتندويانو په خپل منځ كي سره تقسيم كولې، په هغه باغ كي چي عزى ؤ درې درختي ولاړي وې چي سمرات يې بللې، تاريخ وايي چي څه وخت چي عليه الصلوة والسلام مكه مكرمه فتح كړه خالد بن وليد ﷺ ته يې وويل چي ورسه عزى ته خراب يې كړه، خالد بن وليد ﷺ هغه درختي ټولي ونړولې بيرته يې عليه الصلوة والسلام ته خبر راوړى چي ما خو ټولي درختي ونړولې، عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي يو شى دي وليدى كه څنگه؟ خالد ؓ وويل يا شى مي نه دى ليدلى، عليه الصلوة والسلام ورته وويل فانت لم تهدمها (عزى دي نه ونړوى) فرجع خالد ؓ چي توره يې له تېكي ځخه كښلې وه سادنانو يعني محافظينو د عزى چي خالد ؓ وليدى سره نارې يې سوې وهم يقولون يا عزى خليه (يعني اى عزى خالد خالي سلاح كړه) يا عزى په سترگو يې ړوند كړه والا فموتي برغم نو خالد ؓ ته يوه ښځه لڅه پڅه راووتل تكه توره ببر سر يې ؤ خاوري يې پر سر بادولې، نو خالد ؓ توره ورته كش كړه وهو يقول كفرانك لاسبحانك زما پر خداى عزوجل عقيده ده چي خداى ؑ ستا اهانت وكړي فضربها بالسيف سره دوه ټڅه يې كړه، ثم رجع خالد ؓ الى رسول الله ﷺ ټوله صورت حال يې ورته بيان كړى، قال رسول الله ﷺ نعم بنه كار دي وكړى تلك العزى قد نسيت ان تعبد ببلدكم ابدا.

او مظهري" وايي چي لات، عزى او منات د بتانو نومان دي چي قريشو او نورو بت پرستانو يې عبادت كاوه او دوى به ويل چي ملائكه بنات الله دي او دوى

په ویل چي دا بتان زمونږ هیاکل یعني صور دي د هغو ملکو چي د خدای لوڼې دي.

## وَمَنٰوةَ الثَّالِثَةَ الْاُخْرٰی

**درویش وايي**: چي په منات کي هم اختلاف دی چي دا بت څه شی ؤ او عابدین یې څوک وه، بعض مفسرین وايي چي منات یوه لویه ډبره وه چي د هذیل او د خزاعه قبیلې یې عبادت کاوه، او په انسان العیون کي وايي چي منات بت چي اوس او خزرج یې عبادت کاوه یعني في الجاهلیة ارسل رسول اللهﷺ سعد بن زید الاسهلي رضی الله عنه او سل کسه د آسانو سپاره یې ورسره کړه چي منات ونړوي، نو سعدؓ ورغلی هغه بت ته سادن یعني خادم د منات وسعد ته وویل ما ترید؟ سعدؓ ورته وویل اهدم منات، سادن ورته وویل ته او دا کار چي منات به ړنګوې، سعدؓ چي بت منات ته ورنژدې سو فخرجت الیه امرئة عریانة سوداء ببر سریې ؤ ناري د ویل یې وهلې تضرب صدرها فقال لها سادن (ای الخادم المحافظ لهذا الموضع) منات دونک بعض عصاتک (ای مناته ونسه یعني هلاک کړه بعض عاصیان ستا) چي مراد یې سعد بن زید رضی الله عنه ؤ فضربها سعد بالسیف فقتلها وهدم محلها (هغه ځای او خونه یې هم ونړول انتهی)

**پوښتنه**: فائده د منات په ثالثه سره څه ده، ولي چي د منات دریم والی خو دا دی چي عطف سو پر لات او عزی نو منات دریم سو؟

**ځواب**: فائده یې تاکید د دریم والي دی چي له عطف څخه معلوم سو کما مر آنفًا.

**سوال**: د الاخری څه فائده ده بل منات خو نه ؤ چي له هغه څخه د احتراز لپاره یې لفظ اخری راوړی وای؟

**ځواب**: اخری په دې ځای کي په معنی د حقیر او ذلیل دی لان الاخری تستعمل في الضعفاء کما في قوله تعالی وقالت اخراهم لاولاهم ای ضعفائهم لرأسائهم یعني یوم القیامة، ولایصح حمل الاخری علی المعنی المتعارف و الا یلزم استدراکه کما مر في السؤال.

**درویش وايي**: چي کفارو د مکې او نورو مشرکانو لکه خزاعة قبیله به ویل چي ملائکه د خدای لوڼې دي، او دوی به دا هم ویل چي دا زمونږ بتان وطن او ځای دی د

جنیاتو چي هغه لوڼې د خدای ؑدي، نو خدای پاک پر دوی په دې ایتو کې رد وکړی.

﴿اَلَكُمُ الذَّكَرُ وَلَهُ الْاُنْثٰى ۝ تِلْكَ اِذًا قِسْمَةٌ ضِيْزٰى ۝﴾

**پوه سه:** چي همزه لپاره د استفهام انکاري او توبیخ دی، آیا تاسي لره زامن دي او خدای عزوجل لره لوڼې دي یعني ښځي، دا قسمت چي تاسي په دغه وخت کي قسمت دی، قال ابن عباس رض وقتادة رح في ترجمة ضيزى اى قسمة جائرة حيث جعلتم لربكم ما تكرهون لانفسكم، الحسن رح وايي قسمة غير معتدل ولي چي د مشرکینو له ښځینه اولاده داسي بد راتله لکه بل ځای چي خدای پاک د دوی د حال حکایت داسي کړی دی: واذا بشر احدکم بالانثى ظل وجهه سودا وهو کظیم، بلکې سر سخت د دوی به چي لور به یې پیدا سوه ژوندی یې په خاورو کي ښخوله.

**فائده:** پوه سه چي دا لفظ ابن کثیر ضئزی په همزه سره وایي، باب یې ضئزه ای ظلمه، نو ضئزی مصدر دی وصف به القسمة مبالغة یعني قسمة ظالمة او نور قراء یې ضیزی په یاء سره وایي، کسائي رح نحوي وایي ضاز یضیز ضیزًا وضاء یضوز ضوزًا، وضاء یضاز ضازًا اذا ظلم ونقص، مظهري رح دا قول د کسائي رح رد کړی دی چي واوي غلط دی بلکې یایي دی یا ضاء یضیز علی وزن باع یبیع یا ضاز یضاء علی وزن نال ینال، او اصل د ضیزی ضیزی فعلی بضم الفاء للکلمة، دلیل یې دا وایي چي ضیزی خو صفت دی والصفات لاتکون الاعلی فعلی بضم الفاء لکه حبلی او انثی یا به فعلی بفتح الفاء وي نحو غضبی وسکری، دی وایي چي نسته په کلمه د عربو کي فعلی بکسر الفاء في النعوت وانما یکون في الاسماء لکه ذکری وشعری.

**سوال:** ضمه د ضاد یې ولي په کسره بدله کړه؟

**ځواب:** که یې ضمه په کسره نه وای بدله کړې، نو یا په واو اوښتله نو درک نه معلومېدی چي دا لفظ واوي دی که یایي، نو چي ضمه یې په کسره بدله کړه یا سالم پاته سوه، نو معلومه سوه چي یایي دی، روح المعاني، روح البیان، مظهري.

**درویش وایي:** چي که زه تول اختلافات د مفسرینو رح د دغو بتانو یعنې لات والعزی ومنات وثالثة الاخری په ځایو کي او د دوی په عابدینو کي بنابر تفصیل راوړم شاید ډېري نوري صفحې به په بره کي ونسي چي و متعلمینو ته د تفسیر ایوبي

به درد سر بلا فائده پیدا کړي، وفیما ذکرنا خلاصة للتفاسیر المشار الیها، کفایة:
تا طبع شریفت نپذیرد ملالتی ...... آن به که به تفسیر قرآن برگردیم

إِنْ هِيَ إِلَّا أَسْمَاءٌ سَمَّيْتُمُوهَا أَنتُمْ وَآبَاؤُكُم مَّا أَنزَلَ اللَّهُ بِهَا مِن سُلْطَانٍ

(الضمیر راجع الی الاصنام المتخاذة من الاحجار وغیرها من الذهب والفضة) نو معنی د ایت داده: نه دي دغه جمادات هیڅ یو د دوی مستحق د الوهیت (لکونها لیست) مګر صرف نومان دي چي تاسي او ستاسي پلرو او نیکه ګانو په هغو سره مسمیٰ کړي دي دغه جمادات. چي نه دی نازل کړی خدای عزوجل د دوی په الوهیت سره یو دلیل عقلي یا نقلي، بلکې دلائل عقلیة والنقلیة متوافرة علی عدم استحقها قها الالوهیة.

**پوه سه:** چي جمله و سمیتموها او جمله د ما انزل الله آه دواړي صفت دي د الاسماء، او ضمیر راجع دی و اصنامو ته، والمستثنی المفرغ خبر د هي دی والمعنی ما تلک الحجارة الهة الا الهة اسمیة باصطلاحکم من غیر داع الیه، وما انزل الله علی الوهیتها واستحقاقها للعبادة حجة او داسي هم روا ده چي د هي ضمیر و اصنامو ته راجع وي باعتبار مایدعی الکفار چي دا بتان زموږ حقائق ملکیة دي حال دی زموږ په بتانو کي، نو دغه بتان زموږ د خدای لوڼي دي وشفعائنا عند الله، نو معنی د ایت داسي ده، نه دي دغه بتان ستاسي هیڅ شی في الواقع الا اسماء چي مسمی نه لري تخیلتم وجودها وسمیتموها باسماء مثل اللات والعزی ومناة او د بنات الله نوم مو پر ایښی دی او شفعاء یې بولئ او حال په اصنامو کي بولئ ما انزل الله بوجودها برهانًا، کذا في المظهري وغیره.

إِن يَتَّبِعُونَ إِلَّا الظَّنَّ وَمَا تَهْوَى الْأَنفُسُ

متابعت نه کوي کفار مکه وغیرهم مګر نه د ګمان چي دوی ته پیدا سوی دی له تقلید څخه د نیکه ګانو من غیر دلیل صحیح، کلمه د ما موصوله ده او عائد یې محذوف دی، والمعنی ما تشتهیه (هذا هو العائد) انفس هم الامارة بالسوء، او الف واللام لپاره د عهد دی او یا عوض د مضاف الیه دی ای انفسهم الامارة، ولي چي عادة د نفس دادی چي سړی د سوا و فحشاء و خواته کشوي، والعقل یسوق الی حسن العاقبة.

**پوښتنه**: په د مخه ايت کي خو دوی مخاطب وه يعني انتم واباؤکم او په دې يتبعون کي يې ولې غائب راوړه؟

**جواب**: د دې لپاره يې غائب راوړه چې تعداد د قبائح د دوی دا غواړي چې د دوی څخه دې اعراض وکړل سي او د دوی د قبائحو حکايت دې و نورو ته وکړل سي، لکن مع هذه النكتة ابن عباس او ابن مسعودؓ او ابن وثاب وطلحة والاعمشؒ تتبعون په تاء د خطاب يې وايي.

وَلَقَدْ جَآءَهُم مِّن رَّبِّهِمُ الْهُدَىٰٓ ۝

دا جمله حال ده له ضمير څخه د يتبعون مقرره د بطلان د ماهم عليه من اتباع الظن والهوى.

**پوه سه**: چې لام موطئه د قسم محذوف دی يعني والله چې په تحقيق راغلی ده د خدای له خوا څخه هدی، مراد له هدی څخه رسول اللهﷺ دی يا مراد ځني قرآن دی.

**فائده**: اطلاق د هدی چې مصدر دی پر عليه الصلوة والسلام يا پر قرآن مبالغة دی يعني بايد دوی اتباع الظن وماتهوى الانفس يې پرې ايښی وای او اتباع د محمدﷺ يا د قرآن کريم يې کړې وای چې هغه له جانبه د رب د دوی ده.

أَمْ لِلْإِنسَٰنِ مَا تَمَنَّىٰ ۝

**پوه سه**: چې کلمه د ام منقطعه ده په معنی د بل ده لپاره د انتقال من بيان چې هغه شی چې کفار پر هغه ولاړ دي يعني من عبادة الاصنام سره د دې چې هغه کم سند نسته مگر توهم د دوی او هوى انفسهم الى بيان ان ذالک لايجدي نفعًا اصلاً، او بل همزه دی لپاره د انکار او نفي يعني ليس للانسان ما يتمناه وتشتهيه نفسه يعني کفارو د بتانو طمع د شفاعت کول من الهتهم، يا به دوی دا ويل چې لئن رجعنا الى ربنا ان لنا للحسنى يعني په ورځ د قيامت، او يا د دوی اشتهاء وه چې نزول د قرآن پر يو رجل د دوی چې مکه ده چې په هغې کي مشر او مالدار سړی وليد بن المغيرة وُ يا په طائف کي مسعود بن عمرو الثقفي بايد پر هغو نازل سوی وای، ونحو ذالک من خرافاتهم.

فَلِلّٰهِ الْاٰخِرَةُ وَالْاُوْلٰى ﴿٢٥﴾

الفاء للسببية او دا جمله علت ده د نفي چي د ماسبق څخه وفهمېدی يعني چي نسته انسان لره ما يتمناه، ولې چي نعيم دده دار الآخرة او د دار الدنيا هر يو يې مملوک د خدای ﷻ دي او اعطاء يې هم خاص په خدای پوري ده دواړه نعمتونه د آخرة او د دنيا ورکوي ومن يشاء ته او منع کوي د من يشاء څخه په دې کې هيڅ مدخل نسته تمنّٰی لره د چا ولا شيئ آخر يفعل مايشاء ويحکم ما يزيد لاوجوب عليه ولا اعتراض عليه فيما يفعله.

**سوال:** اخرة يې ولې دمخه کړی او سره ددې چي وجود کې خو دنيا دمخه ده؟

**جواب:** لپاره د قطع د طمع د کافرانو چي موږ لره په اخرت کې عند الله للحسنی دي.

وَكَمْ مِّنْ مَّلَكٍ فِى السَّمٰوٰتِ لَا تُغْنِىْ شَفَاعَتُهُمْ شَيْـًٔا

او ډېري له ملکو څخه چي کائن په اسمانو کې دي چي شفاعت د دوی نفع نه لري يو شی له نفع څخه في وقت من الاوقات.

اِلَّا مِنْۢ بَعْدِ اَنْ يَّاْذَنَ اللّٰهُ لِمَنْ يَّشَآءُ وَيَرْضٰى ﴿٢٦﴾

مګر په هغه وخت کې څه وخت چي خدای عزوجل و دوی ته اجازه ورکوي د شفاعت ''لمن يشاء'' من الملائكة ان يشفع او من الناس ان يشفع او شفاعت هم د هغو خلکو چي خدای عزوجل په شفاعت د ملکو و دوی لره راضي وي ''ويرضٰی'' او سره ددې چي ملائکه عباد مکرمين او مقربين دي عند الله نو څرنګه کفار طمع کوي د شفاعت د جماداتو چي د دوی بتان دي، ويقولون هؤلاء يعني الاصنام شفعائنا عند الله يوم القيامة. البغوي وايي چي مراد له ملکو څخه هغه ملکي دي چي دوی يې عبادت کاوه چي دا بنات الله دي زموږ شفاعت به کوي يعني دا دروازه د شفاعت پر دوی بنده ده لانه کذب بحت على الله عزوجل.

اِنَّ الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ لَيُسَمُّوْنَ الْمَلٰٓئِكَةَ تَسْمِيَةَ الْاُنْثٰى ﴿٢٧﴾

په تحقيق هغه کسان چي پر اخرت ايمان نه لري، مسمی کوي ملائکه (چي هغه پاکي دي له سماتو څخه د نقصان على الاطلاق) په تسميه سره د انثی، ولې چي

دوی به ویل چي ملائکه بنات الله دي وامهاتهم بنات سروات الجن، او میندي د دوی لوڼي د سردارانو د پیرانانو دي، سبحانه وتعالی عما یقولون علواً کبیراً.

**فائده:** لفظ د الملائکة لپاره د استغراق د مفرد دی یعني کل واحد منهم لکه په محاوره کسانا الامیر حلة، ای کسا کل واحد منا حلة، والافراد یعني مفرد یه نه وو ایه یعني ملک لعدم اللبس او انثی یې هم مفرد راوړی ولم یقل تسمیة الاناث، فلا حاجة الی ماقیل ان الانثی بمعنی الاناث دي او یا دې تأویل ته هم ضرورت نسته چي انثی په معنی د طائفة الانثی دی.

**فائده:** وفي تعلیق التسمیة بعدم الایمان بالآخرة اشعار بان هذه المقولة في الشفاعة والقناعة واستتباع العقوبة في الآخرة بحیث لایجتري علیها الا من لایؤمن بها رأسا (ای بالکلیة)

وَمَا لَهُمْ بِهٖ مِنْ عِلْمٍ ۭ اِنْ يَّتَّبِعُوْنَ اِلَّا الظَّنَّ ۚ

**پوهه:** چي دا جمله "ومالهم به من علم" حال ده له فاعل څخه د یسمون.

**سوال:** ضمیر د به څو راجع دی و تسمیة ته نو مذکر یې ولي راوړی؟

**جواب:** په تأویل د مذکور یا په تأویل د قول فافهم.

"ان یتبعون" دوی متابعت نه کوي (في ذالک القول)

**پوهه:** چي ظن دلته په هغه معنی نه دی چي متعارفه ده یعني الجانب الراجح بلکې دلته په معنی د توهم باطل دی.

وَاِنَّ الظَّنَّ لَا يُغْنِيْ مِنَ الْحَقِّ شَيْـــًٔا ۚ

**پوهه:** چي او مراد له حق څخه علم دی وهو الاعتقاد الجازم (په قید د جازم ظن خارج سو) الثابت ای الدائم (په دې قید سره تقلید د مقلد ووتی) المطابق للواقع (په دې قید سره جهل مرکب ووتی) روح المعاني وایي چي ظن چي فائده نه کوي هغه مسائل اعتقادیه دي چي په هغو کي جزم لازم دی وانما یعتد به (ای بالظن) في العملیات والقصص عن الامم الماضیة ونحوها.

**اعراب:** لفظ د شیئًا منصوب دی چي مفعول مطلق د لایغني دی والمعنی شیئًا من الاغناء او من الحق ظرف لغو دی متعلق دی په لایغني پوري، او یا

منصوب دی مفعول به دی و من الحق حال منه تدبر.

**درویش وايي**: چي كه څه هم روح المعاني او روح البيان اجمالاً دا ويلي دي چي عدم اعتبار د ظن مخصوص دی په عقائدو سره چي په هغو كي جزم لازم دی البته ظن كافي دی په عملياتو كي لكن بيا هم مظهري ؒ دېر ښه تفصيل ښکښي كړی دی حيث قال: فانقيل چي په شرع كي اتباع د ظن په عملياتو كي روا ده ولي غالب مسائل د فقې شريفي مستنبط دي له ادلة ظنيه ؤ څخه كالقياس واخبار الاحاد من الاحاديث ونحو ذالک كثير من قصص الامم الماضية وتفاصيل نعيم الجنة وعذاب جهنم وتفاصيل يوم الميعاد لانها ثابتة بالاحاديث الاحاد التي تفيد الظن فلو لم يكن الظن من العلم لكان تعليمها و تعلمها عبثًا، د دې سوال په جواب كي مظهري ؒ ويلي دي قلنا چي پښتو ژباړه يې داده: معنی د دې ايت داده چي نه ده روا اتباع د ظن په داسي ځای كي چي دا علم ظني معارض وي د هغه علم سره چي حاصل يې په دليل قطعي سره وي كالعلم الحاصل بالقياس او الجز الواحد چي معارض د علم ثابت بصريح القرآن سره وي اذ لاشک ان الاضعف لا يصادم الاقوى، نو مقتضى د دې ايت داده ان العقائد الحقة الثابتة بالادلة القطعية العقلية او الايات المحكمات و الاحاديث المتواترة السمعية ولو كان التواتر بالمعنى دون اللفظ لايجوز تركها باطباع الظن، او كه ممكن وي اول سړی دي تحصيل د علم دي د دلائلو قطعيه ؤ سره والعمل بها او كه چېري دليل قطعي نه وي موجود نو عقل سړي ته اجازه وركوي چي په ډېر احتياط سره دي مراجعه و دلائلو ظنيه ؤ ته وكړي او عقل واجب بولي عمل په دليل ظني سره اى مايفيد الظن بطريق صحيح، امثله يې دا دي (۱) په خبر واحد سره ثابته ده چي وتر واجب دي (۲) د ځانبت لمونځ سنت دی (۳) والبنج يعني چرس حرام دي (۴) او بيع په شرط فاسد سره ممنوع ده، وليس في هذه المسائل دلائل قطعية تعارض هذه الظنون، نو عقل په دې سره حكم كوي چي وتر دي څوک نه پرېږدي ولايشرب البنج ولا يباع بالشرط الفاسد مخافة عذاب الله او د ځانبت لمونځ دي كوي رجاؤ الثواب لان احتمال جلب النفعة مع التيقن بعدم المفرة لكه د ځانبت په لمانځه كي كافي دی لپاره د كولو د هغه كار، واحتمال د ضرر لكه په شرب البنج كي كافي

دی لپاره د اجتناب مثلاً که د سړي ظن وي چې په غار کې به مار وي باید ګوتې په چخ نه کړي او ظن په مسائ فقهیه ؤ وانما هو في الطريق اى الخبر الواحد او القياس فبعد الظن الصحيح العمل بها واجب وايضًا قد ثبت بالادلة القطعية من الاحاديث المتواترة یعني چې از روی معنی متواتر دی که څه هم لفظًا متواتر نه دی باجماع الامة علماء الامة المرحومة وبقوله تعالی فاعتبروا یا اولی الابصار وبقوله تعالى فلو لا نفر من كل طائفة فرقة منهم ليتفقهوا في الدين الى اخير الآية، وجوب اتباع الاحاديث الاحاد والقياس الشرعي على شرائطه چې معارض د اقوی سره تر ده نه وي لکه کتاب الله یا حدیث متواتر لفظًا.

**درویش وايي**: چې دا ؤ تحقیق ددې مقام حسب طاقة الفقير عبيد الله ابو الفضل القندهاري:

حاسدان چې هر څه وايي دوی دې وايي
زه خادم یم د قرآن باک مې نه کېږي
روز محشر هر که آید تصویر جانان دربغل
من نیز حاضر میشوم تفسیر قرآن دربغل

**فَأَعْرِضْ عَن مَّن تَوَلَّىٰ عَن ذِكْرِنَا**

پس ته یا محمد (ﷺ) روی ګرداني وکړه د هغه چا څخه چې روی ګرداني کوي زما له ذکر څخه یعني القرآن والايمان او عن الاشتغال بذكرنا، یعني باک مه په کوه او زړه مه تنګوه لانک قد بلغت ما امرت به.

**سوال**: کفار خو د مخه تېر سوه في قوله تعالى ان الذين آمنو په دې ځای کې يې ضمير ولي نه ورته راجع کاوه یعني فاعرض عنهم، نو راوړلو ته د موصول سره د صله یعني عمن تولى عن ذكرنا ته ضرورت ؤ؟

**ځواب**: ضرورت دا ؤ چې د دوی توصيف وکړل سي په هغه قبيحه افعال سره چې په صله کې ذکر کېږي او بیان د علت او دلیل دی على قوله فاعرض، والحاصل فاعرض عمن اعرض عن ذكرنا وهو القرآن الكريم المفيد للعلم الحق اليقين او مشتمل دی پر اعتقادات حقه ؤ او حاوي دی پر علوم اولين او اخرين او

چي دغه قرآن مجيد په يادونکی دی دې خلکو ته اخرت وما فيها من الاعمال المرغوب فيها والمرهوب عنها چي معاصي دي، او بعض مفسرين وايي چي مراد د ذکر څخه مذکر دی چي الرسول ﷺ دی او مراد له اعراض څخه عدم الايمان بما جاء به من شرائع الدين المبين.

وَلَمْ يُرِدْ اِلَّا الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا ﴿٢٩﴾

او اراده نه لري مگر شهوات د ژوند ناقص او په هغو لذائذ دنيويه او شهوات نفسيه ؤ کي ډوب دي او منتهی د علم د دوی او د همت د دوی علم الامور الدنيوية دي.

ذٰلِكَ مَبْلَغُهُمْ مِّنَ الْعِلْمِ ۭ اِنَّ رَبَّكَ هُوَ اَعْلَمُ بِمَنْ ضَلَّ عَنْ سَبِيْلِهٖ ۙ وَهُوَ اَعْلَمُ بِمَنِ اهْتَدٰى ﴿٣٠﴾

دغه امور شهويه د دنيا ځای د انتهاء د دوی د علم دی (علم دلته په معنی د توهم او ظن فاسد د دوی دی فلايرد ان العلم هو الاعتقاد الجازم الثابت المطابق للواقع وليس لهم ذالک) په تحقيق ستا رب يا محمد (ﷺ) ښه خبر دی په هغه چا چي لار د حق ځني ورکه وي او خدای خبر دی په هغه چي د هدايت پر لار حق روان وي، له دې ايت څخه مقصد دادی چي ضالينو ته به جزاء د ضلالت د دوی ورکړي او مهتدينو ته به ثوابونه د هدايت موصله الی الحق د دوی ورکړي.

ابيات موعظت آميز مناسب آيات متلوه:

سيراب کن زبحر يقين جان تشنه را ..... زين پس خشک نشين بر سراب ريب
هوی و هوس را نماند ستيز ..... چو بيند سر پنجه عقل تيز
توان پاک کردن ز زنگ آئينه ..... وليکن نيايد ز سنگ آئينه

وَلِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ۙ

او خدای هغه شيان چي په اسمانو کي دي (من الملائکة وغيرها) او هغه چي په ځمکه کي دي على ظاهرها وفي باطنها ای هو تعالى خالقهم ومالکهم يفعل بهم مايشاء موافقًا لحکمته الباهرة، دا جمله عطف ده پر جمله سابقه.

لِيَجْزِيَ الَّذِينَ أَسَاءُوا بِمَا عَمِلُوا وَيَجْزِيَ الَّذِينَ أَحْسَنُوا بِالْحُسْنَى ۝

تا چي جزاء يعني عذاب ورکړي و هغو کسانو ته چي عمل د بد وي يې کاوه من الكفر والمعاصي، او ثواب ورکړي هغو کسانو ته چي عملونه يې په اخلاص قلبي يعني پاک له نفاق او رياء څخه کړي وي په مثوبة حسنٰى سره من الجنة ونعيمها.

**يوه سه:** چي لام متعلق دی بمضمون الجملتين السابقتين يعني خلق العالم وميز الضال عن المهتدى وحفظ احوالهم ليجزي الخ.

الَّذِينَ يَجْتَنِبُونَ كَبَائِرَ الْإِثْمِ وَالْفَوَاحِشَ إِلَّا اللَّمَمَ

هغه کسان چي ځانونه ساتي د لويو ګنهو څخه.

**فائده:** بعض مفسرين وايي چي فواحش عطف تفسير دی د کبائر، او بعض وايي چي فواحش هغه ګناه ده چي په شرع کي حد لري لکه زنا او سرقه وغيرهما، او بعض وايي چي فواحش هغه ګنهونه دي چي په کبائرو کي افحش وي لکه زنا د همسايه د ماينې سره.

**يوه سه:** چي بعض قراء لکه حمزه او الكسائي "كبير الاثم وايي يعني په صيغه د مفرد على ارادة الجنس، نو مراد له كبير الاثم څخه شرک دی، کريمه: ان الشرك لظلم عظيم، او هغه کسان چي په صيغه د جمع يې وايي لکه باقي قراء مراد ځني اصناف د کبائر بولي چي د هغو په تعداد کي اختلاف دی، بعض يې اوولس (١٧) بولي بعض يې (١٩) بولي، او ابن عباس رضـ تر (٧٠٠) پوري بولي.

**درويش وايي:** چي په تفسير کي د سورة النساء تحقيق د کبائرو ګنهو تېر سوی دی، لکن روح المعاني په تفسير او تحقيق کي د کبائرو ګنهو او اختلافات د علماؤ په تعداد کي د هغو اوراق د خپل تفسير بنائسته کړي دي ان شئت فارجع اليه.

**يوه سه:** چي بعض بعض قراء وايي چي للمم هغه ګناه ته وايي چي که څه هم کبيره وي بيله همېشه والي بيا توبه ځني وکاږي ولا يكون عادت له ولا ثبات لکه شارب الخمر چي په شرب الخمر يې عادت وي بل حينًا بعد حين كذا قال الجوهري، فالاستثناء على هذه التقادير متصل كما هو الاصل، وقيل اللمم الصغار من الذنوب لکه د بيګانه ښځي يا امرد څخه مچه اخستل يا لمس بالشهوة، كذا في القاموس يعني دون الزنى هر کار

چي وي وهو قول ابن مسعود وابی هريرة والمسروق ﷺ والشعبي ؒ ورواه طاؤس ؒ عن ابن عباس ؓ، فالاستثناء على هذا منفصل لعدم دخول المستثنى وهو الصغائر في المستثنى منه وهو الكبائر، او ابن عباس ﷺ وايي مارئيت اشبه باللمم مما قال ابو هريرة ؓ عن النبي ﷺ ان الله كتب على ابن آدم حظه من الزنى ادركه لا محالة فزنى العين النظر (كتل دي بيگانه ښځي ته په شهوت سره) وزنى اللسان النطق (د بيگانه ښځي سره د زنى خبري كول) الى اخير الحديث، وقال الحسن ؒ اللمم النظرة من غير عمد، فهو مغفور او كه يې بيا په قصد ورته وكتل هغه لمم نه دى.

**تفريع:** نو پر دې تقدير المم اخص دى تر صغائر الذنوب، او بغوي ؒ په خپل سند سره داسي روايت كړى دى قال رسول الله ﷺ ان تغفر اللهم تغفر جمًا واى عبد لك لا الما.

## إِنَّ رَبَّكَ وَاسِعُ الْمَغْفِرَةِ

په تحقيق ستا خداى ؑ فراخه دى مغفرت دده يعني يغفر ما يشاء لمن يشاء من الذنوب صغائرها وكبائرها بتوبة ولا توبة.

**فائده:** عقب الله وعيد المسلمين وعد المحسنين بهذه الآية تا چي اصحاب الكبائر له رحمت عامه څخه د خداى ؑ نا اميد نه سي لكه معتزله چي وايي عذاب د گناه كارانو پر خداى واجب دى چي بلا توبة مړه سي، ابو نعيم د امير المؤمنين علي ؓ څخه روايت كړى دى چي يو نبي ته د انبياؤ ؑ د بني اسرائيلو خداى عزوجل وحي وكړې چي اهل طاعت ته د امت خپل و وايه چي تكيه پر اعمالو خپل دې نه كوي ولي چي كه زه تنگي وكړم په حساب كي د يو چا سره په ورځ د قيامت كي لاعذبنه، او و وايه و اهل معصيت ته ستا د امت چي زما له رحمت څخه دي نه نا اميده كېږي فاني اغفر الذنوب العظيمة ولا ابالي (زه باك نه په كوم)

## هُوَ أَعْلَمُ بِكُمْ إِذْ أَنشَأَكُم مِّنَ الْأَرْضِ وَإِذْ أَنتُمْ أَجِنَّةٌ فِي بُطُونِ أُمَّهَاتِكُمْ

خداى ؑ په تاسي خبر دى ستاسي په عملو سره او په سعادة او شقاوة ستاسي سره (يعني له ازل څخه) "اذ انشاكم" بحذف المضاف آبائكم آدم ؑ او يا معنى داده في ضمن انشاء ابيكم "من الارض" يعني انشاء اجماليًا فان علمه تعالى قديم، وقد قال رسول الله ﷺ خلق الله مقادير الخلائق (اى احوالهم) قبل خلق السموات والارض بخمسين الف سنة وكان عرشه على الماء، رواه مسلم.

"واذ انتم اجنة في بطون امهاتكم" او هغه وخت چي تاسي واست، اجنة جمع جنين ده يعني پټ واست.

**پوه سه:** چي اصل معنى د جن ستر دى ولهذا سمى المولود في رحم امه جنيًا الستره والجنة جنة لاستترار ارضها بالاشجار المكاثفة والجن جنًا لسترهم عن اعين الناس.

**پوه سه:** چي اذ انتم آه معطوف دى پر اذ انشأكم او دواړه ظرفه متعلق دي باعلم، له ابن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دى قال حدثنا رسول الله ﷺ وهو الصادق المصدوق (چي دى صادق دى او خداى ئې هم تصديق کړى دى) چي خلق د يوه ستاسي په رحم کي د مور څلوېښت ورځي نطفه وي (يعني مخلوق د پلار او مور څخه) ثم يكون علقة (بيا غليظه وينه وګرځي څلوېښت ورځي) ثم يكون مضغة (لکه ژوولي غوښه) مثل ذالک يعني څلوېښت ورځي، ثم يبعث اليه ملكًا باربع كلمات فيكتب عمله واجله ورزقه وسعيد او شقي ثم تنفخ فيه الروح الى اخير الحديث، متفق عليه.

فَلَا تُزَكُّوا أَنفُسَكُمْ

تاسي پاکي د خپلو ځانو مه واياست، چي ما دومره روژې نفلي نولي دي او زه صلوة التهجد هم همېشه کوم الى غير ذالک من الطاعات الواجبة والنفلية.

**پوه سه:** چي کلمه د فاء لپاره د ترتيب د نهي ده عن تزكية النفس على ما سبق من ان عدم المواخذة على اللمم ليس لعدم كونه من الذنوب بلكي كه لمم په محض فضل سره د خداى تاسي ته وبخښل سو مع علمه تعالى بصدوره منكم اى اذا كان كذالک فلا تزكوا انفسكم بالطهارة عن المعاصي بالكلية او په پاکوالي د اعمالو خپل بلکي شکر د خداى عزوجل واياست پر فضل د ده و مغفرته جل شانه للمم لكم، سعدي شيرازي قدس سره وايي:

همان به اگر مى بستن گوهرى ..... که همچون صدف سر نخود دربرى
اگر مسک خالص ندارى مگوى ...... وگر هست خود فاش گردد ببوى
منه اى پسر آب زر بر بشيز ...... که صراف دانا نگيرد بچيز

هُوَ أَعْلَمُ بِمَنِ اتَّقَىٰ ﴿٣٢﴾

خداى ئې ښه علم لري پر هغه تقوى داره سړي روح المعاني وايي چي لا فرق بين ان تكون تزكية النفس عبارة (كما مر امثالها) وبين ان تكون اشارة حتى چي تسمية ته

نحو ط د برة معنى ښکو کاره ښځه هم شامل دی، چنانچه اخرج احمد و مسلم و ابو داؤد وابن مردوية وابن سعد عن زينب بنت ابى سلمة انها سميت په بره سره يعني د مور او پلار له خوا څخه فقال رسول اللهﷺ لا تزكوا انفسكم الله اعلم باهل البر منكم سموها زينب او يا نوم د بركة پر زوى ايږدي.

**فائده:** دا نهي تنزيهي دي.

## أَفَرَءَيْتَ الَّذِي تَوَلَّىٰ ﴿٣٣﴾

آيا تا ليدلي (الاستفهام للتعجب والفاء للعطف على محذوف اى انظرت يا محمد) هغه چي اعراض يې وكړى له حق څخه چي ايمان دى.

**درويش وايي:** چي مشهوره په شان نزول كي ددې ايت داده چي دا نازل دى په باره كي د وليد بن المغيرة چي ده متابعت وكړى د نبيﷺ على دينه يعني ايمان يې راوړى ؤ.

**پوه سه:** چي وليد المذكور لوى سرمايه داره سړى ؤ په مكه كي، نو ده ته پېغور وركړى بعض مشركانو چي مشر يې ابى بن خلف ؤ چي تا ولي پرېښو دين د خپلو نيكه ګانو او هغه دي ګمراهان وبلل، وليد ورته وويل چي له عذابه څخه د خداى بېرېږم، نو هغه پېغور وركونكى چي ابي بن خلف ؤ وليد ته يې وويل چي دومره مقدار روپۍ ماته راكړه ورجع الى الشرك زه ستا عذاب پر ذمه اخلم.

## وَأَعْطَىٰ قَلِيلًا وَأَكْدَىٰ ﴿٣٤﴾

وليد بعض موعود روپۍ وابى بن خلف ته وركړې لكن لږ تر موعود روپو "واكدى" او پر باقي روپو وليد بخل مختاره كړى يعني نه يې وركولې، كذا قال البغوي.

**درويش وايي:** چي دا قول غير مشهور دى في شان نزول الآية، او ورته روايت ابن جرير له ابن زيد څخه هم كړى دى ان رجلاً اسلم (يعني د وليد نوم يې نه دى ذكر كړى) فلقيه بعض من يعيره چي و ده ته يې پېغور وركړى (يعني د ابى بن خلف نوم يې نه دى ذكر كړى) هغه معير و هغه سړي ته چي مسلمان سوى ؤ وويل: تركت دين الاشياخ پرې دي ښووى دين د خپلو سپين ږيرو چي شرك ؤ، او هغه دي ګمراهان وبلل؟ دا مسلمان سوي سړي ورته وويل چي زه له عذاب څخه بېرېدلم، هغه معير ورته وويل چي كه ته ماته دومره مبلغ راكړې (مقدار يې نه دى معلوم كړى) نو زه به هر عذاب چي ستا ؤ پر ذمه واخلم، فاعطاه شيئاً فقال المعير زدني څه مال نور راكړه، نو مسلمان

سوي سړي د نور مال له ورکولو څخه بخل مختاره کړي هغه بيا ورته وويل زه دني فاعطاه قليلاً بيا هغه معير خط ورته نوشته کړي او شاهدان يې هم پر دې معامله پکښې نوشته کړه، ففيه نزلت هذه الآية افرئيت الذي تولی الآية. وقال السدي نزلت في العاص بن وائل السهمي ذالک وانه يوافق النبي ﷺ في بعض الامور الی اخير القصة (يعني ايمان يې نه وړ راوړی) ومن اضعف الاقوال ما قال محمد بن کعب القرظي نزلت في ابی جهل وذالک لانه قال ما يأمرنا محمد الا بمکارم الاخلاق، لکن ترجمه د ايت يې داسي کړي ده اعطی قليلاً يعني ابوجهل قليلاً من الامر يعني الامر بمکارم الاخلاق "واکدی" بخل يې وکړی يعني ايمان يې نه راوړی.

**درویش وایي:** چي پر هر تقدير اصل معنی د کدی القطع ده مأخوذ من الکدية چي هغه يوه سخته ډبره ده چي د ځاه کيندلو په وخت کي پيدا سي يمنع الحافر من الحفر، وقيل غير ذالک في شان نزول الآية ولا يعباء به فالاول هو الاولی في شان نزول الآية والله اعلم.

أَعِندَهُۥ عِلْمُ ٱلْغَيْبِ فَهُوَ يَرَىٰٓ ۝

آيا په نيز د وليد بن المغيرة علم د غيب سته، والاستفهام للانکار يعني علم پر غيب نه لري، کلمه د فاء لپاره د سببية ده، الرؤية قلبية يعني وليد بن المغيرة پر دې علم لري چي هغه صاحب د ده چي هغه په مقابل د مال د وليد ضمانت د ده پر غاړه واخستی چي په اخرت کي ستا عذاب زه پر ذمه اخلم په ورځ د قيامت کي.

أَمْ لَمْ يُنَبَّأْ بِمَا فِى صُحُفِ مُوسَىٰ ۝ وَإِبْرَٰهِيمَ ٱلَّذِى وَفَّىٰٓ ۝

**پوهسه:** چي ام منقطعه دی په معنی د بل آه او بل لپاره د انتقال دی من قوله اعنده آه او همزه يې لپاره د استفهام انکاري دی "لم ينبأ" ای الم يخبر چونکه همزه چي لپاره د انکار وُ پر کلمه د لم داخل سو نو په قانون د دې چي نفي د نفي اثبات دی يعني تاسي خبر یاست "بما في صحف موسیٰ" يعني په اسفارو کي د تورات د موسیٰ سته او په صحف کي د ابراهيم، هغه ابراهيم چي وفا يې وکړه يعني بما امره الله به واتمه چي ذبح ته د زوی اماده سو کما مر وبلغ رسالاته تعالی او صبر يې وکړی پر ازار د خلکو له خوا چي اتباع د نمرود جبار وه او صبر يې وکړی پر اوور د نمرود، کريمه: واذ ابتلی ابراهيم بکلمات فاتمهن، له ابن عباس څخه روايت دی چي ابراهيم په احکامو سره د

اسلام من الواجبات والسنن والمندوبات تهولو سره وفٰی وکره ولم یوف بها احد غیره چي هغه جمله سهام ای الاحکام دېرش دي چي لس سهام یې په سورة ابراهیم کي دي من قوله تعالی: ان الله اشتری من المؤمنین انفسهم الی اخیر الآیات، او لس یې په سورت احزاب کي دي من قوله تعالی: ان المسلمین والمسلمات الی اخیر الآیات او شپږ یې في قوله تعالی: قد افلح المؤمنون الی خیرها او څلور یې په سئل السائل یعني من قوله تعالی: والذین یصدقون بیوم الذین الی اخیرها.

**درویش وایي:** چي خواص د ابراهیم ﷺ ډېر دي حتی په یوه روایت صحیح کي راغلي دي چي ابراهیم ﷺ چي نمرود جبار د منجنیق په ذریعه اوورته وغورځاوه جبرئیل ؑ اورته نارسیده ورته راغلی ده ته یې وویل: هلک لک من حاجة؟ قال ابراهیم ﷺ اما الیک فلا. فقال الی الله فقال ابراهیم ﷺ حسبي من سؤالي علمه بحاله، فقال الله تعالی: یا نار کوني بردًا وسلامًا علی ابراهیم الآیة، وروی ایضًا چي ابراهیم ؑ به یو فرسخ په طلب پسي د مهمان تللی فان وجده اکرمه والا نوی الصوم، ولنعم ماقیل في مدحه: وفي ببذل نفسه للنیران: وقلبه للرحمٰن: و ولده للقربان: وماله للاخوان ای الضیفان.

وفي الحدیث القدسي: ابن آدم (ای یا ابن آدم) ارکع لي اربع رکعات من اول النهار اکفک اخره.

**درویش وایي:** چي مراد له دې څلورو رکعتو څخه صلوة الضحٰی دی چي وخت یې په ښه لمر راپورته کېدو سره دی چي په دوبي ګوډې د جونګیانو پر مځکه سوځي. بزرګانو د دین د دې څلور رکعته لمانځه لپاره دغه سورتونه ټاکلي دي په اول رکعت کي وروسته تر سورة فاتحه سورة والشمس وضحٰها الی اخیره وفي الرکعة الثانیة واللیل اذا یغشٰی الی اخیره ثم یتشهد وفي الثالثة والضحٰی وفي الرابعة الم نشرح الخ.

**سوال:** د امیانو لپاره چي دغه مذکوره سورتونه یې نه وي په یاد د هغو چاره به څه وي؟

**ځواب:** الطاعة حسب الطاقة دی یعني د هغو لپاره کوم سورتونه چي یې په یاد وي کفایت کوي په ثواب کي.

**پوښتنه:** آیتونه د دوهم رکعت د سورة یعني واللیل اذا یغشٰی آخو بالا دي د اول رکعت تر سورة یعني والشمس وضحٰها؟

**ځواب:** فقهاوُ تصريح كړې ده چې په نفلي لمونځو كې دا زيادت د دوهم ركعت د سورة پروا نه لري يعني مكروه نه دى.

**فائده:** وسيئاتي مما نقل من صحف موسٰى في اخير سورة سبح باسم ربك الاعلى كذا في فتح الرحمن.

**پوښتنه:** موسٰى يې تر ابراهيم ولې مقدم راوړى مع ان ابراهيم اقدم منه وافضل؟

**ځواب:** لان صحف موسٰى يعني التورات اشهر عندهم واكثر، او بله خبره ده چې په دې تقديم كې د اقرب ځخه چې صحف موسٰى وې وابعد ته چې صحف ابراهيم وې لكون الاقرب اعرف عندهم، وعن ابى ذر الغفاري ﷺ قال يا رسول الله ﷺ كم من كتاب الله انزل الله قال (۱۰۴) كتب، انزل على آدم ﷺ عشر صحائف وعلى شيث ﷺ (۵۰) صحيفة، وعلى ادريس ﷺ (۳۰) صحيفة وعلى ابراهيم ﷺ (۱۰) صحيفة وانزل الله التورات والانجيل يعني الاول على موسٰى ﷺ والثاني على عيسى ﷺ والزبور على داوٗد ﷺ والفرقان على محمد ﷺ.

**فائده:** اخرج ابن جرير وابن ابى حاتم عن معاذ بن انس عن رسول الله ﷺ قال الا اخبركم (آيا زه تاسي خبر نه كړم چې ولې مسمٰى سو ابراهيم خليل الله بالذي وَفّٰى انه كان يقول كلما اصبح وامسٰى فسبحان الله حين تمسون وحين تصبحون الى اخير الآية.

**درويش وايي:** لاتعارض بين هذه الروات في ابراهيم الذي وفى لانها كلها كانت موجودة فيه ﷺ قطعًا.

اَلَّا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِّزْرَ اُخْرٰى ۙ

ان لاتزر (اى لا تحمل) وازرة (نفس حاملة لحمله) وزر اخرٰى (يعني وزر نفس اخرٰى)

**پوه سه:** چې روح المعاني او روح البيان وايي چې ان مخفف د مثقل دى اسم يې ضمير شان محذوف دى او وروسته جمله خبر ده او جمله سره د اسم او خبره په محل كې د جر ده، بدل ده د مافي الصحف الاولى او يا په محل كې د رفع دى خبر د مبتداء محذوف دى اى هو كانه سئل مافي صحفها ونقله المظهري ايضًا.

**پوښتنه:** په حديث صحيح كې راغلي دي: من سن في الاسلام سنة سيئة فعليه وزرها ووزر من عمل بها الى يوم القيامة، نو ددې حديث نه ظاهر ځخه دا معلومېږي چې واضع اول د سنة سيئة د نورو چې دده پر لار روان وي نيول كېږي؟

ځواب: دا واضح اول چي د نورو په ګناه نيول کيږي دا خو په سبب د اضلال دده چي ده نور خلګ ګمراهان کړه اضلال خو دده فعل دی لا وزر غيره.

وَاَنۡ لَّيۡسَ لِلۡاِنۡسَانِ اِلَّا مَا سَعٰىۙ ۝٣٩

او نسته انسان لره (يعني ثواب) مګر نه د هغه عمل چي ده سعي کړي وي.

پوهنه: چي ان مخفف د مثقل دی لکه په د مخه ايت يعني ان لا ترزآه او دا ايت عطف پر هغه دی او اسم يې ضمير شان محذوف دی او للانسان خبر د ليس دی والا ما سعی اسم د ليس دی، و کلمة ما مصدرية ويجوز ان تکون موصولة والمعنى وانه ای الشان ليس للانسان في الآخرة الا سعيه في الدنيا، هذا اذا کانت ما مصدرية او الذي سعى وعمل به اذا کانت ما موصولة، روح البيان روح المعاني.

فائده: د د مخه ايت مضمون چي دا وُ چي د يوه سړي په ګناه خدای عزوجل بل سړی نه نسي کمامر في قصة الوليد بن المغيرة، ددې ايت مضمون دادی چي خدای چاته ثواب نه ورکوي په عمل د خير د بل چا که قريب وي او که بېګانه.

درويش وايي: چي ددې په مضمون کي لوی اختلاف دی د مفسرينو او د فقهاؤ جمهور د مفسرينو او محدثينو پر دې مذهب دي چي د عمل د خير که عملي وي که مالي او که قولي وي ثواب د يوه د فعل و بل ته رسېږي بالاحاديث والاجماع. اما الاحاديث:

(۱) يو له هغو څخه حديث د ابی سعيد الخدري ﷺ دی، دی وايي چي ما له رسول الله ﷺ څخه واورېده چي ده وويل چي د يو مؤمن روح چي خدای قبض کړي نو هغه دوې ملکي چي دده سره ورسره وي کراماً کاتبين چي دده خير او شريې نوشته کاوه دوی خدای ته مناجات وکړي چي تا چي مقرر کړي وُ پر يوه بنده ستا بکتب عمله د هغه مؤمنه روح خو تا قبض کړی و ځان ته نو موږ ته اجازه راکړه چي موږ به په ځمکه کي اوسېږو (يعني د عبادت لپاره) خدای پاک ورته ووايي چي زما ځمکه ډکه ده د تسبيح ويونکو څخه لکن قوما على قبر عبدي (يعني المتوفى الآن) فسبحاني (ای سبحان الله) وهللاني (ای لآ اله الا الله) وکبراني (الله اکبر) الى يوم القيامة و اکتباه لعبدي (او دا ټوله زما د عبد مؤمن پر نامه ....... کوي، رواه ابو نعيم.

(۲) بل حديث د ابو هريره ﷺ دی چي روايت يې مسلم کړی دی قال قال رسول

الله ﷺ اذا مات الانسان انقطع عمله (ای ثواب عمله ولي چي ميت خو د ثواب کار نسي کولای) الا عن ثلاث الا من صدقة جارية (لکه يو پل چي پر رود مثلاً جوړ کړي يا يو مسجد جامع يې جوړ کړی وي چي خلک لمونځونه پکښې کوي) او علم ينتفع (يا يې علم پاته وي چي خلک فائده پر اخلي يا د شاګردانو په ذريعه يعني په شاګردانو کي يې مدرسان وي يا يې کتابونه تصنيف کړي وي چي له هغو کتابو څخه خلک ګټه اخلي)

**درويش وايي:** چي يا يې وقفي کتابونه پرې ايښي وي، او ولد صالح (که زوی وي او که لور) صالح يد عونه چي هغه دعاء ورته کوي.

**فائده:** ولد يې مقيد کړی په صالح سره يا ترغيبًا للولد على الدعاء للوالد المتوفي يا له دې سببه چي د نا صالح دعاء خدای عزوجل نه قبلوي.

**سوال:** په د غه حديث سره څنګه احتجاج وسو ولي چي صدقه جاريه خو د ميت خپل کسب دی او دغه رنګه علم ينتفع به الناس خو هم د ميت خپل کسب دی؟

**ځواب:** وجه د احتجاج يې اخيره جمله د حديث ده يعني دعاء الولد الصالح لان هذا الدعاء ليس من عمله فافهم.

(۳) بل حديث د ابو هريره رضی الله عنه دی: قال قال رسول الله ﷺ ان الله تعالى ليرفع الدرجة للعبد الصالح في الجنة فيقول يا رب اني لي هذه (د کومه خوا پيدا سوه دا درجه و ماته) فيقول (ای الرب جل جلاله) باستغفار ولدک لک، رواه الطبراني وروی نحوه عن ابی سعيد الخدري رضی الله عنه مرفوعًا.

**سوال:** مړي خو هنوز جنت ته نه دي ورغلي نو په رفع د درجې في الجنة دی څه پوهېږي؟
**ځواب:** بتعليم الله المتعال لروحه ذالک الرفع فتدبر.

(۴) بل حديث د ابن عباس رضی الله عنهما دی قال قال رسول الله ﷺ ما الميت في قبره الا شبه الغريق المتغوث (نه دی مړی په قبر کي مګر لکه يو سړی چي په اوبو کي ډوب سي چي طلب د کومک کوي) ينتظر دعوة ملحقة من اب او ام او ولد او صديق ثقة (يا له اشنای څخه چي اعتمادي اشنای وي) فاذا لحقته كانت احب اليه من الدنيا ومافيها وان الله ليدخل على القبور من دعاء اهل الارض امثال الجبال وان هدية الاحياء الى الاموات الاستغفار لهم، رواه البيهقي والدارمي.

**درویش وايي:** چي چشم ديد واقعه في اليقظة پر درويش خپل پلار مرحوم ډېر گران ؤ په ژوند کي ولي چي پاعث زما د علم او د کتابت هم دی ؤ او وروسته تر مرگ هم را باندي گران ؤ چي په هره دعاء کي په حضور قلبي ما ورته دعاء کوله او کوم يې، يو کال ما ته دا فکر پيدا سو چي زما پر پلار که څه هم حج فرض نه ؤ لمکسنته ته خو اوس الحمد لله قدرت لرې راسره يو نفلي حج د پلار لپاره وکړه هغه ؤ چي دا فکر مي مصمم سو، نو مي يو کال د پلار لپاره نفلي حج وکړی په دې حج کي ما پر لوړ چت د کعبې مکرمې طواف کاوه چي لاندي ازدهام ؤ د طواف په دوران کي مي له نژدې څخه خپل پلار وليدی چي ښه سپين کالي يې اغوستي وه پر هغه رنگ چي ما دی په ژوند کي ليدلی ؤ، ما چي هڅه پسي وکړه او دا مي وويل بابا، دی را څخه ورک سو هر څو مره کوشش چي مي وکړی بيا مي نه وليدی.

**تفريع:** نو په دې چشم ديد واقعه سره مي د نبي اکرم ﷺ پر دې حديث يقين و حق اليقين ته ورسېدی:

(۵) و روی الطبراني في الاوسط قال رسول الله ﷺ امتي امة مرحومة تدخل القبور بذنوبها وتخرج من قبورها لا ذنوب عليها، يخلص عنها باستغفار المؤمنين لها، قال العلامة جلال الدين السيوطي" وقد نقل غير واحد الاجماع ان الدعاء ينفع الميت ودليله قوله تعالى: والذين جاؤا من بعدهم يقولون ربنا اغفر لنا ولاخواننا الذين سبقونا بالايمان.

**درویش وايي:** چي دا آيت "ليس للانسان الا ماسعٰی المذکور في صحف ابراهيم و موسیٰ" چي مضمون يې دا دی چي نه رسېږي هيڅ چا ته ثواب د حسناتو د بل چا من الصلوة النفلية والصوم والصدقة والحج ونحو ذالک دا حکم په صحفو پوري د ابراهيم او موسیٰ ﷷ ؤ لکن د خصوصياتو څخه د امت مرحومه دی نسخ د دغه حکم د والحقنا بهم ذريتهم.

(۶) دا حديث چي روايت يې صديقې عائشې ﵂ کړی دی چي يو سړی راغلی و رسول الله ﷺ ته يې وويل چي زما مور نابېره مړه سوه او وصيت يې ونه کړی او زما گمان دی چي دې چي خبري کړي وای وصيت به يې کړی وای فهل لها اجر ان تصدقتُ عنها؟ قال ﷺ نعم، متفق عليه، هم دلالت پر دې کوي لکه ما قبل حديثو نه

چي هغه د صحف د ابراهیم او موسٰی منسوخ دي په حق د امت مرحومه کي.

(۷) و حدیث ابن عباس ﷺ ان سعد بن عبادة توفیت امه وهو غائب نو دی علیه الصلوة والسلام ته راغلی او ماجری د مرگ د مورېې بیان کړه فقال فهل تنفعها ان تصدقتُ عنها قال نعم، قال (ای سعد بن عبادة) اشهدک (زه شاهد کرځوم تا) ان حائطي (زما باغ صدقه دی زما په مور پسې) رواه البخاري.

(۸) او حدیث د ابن عمر ﷺ قال قال رسول الله ﷺ چي خیرات وکړي یو ستاسي څخه نفلي فیجعلها هو لابویه (ثواب یې مور او پلار ته وروبخښي) فیکون لهما اجرها ولاینقص من اجره شیئًا (یعني د متصدق هیڅ شی له ثواب څخه نه کمېږي)

(۹) د حضرت انس ﷺ حدیث دی، ده وویل چي ما د علیه الصلوة والسلام څخه واورېدل چي ده وویل: ما من اهل بیت یمیت منهم (یعني احد) نو قریبان یې په هغه پسي خیرات وکړي (من ای نوع کان) بعد موته الا اهداه له جبرئیل (استثناء د کلمې د ما نافیه) علی طبق من نور (پر یوه کاسه د نور) بیا جبرئیل ودرېږي پر غاړه د قبر د هغه میت او داسي وواېي یا صاحب القبر العمیق، دا هدیه چي تا ته را استولې ده قریبانو ستا نو قبوله یې کړه، هغه طبق په قبر ور ننباسي نو میت د پر په خوشحاله سي او نورو همسایه گانو ته دا خپل هدیه ښکاره کړي، نو همسایه گان یې دېر خوابدي سي ولي په دوی پسي قریبانو د دوی کومه هدیه نه ده را استولې، رواه الطبراني في الاوسط (نوم د کتاب دی تصنیف د الطبراني دی)

(۱۰) وحدیث زید بن الارقم ﷺ عن النبي ﷺ من حج عن ابویه (ای احدهما او کلاهما) ولم یحجا (او د دوی غاړي خلاصي کړي) وبشرت ارواحهما في السماء وکتب برًا (یعني د مور او پلار د حق خلاص) اخرجه ابو عبدالله الثقفي.

(۱۱) او د عقبه بن عامر ﷺ حدیث دی چي یوه ښځه راغله و رسول الله ﷺ ته او علیه الصلوة والسلام ته یې وویل چي زه حج وکړم د مور لپاره (وقد ماتت) چي هغه مړه سوې ده، علیه الصلوة والسلام ورته وویل چي ته خبره راکړه چي که ستا پر مور د چا پور باندي وای او تا هغه پور اداء کړی وای (یعني د پور غاړي یې نه خلاصېدلې؟) هغې ورته وویل هو یعني خلاصېدلې، نو رسول الله ﷺ ورته وویل حج ورته وکړه.

**درویش وايي:** چي رسول الله ﷺ چي تشبیه د حج د مور له خوا په پور سره وکړه

چي د هغې ښځي پر مور د چا باندي واى داسي فهمېږي چي د هغې ښځي پر مور باندي فرضي حج ؤ او دا مړه سوه، والله اعلم، رواه الطبراني.

(۱۲) وحديث انس رضي الله عنه قال جاء رجل الى النبي ﷺ وقال ان ابى مات ولم يحج حجة الاسلام (يعني فرضي حج) يعني غرض يې دا ؤ چي زه د خپل پلار لپاره فرضي حج وكړم د پلار غاړي مي خلاصېږي، فقال ﷺ ارئيت لو كان على ابيك دين كنت تقضيه عنه (يعني د پور غاړي يې خلاصېدلې) هغه سړي ورته وويل نعم قال رسول الله ﷺ فانه دين عليه (يعني حج فرضي پور د خداى ﷻ دى) فاقضيه، رواه البزار والطبراني بسند حسن.

**درويش وايي:** چي دا حديث تائيد كوي د هغه ترجمې چي فقير د ښځي د مور په حج كي وكړه ولي چي عليه الصلوة والسلام په دواړو حديثو كي تشبيه په پور سره وكړه، فقير وايي و لله الحمد.

(۱۳) وحديث ابى هريرة رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ من حج عن ميت فللذي حج عنه مثل اجره (اى الميت) رواه الطبراني في الاوسط.

(۱۴) و حديث عطاء وزيد بن اسلم مرسلاً قال جاء رجل الى النبي ﷺ فقال يا رسول الله ﷺ اعتق عن ابي وقد مات، قال ﷺ نعم، رواه ابن ابى شيبة.

(۱۵) وحديث ابن عباس رضي الله عنهما ان رسول الله ﷺ سمع رجلاً يقول لبيك عن شبرمة قال عليه الصلوة والسلام من شبرمة قال اخ لي او قريب قال ﷺ احججت عن نفسك قال لا قال حج عن نفسك ثم من شبرمة، رواه ابو داؤد وابن ماجه والدار قطني والبيهقي وقال اسناده حسن صحيح.

(۱۶) و حديث علي رضي الله عنه مرفوعًا من مر على المقابر وقرء قل هو الله احد (۱۱) مراة و وهب اجره للاموات اعطى (يعني القاري) بعدد الاموات، رواه السمرقندي.

(۱۷) و حديث ابى هريرة رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ من دخل على المقابر ثم قرء فاتحة الكتاب وقل هو الله احد و الهكم التكاثر ثم قال جعلت ثواب ما قرئت من كلامك لاهل المقابر من المؤمنين والمؤمنات كانوا شفعاً له (يوم القيامة) رواه ابو القاسم سعد بن علي.

(۱۸) و حديث انس رضي الله عنه ان رسول الله ﷺ قال فقرء سورة يٰس به يغفر الله عنهم

(ای الاموات) یعني العذاب ان کان لهم و کان له بعدد من فیها حسنات اخرجه عبد العزیز صاحب الخلال بسنده.

(۱۹) وقال السیوطي ؒ قد ورد قرائة الفاتحة عند رأس المیت (ای المدفون) وخواتیم سورة البقرة عند رجله.

(۲۰) قال الحافظ شمس الدین بن عبد الواحد مازالوا (همېشه) في کل مصر یجتمعون ویقرؤن لموتاهم من غیر نکیر فکان ذالک اجماعًا.

(۲۱) واخرج الخلالي عن الشعبي ؒ کانت الانصار اذا مات لهم میت، نو دوی به ورتله و قبر ته د هغه و یقرؤن القرآن.

(۲۲) وفي احیاء العلوم عن احمد بن حنبل ؒ قال اذا دخلتم المقابر فاقرؤا بفاتحة الکتاب والمعوذتین وقل هو الله احد واجعلوا ذالک لاهل المقابر یعني ثوابها فانه یصل الیهم.

(۲۳) و اخرج عن جعفر ؓ ان الحسن والحسین ؓ کانا یعتقان عن علي ؓ بعد موته.

(۲۴) و اخرج ابن ابی شیبة عن عطاء قال یتبع المیت بعد موته (یعني ثواب یې ور رسیږي) العتق والحج والصدقة.

(۲۵) و اخرج ابن سعد عن القاسم ؒ ان عائشة ؓ اعتقت عن اخیه عبد الرحمن ؓ رقیقًا عن تلاده یعني د خپل مال څخه ترجوا ان ینفعه بذالک بعد موته.

(۲۶) و حدیث عمرو بن العاص.

**پوه سه:** چي العاص کافر ؤ پر کفر مړ هم سو او عمرو چي دده زوی ؤ مسلمان ؤ، او د العاص بل زوی هشام ؤ چي هغه هم کافر ؤ، نو العاص چي مړ کېدی وصیت یې وکړی چي په ما پسي سل (۱۰۰) مریان ازاد کړئ، نو هشام خپل برخه چي پنځوس مریان کېږي ازاد کړه، عمرو بن العاص ؓ چي مسلمان ؤ راغلی او دا موضوع یې تبوله و علیه الصلوة والسلام ته بیان کړه، عرض یې دا ؤ چي زه خپله برخه پنځوس مریان په پلار پسي ازاد کړم دده ته به نفع وکړي؟ علیه الصلوة والسلام ورته وویل یا، انما یتصدق ویحج ویعتق عن المسلم لو کان ای العاص مسلمًا لنفعه لکن دی خو پر کفر مړ سو، له دې حدیث څخه دا ښکاره سوه چي مؤمن ته د صدقې او حج او د اعتاق نفع نه رسیږي، رواه ابو الشیخ ؒ.

(۲۷) و حديث الحجاج بن دينار ان من البر بعد البر يعني يعني دوه مور او پلار خو په ژوند كي د دوى كوي زامن لكن تر دې بر وروسته بل بر د مور او پلار پاتې سي يعني وروسته پر مړيني د دوى وهو ان تصلى عنهما يعني نفلي لمونځونه مع صلاتک ستا د فرضي لمانځه سره وتصوم عنهما نفلي روژه مع صيامک.

**درويش وايي:** چي والله اعلم چي مراد په عدد كي د روژو خپل هغه عدد روژه د مور او پلار نسي او يا مطلق روژه د قل او كثر او داغه رنګه دا دوه احتماله په لمونځو كي هم سته، والظاهر هو الثاني كيلا يفضى الى الحرج على الابن، وتصدق لهما مع صدقتک په دې كي دوه احتماله سته، والظاهر هو الثاني كمامر آنفًا، رواه ابو شيبة. بيضاوي" په توجيه كي د دې ايت وايي ان الصدقة والحج ينفعان من عز الميت فان الناوي كالنائب عنه نو دا هم سعي د ميت ګڼل كيږي.

**درويش وايي:** چي وهذا التوجيه ليس بشيئ لانه على هذا لا يحتاج الى الاحاديث المتكاثرة التي ذكرناه بل يكفيه حديث واحد وهو ان يقول انت كالنائب عنه، نو دا ټوله دده سعي ده هر ځاى چي وي كوه يې.

**پوښتنه:** ايوبي تا پر بيضاوي خوندي لوى محقق باندي رد وكړى؟

**ځواب:** هو! ته حق په رجالو سره پېژني كه رجال په حق سره پېژنې، الاول حال العوام والثاني حال الخواص، زه به اجمالاً تا پوه كړم چي عبد الكريم الكوراني" په سر كي د بيضاوي يعني قبل الشروع بكتاب البيضاوي يو څو ورقي دده په حالاتو كي يعني د القاضي البيضاوي حالات ټوله په محققانه ډول ښېرلي دي. ته هغه مطالعه كړه بيا پر درويش اعتراض وكړه، او بعضې علماؤ توجيه د دې ايت داسي كړې ده چي ميت ته چي د صدقات وغيرها ثواب رسيږي هغه په سبب د ايمان دده، نو دا ټوله صدقات تبع د ايمان دده دي، او ايمان خو دده خپل سعي ده.

**درويش وايي:** چي مفهوم د دې جواب في قلب قائله دي فافهم والله اعلم.

وَأَنَّ سَعْيَهُۥ سَوْفَ يُرَىٰ ۝

او په تحقيق سعي دده په دنيا كي ژر دى چي و به ليدل سي يعني په ورځ د قيامت كه مؤمن وي، او پاته سو كافر نو كه هغه هر څومره خير اتونه كوي لكه په دې اوسنى زمانه كي كافران د نړى مؤسسات خيريه لري چي يو ځاى زلزله وسي او د

خلګو کوروته او وداني ونړیږي خیره مؤسسات بالفور مرستي ورسره کوي د خوراکي موادو او د ملبوساتو الی غیر ذالک.

**فائده:** بعض مفسرین وايي چي د کفارو دغه ښه کارونه لغوه دي لعدم شرطها وهو الایمان، او بعض مفسرین وايي چي خدای پاک و کافر ته په دې دنیا عوض ورکوي من الصحة والعافیة وکثرة الاموال و الاولاد الی غیر ذالک من نعم الدنیا فهم کاجیر اخذ اجرته قبل تمام الوقت.

**درویش وايي:** چي د دې آیت یعني: وان لیس للانسان الا ماسعیٰ په تفسیر کي روح البیان اووه (۷) صفحې ولیک او لوست ته سپارلي دي، خو اکثره ځایونه یې داسي دي چي تفسیر ایوبي ورسره موافق دی البته بعض ځایونه یې مخالف دي، او علامه بغدادي په روح المعاني کي د پر مختصر بیان کړی دی او پر معتزله وُ یې رد کړی دی لکن بیا هم علامه بغدادي ګویا دریاب یې په کوزه کي ځای کړی دی او تفسیر قرطبي هم په زړه پوري تفسیر د دې ایت کړی دی.

**درویش وايي:** چي ثواب د اخرت او عدم ثواب پر فعل د خیر ولو کان العامل مؤمنًا په دې حدیث نبوي ﷺ کي چي د جوامع الکلم له افرادو څخه دی کما ورد في الحدیث الصحیح چي رسول الله ﷺ ویلي دي: و اوتیت جوامع الکلم، هغه حدیث دادی چي بخاري او نورو محدثینو روایت کړی دی "اِنَّمَا الْاَعْمَالُ بِالنِّيَّاتِ وَاِنَّمَا لِكُلِّ امْرِئٍ مَا نَوٰى فَمَنْ كَانَتْ هِجْرَتُهٗ اِلَى اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ فَهِجْرَتُهٗ اِلَى اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ وَمَنْ كَانَتْ هِجْرَتُهٗ اِلٰى دُنْيَا يُصِيْبُهَا اَوِ امْرَاَةٍ يَتَزَوَّجُهَا فَهِجْرَتُهٗ اِلٰى مَا هَاجَرَ اِلَيْهِ"

(اِنَّمَا الْاَعْمَالُ) ای ثواب الاعمال (بِالنِّيَّاتِ وَاِنَّمَا لِكُلِّ امْرِئٍ مَا نَوٰى) د مثال په توګه آن حضرت ﷺ د هغه وخت چي هجرت د مکې مکرمې څخه و مدینې منورې ته هجرت فرض وُ، داسي فرمايلي دي (فَمَنْ كَانَتْ هِجْرَتُهٗ اِلَى اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ فَهِجْرَتُهٗ اِلَى اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ) یعني دا هجرت یې مقبول او ثواب یې في الآخرة موعود دی.

**پوښتنه:** کلمه د من شرطي ده نو په دې عبارت کي خو شرط او جزاء سره یو نه سوه؟

**ځواب:** لا ولي چي شرط یعني فمن کان آه مقید دی ای نیة وقصدًا خالصًا سره، او جزاء هم مقید ده د ده په قید سره اعني قوله فهجرته الی الله آه، یعني ثوابًا في

الآخرة علیه الصلوة والسلام زیاته کړه (ومن کان هجرته الی دنیا یصیبها) چې دنیا ته ورسېږي او نفقه پیدا کړي یعني بعض مسلمانان چې مسکینان وه په مکه کې او خبر سوه چې انصار رض د مدینې د مهاجرینو رض سره ډېر کومکونه کوي او نفقې د کور او عیال ورکوي، د دغه غرض لپاره به یې هجرت مدینې ته وکړی (او امرئة ینکحها) یا د یوې ښځې لپاره چې هوري په مدینې کې به نکاح ورسره وکړي، لکه یوه ښځه چې د ام قیس په نامه وه چې کونډه وه او مسلمانه وه، په مکه مکرمه کې یو سړي دې ته مرکه وکړه د نکاح په مکه کې، دې ورته وویل چې زه خو هجرت کوم مدینې منورې ته که ته راپسې راغلې هورې نکاح درسره کوم، نو ښځې چې هجرت وکړی هغه سړی دې ته چې یې مرکه کړې وه پسې ورغلی او هورې یې نکاح سره وکړه (فهجرته الی ماهاجر الیه یعني الدنیا) یا د ام قیس نکاح.

**درویش وایي:** چې دا حدیث معیار دی د ثواب في الآخرة وعدمه لکه په دغه مذکور حدیث کې چې د دواړو مثال تېر سو، او دغه رنګه مدار دی د لږ ثواب او د ډېر ثواب ورکولو په یو عمل کې په سبب د دعاء مثلاً د نیت په باره کې فافهم.

ثُمَّ یُجْزٰىهُ الْجَزَآءَ الْاَوْفٰى ﴿۴۱﴾

وروسته به جزاء او ثواب ورکړل سي و مؤمن ته د خدای پاک له خوا څخه جزاء اتم و اکمل لایقادر قدره ان الله سبحانه سماه الجزا الاوفی.

**فائده:** الجزاء الاوفی مصدر مبین د نوع دی مثل جلست جلسة القاري.

وَاَنَّ اِلٰى رَبِّكَ الْمُنْتَهٰى ﴿۴۲﴾

مفسرینو د دې ایت دوې ترجمې کړې دي یوه معنی داده چې انتهاء د خلکو که مؤمن وي او که کافر وي او رجوع د دوی و خدای ته ده خاص لا الی غیره لا استقلالاً ولا اشتراکا، کما یدل علیه تقدیم الی ربک علی المنتهی، والمراد بذالک رجوعهم الیه سبحانه وتعالی یوم القیامة چې دوی حشر سي، د دې سببه ډېر مفسرین داسې ترجمه کوي: الی ثواب ربک من الجنة وعقابه من النار الی الانتهاء، او بعض مفسرین وایي چې معنی د ایت داده چې انه تعالی عزوجل منتهی د افکارو د عقلاؤ او اولیاؤ یعني افکار د متفکرینو فکر وهي ماهیات او هویات او فوائد او خواص د شیانو یې معلوم وي حتی چې حرم ته ذات د الله

عزوجل ورسېږي او حقـائقو تـه د صفات د الله عزوجل ورسېږي وقفت وتلاشت وانتهى سيرها، ددې ترجمې تائيد هغه حديث كوي چې البغوي" روايت كړى دى عن ابى بن كعب" عن النبي ﷺ انه قال في هذه الآية لا فكرة في الرب جل مجده.

**درويش وايي:** چي پوهان د دنيا او حكما، د نړۍ وايي لا يتصور الرب بكنهه اى بحقيقة الخاصة.... سعدي شيرازي قدس سره چي مخاطب يې رب جل وعلا دى داسي خواږه ابيات متناسبة المقام وايي:

اى برتـر از قـيـاس وخـيـلـل ووهم ..... وزهر چه گفته اند شنيديم وخوانده ايم
مجلس تمام گشت و به پايان رسيد عمر ..... ماهمچنان دراول وصف تـو مـانده ايم

قال البغوي" وهذا مثل ما روى عن ابى هريرة ﷺ مرفوعًا (يعني الى رسول الله ﷺ) تفكروا في الخلق ولا تفكروا في المخالق فانه لاتحيط به الفكرة.

**درويش وايي:** چي فكر په مخلوق كي دا دى چي اسمان ته و ګوره شمس او قمر او ستورو تـه و ګـوره چي خالق مقتدر په صفت د قدرة تامة او د رحمت عامه په وپېژني بلكې هره ذره له ذراتو څخه د عالم ائينه د قدرت د قدرة عظيمه د خداى" او د حكمت د رب جل وعلا ده، سعدي شيرازي" وايي:

برگ درختان سبز درنظر هوشيار ..... هر ورقى دفتريست معرفت كردگار

په يوه روايت كي د ابن عباس ﷺ چي ابو شيخ يې روايت كړى دى راغلي دي تفكروا في الخلق ولا تتفكروا في الخالق فانكم لا تقدرون قدرة، په صحيح حديث كي راغلي دي چي شيطان د سړي په زړه كي ورواچوي مثلاً من خلق السماء؟ سړى و وايي خداى" وهكذا من خلق الشمس والقمر والكواكب الى ان يقول من خلق الله چي وسوسه دې ځاى ته ورسېده اعوذ بالله دي ووايي او سوال و جواب دي ختم كړي.

**درويش وايي:** چي په دې باره كي احاديث صحيحه ډېر دي چي د فقير په علم ناقص سره متوترة المعنى دي چي د ټولو نقل ماته ډېر ګران دى ... بيت:

تا طبع شريفت نپيزيرد ملالتى .... ان به كه نامه بدعاء مختصر كنيم

مولينا جلال الدين الرومي قدس سره په مثنوي كي وايي:

دست بر بـالا دست ايـن تـا كـجا .... تا بـيـزدان كه الـيـه الـمنتهى
كان يكى درياست بى غور وكران .... جمله درياها چو سيلى پيش آن
ميلـهـا وچـارهـا كر اژدهـا ست ... پـيـش الا الله آنها جمله لاست

وَ اَنَّهٗ هُوَ اَضْحَكَ وَ اَبْكٰى ۙ

والمراد ان الله خالق كل شيئ من اعمال العباد حتى الضحک والبكاء، نو په دې سره رد دی پر معتزله وُ چې خالق د افعالو د عبادو بندګان بولي.

**يوه سه:** چې عطاء بن ابی مسلم ؒ وايي افرح واحزن.

**درويش وايي:** چې دا مجاز دی لان الفرح غالبًا يفضى الى الضحک سرورًا والحزن يفضى غالبًا الى البكاء فافهم. او مجاهد ؒ وايي اضحک (يعني الله ﷻ) اهل الجنة في الجنة وابکی اهل النار في النار، نو ضحک او بکاء پر دې تفسير محمول پر حقيقت دی، وقال الضحاک ؒ اضحک الارض بالنبات وابکی السماء بالمطر (نو پر دې تفسير ضحک او بکاء محمول پر مجاز دي) البغوي ؒ په خپل سند سره وايي چې اصحاب د نبي ﷺ به سره کښېنستل او بعض اشعار يا قصې د جاهليت د وخت به يې سره کولې او دون القهقهة چې ضحک يې بولي خندل به يې او عليه الصلوة والسلام به د دوی سره تبسم کاوه، وروی البغوي ؒ (يعني بسنده) عن قتادة ؓ قال سئل ابن عمر ؓ هل كان اصحاب النبي ﷺ يضحكون؟ قال نعم، والايمان في قلوبهم اعظم من الجبل، فاذا كان الليل كانوا رهبانًا يعني لمونځ د تهجد به يې په ډېر شوق او ذوق سره کاوه، او ترمذي د عبد الله بن الحارث بن جزء څخه روايت کړی دی قال ما رئيت احدًا اكثر تبسمًا من رسول الله ﷺ، وروی البخاري عن ابی هريرة ؓ قال قال ابو القاسم ﷺ لو تعلمون ما اعلم لبكيتم كثيرًا ولضحكتم قليلاً.

**درويش وايي:** چې دا حديث د حديثو سره د ضحک د اصحاب کرامو ؓ او د تبسم د عليه الصلوة والسلام منافي دی ظاهرًا، امام مظهري ؒ صرف احاديث نقل کوي او د جمع کوشش نه کوي، لکن روح البيان د سيدتنا عائشة ؓ څخه روايت کړی دی چې عليه الصلوة والسلام تېرېدی خلګ (يعني بعض صحابه) ناست وه خندل يې يعني بالضحک، فقال ﷺ لو تعلمون ما اعلم لبكيتم آه فنزل جبرئيل ؑ فقال انه تعالى يقول وانه هو اضحک وابکی، نو عليه الصلوة والسلام بيرته راغلی هغو خلګو ته چې خندل يې چې ما څلوېښت ګامه نه وه اخستي چې تاسي ته مې هغه خبره وکړه لبكيتم آه چې جبرئيل ؑ راغلی ما ته يې وويل چې بيرته ورسه هغو کسانو ته يعني هغه د مخه خبره چې تا ورته کړې وه او ورته وو وايه ان الله يقول انه هو اضحک وابکی.

**درویش وایي:** چي په حدیث سره د روح البیان تعارض او منافات د حدیثو دفع سو، او د روح البیان مصنف په (۱۱۲۷) تېر سوی دی، نو تفسیر روح البیان مقدم دی پر تفسیر مظهري ولي چي مظهري په (۱۲۲۵) کي وفات سوی دی چي تخمینًا تر مابین یې سل کاله فرق سته، نو زه نه پوهېږم چي مظهري د روح البیان و احادیثو ته ولي اعتبار نه ورکوي، ولي دی سند نه ذکروي لکه مظهري او یا یې د ایت په تفسیر کي روح البیان نه وُ مطالعه کړی، والاظهر هو الاول والله اعلم.

وَأَنَّهُۥ هُوَ أَمَاتَ وَأَحْيَا ﴿۴۴﴾

او په تحقیق هم هغه خدای انسانان وژني او بیا ژوندي کوي، او پر احیاء او اماتت هیڅ څوک قدرت نه لري لا خلقًا ولا کسبًا، لکن مراد له دې احیاء او اماتت څخه اختلاف دی، بعض وایي چي امات الآباء واحیاء الابناء، او بعض وایي چي یو میت شی پیدا کړي په حیوان چي نطفه ده او بیا هغه ژوندي کړي حیوان ځني پیدا سو، او تخم چي میت وُ ژوندی درخته ځني پیدا کړي، او روح المعاني په تفسیر کي د انه هو امات واحیا وایي چي حقیقت الضحک بسبب الاماتة والاحیاء لا سیما والموت سبب البکاء غالبًا والاحیاء عند الولادة الضحک، قال الشاعر بالعربیة:

ولدتک امک یا ابن آدم باکیًا .... والناس حولک یضحکون
فاجهد لنفسک ان تکون اذا .... بکوا ضاحکًا مسرورًا

وبالفارسیة:

یاد داری ز روز زادن تو .... خلق خندان بودند و تو گریان
همچنان زی که روز مردن تو .... خلق گریان باشند و تو خندان

**درویش وایي:** چي د دې عربي او فارسي بیتو مضمون سره یو دی.

وَأَنَّهُۥ خَلَقَ ٱلزَّوْجَيْنِ ٱلذَّكَرَ وَٱلْأُنثَىٰ ﴿۴۵﴾ مِن نُّطْفَةٍ إِذَا تُمْنَىٰ ﴿۴۶﴾

او په تحقق خدای پاک پیدا کړي دي نر او ښځه په ټولو حیواناتو کي، له نطفې څخه د نر او ښځي چي په رحم کي د ښځي توی سي او سره ګډه سي، دا مذهب الضحاک رح دی.

**بوه سه:** چي آدم و زوجه حوا و عیسی علیهم السلام له دې څخه مستثنی دي، کما هو المعلوم.

**تنبيه:** په دې ايت کي يې ضمير د هو نه راوړی لکه په نورو ايتو کي لاندلا يتوهم نسبة خلق الزوجين الى غيره عزوجل.

وَأَنَّ عَلَيْهِ النَّشْأَةَ الْأُخْرَىٰ

او پر خدای ده خلق الثاني، يعني البعث بعد الموت يوم القيامة.

**سؤال:** کلمه د على خو لپاره د وجوب ده، او پر خدای عزوجل وجوب د شي نسته بل هو الخالق الجبار؟

**خواب:** کلمه د على دلته مجاز ده لاجل تاکيد الموعود من البعث بعد الموت او په تفسير البحر کي وايي چي چونکه مشرکان د بعث بعد الموت څخه منکر وه نو خدای پاک په رد کي د زعم د دوی عبارت د مبالغې راوړی يعني کانه تعالى اوجب ذالک ای البعث على نفسه.

وَأَنَّهُ هُوَ أَغْنَىٰ وَأَقْنَىٰ

او خدای پاک دی چي غنٰى بعضې خلکو ته ورکوي، او ورکوي قنية لده اموالو څخه.

**پوهه:** چي قنية هغه مال ته وايي چي يبقى و يدوم ببقاء نفسه او اصله لکه ميوه داره باغونه کالابل والغنم وغيرهما والبناء، کوټې او بنګلې.

**پوښتنه:** د اقنى و راوړلو ته څه ضرورت ؤ ولې چي په اغنى کي داخل دی؟

**ځواب:** سبب د راوړلو يې دا دی چي قنية انفس ته د اموالو او اشرف ته وايي چي باقي او دائم وي کمامر سابقًا... يو شاعر وايي:

کم من غنى اصاب الدهر ثروته...... و من فقير يقنى بعد اقلال

او الضحاک وايي: اغنى بالذهب والفضة وصنوف الاموال واقنى والابل والبقر والغنم، او بعض مفسرين وايي چي اغنى الناس بالکفاية من الاموال واعطى القنية وهي ما يدخرونه بعد الکفاية وفي تاج المصادر، الاقناء سرمايه دادن و خوشنود کردن، او بعض مفسرين لکه ابن زيد او اخفش وايي چي اقنى په معنى د افقر دی، توجيه د قول د دوی دا ده چي همزه د اقنى لپاره د سلب دی او ازالة نحو اشکيته ای ازلت شکايته، او ابن عباس رضي الله عنهما وايي اغنى واقنى يعني اعطى فاوصى، چي وپس مانده ګانو ته وصيت وکړي.

**درويش وايي:** چي د اغنى و اقنى متضاد تفسيرونه علماؤ کړي دي.

وَاَنَّهٗ هُوَ رَبُّ الشِّعْرٰى ﴿٤٩﴾

او خدای دی پیدا کونکی د شعری.

**يوه سه**: چي شعری يو ستوری دی وروسته جوزا ده دا دوه شعريان دي، يوه ته شعری عبور وايي او هغه بلي ته غميثا پر صيغه د تصغير سميت بها ای الغميثا لانها احقر من الاخری الی العبور، والمجرة چي په فارسي يې کهکشان بولي چي يوه سپينه لار غوندي ده چي د دوبي په وخت کي پر مابين د اسمان معلومېږي او مراد دلته شعری عبور ده.

**تاريخ قديم وايي**: چي د خزاعه قوم د دغي شعریٰ عبادت کاوه او اول سړی چي رسم د عبادت د شعری عبور ته يې قوم دعوت کړی يو سړیؤ له سردارانو څخه د خزاعة چي نوم يې ابو کبشهؤ، دې سړي له قريشو څخه د مکې چي عبادت د بتانو بې کاوه مخالفت مختاره کړی، ولما خالف رسول اللهﷺ په دين کي يعني په عبادت کي د بتانو سموه ای قريش ابن ابی کبشه لمناسبة مخالفة قريش في الدين.

**فائده**: تخصيص د شعری چي په ايت کي يې وکړی سره ددې چي رب او خالق د ټولو ستورو دی لپاره د تنبيه پر دې چي شعریٰ مخلوق د خدای دهٔ لا يستحق العبادة مثل اللات والعزیٰ، او ښايي چي يو قوم دې په زمانه کي د ابراهيم عليه السلام هم عبادت د شعریٰ کاوه ولذالک ورد التخصيص بها ای بالشعریٰ في صحف ابراهيم و موسیٰ.

**درويش وايي**: چي دا ؤ يو مختصر بيان د دې ايت په متعلق کي، او علامه آلوسيؒ په روح المعاني کي په باب کي د شعريانو اوږدې خبري کړي دي په اخير کي يې ويلي دي کل ذالک من تخييلاتهم الکاذبة.

**درويش وايي**: چي دا تخييلات کاذبه په حواشيو کي د شرح الچغمني هم راغلي دي لکن شعري عبور چونکه اکبر جرمًا وه او اکثر ضياء وه ځکه معبود د خزاعه وګرځېدی.

**فائده**: قريشو چي عليه الصلوة والسلام ته ابن ابی کبشه وايه يوه مشهوره او د قبول وړ وجه خو يې هغه وه چي قبلاً فقير ذکر کړه، لکن مفسرينو لکه روح المعاني او روح البيان نوري وجهي د تسميه د عليه الصلوة والسلام په ابن ابی کبشه سره هم راوړي دي (۱) يو له نيکه ګانو څخه د مور له خوا ؤ (۲) ابن ابی کبشة

كنيت ؤد وهب بن عبد مناف جده ﷺ (۳) و قيل هو كنية عم ولد حليمة السعدية چي مرضعه د عليه الصلوة والسلام وه.

**درويش وايي:** چي روح البيان او مظهري ډېر مختصر او په زړه پوري بيان په تفسير كي د دې ايت كړى دى، والله اعلم بحقيقة الحال.

وَأَنَّهُ أَهْلَكَ عَادًا الْأُولَى ۝ وَثَمُودَا فَمَا أَبْقَى ۝

او په تحقيق خداى جلت قدرته هلاک كړي عاديان، توصيف يې په اولى (يعني چې مؤنث د اول دى) سره په دې وكړى چې عاد مؤنث په اعتبار د تأويل د عاد په قبيله سره.

**پوه سه:** چي دا عاديان قوم د هود ﷺ وه او دوى اول قوم دى چې هلاک كړه سوي دي بعد قوم نوح ﷺ اهلكوا بريح صرصر، د اولى په قيد سره يې احتراز د عاد اخرىٰ څخه وكړى، په تكمله كي وايي چي وصف د عاد په اولى سره دلالت پر دې كوي ان لها ثانية فالاولى قوم هود ﷺ وه چي عاد بن ارم بن عوص بن سام بن نوح ﷺ يعني نسب نامه يې دغه ده، او دوهم عاد د هغو اولاد دى چې د هغو سره موسىٰ ﷺ جنګ وكړى په اريحاء كي.

**پوه سه:** چي "وثمود" بعض قراء يعني عاصم و حمزة بې تنوينه وايي چي عطف پر عاداً او غير منصرف دى په سبب د علمية او تانيث په تأويل د قبيلة، او بعض قراء يې په تنوين وايي يعني منصرف يې بولي په تأويل د قوم او وقف په الف سره پر كوي، دا ثمود قوم د صالح ﷺ وه هلاک سوه په نعره د جبرئيل ﷺ.

"فما ابقى" احداً اى دومن واحد من الفريقين اى عاد و ثمود احداً او دا احتمال هم سته چي ما ابقى عليهما فالابقاء على هذ التقدير په معنى د ترحم دى (بالفارسية بخشودن) وانما لم يترحم عليهما لكونهما من اهل الغضب ورحمة الله تعالى لاهل اللطف.

وَقَوْمَ نُوحٍ مِّن قَبْلُ إِنَّهُمْ كَانُوا هُمْ أَظْلَمَ وَأَطْغَىٰ ۝

او قوم فرعون د مخه تر دوى (يعني اهلكهم د مخه تر عاد او ثمود، تخصيص د قوم يې وكړى لان فرعون اولى و احرىٰ بالاهلاک لانه قال انا ربكم الاعلىٰ) په تحقيق قوم فرعون وه دوى ډېر سخت او ډېر سركښه او اهل طغيان تر عاد و ثمود (هم ضمير فصل دى لپاره د حصر) په سبب د ډېر تبليغ د نوح ﷺ نهه نيم سوه (۹۵۰)

کاله او سره د طول تبلیغ دوی پر سرکښني او معصیت او تکذیب ثابت قدم وه او دومره ازار به يې نوح عليه السلام ته رساوه چي له ډېر ضرب و کوب څخه به نوح عليه السلام بېهوشه سو او د خلکو به له ده څخه نفرت کېدی الی غیر ذالک من الاذیة.

وَالْمُؤْتَفِكَةَ أَهْوَىٰ ﴿٥٣﴾ فَغَشَّاهَا مَا غَشَّىٰ ﴿٥٤﴾

او هغه قریٰ خدای پاک هلاکې کړې يعني چپه يې را واړولې، چي قرىٰ د قوم لوط وې "اهوىٰ" ای پورته يې کړې جبرئيل الی جانب السماء والاهواء الاسقاط الی الارض مقلوبة.

**پوه سه:** چي المؤتفكة منصوب دی په اهوىٰ سره.

"فغشاها ما غشىٰ" دوی هغه شي پټ کړه چي دوی يې پټ کړه، چي د ډېرو باران يې پر وکړی المنفوذة (پی درپی)

**پوه سه:** چي په کلمه د ما غشى تهويل او تعظيم د ما غشاهم دی.

فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكَ تَتَمَارَىٰ ﴿٥٥﴾

په کومو نعمتو ته شک کوې او مجادله کوې (نو باب د تفاعل په معنی د مجرد دی) قال ابن عباس رضي الله عنه تکذب والخطاب لکل احد، والمعنى لايجوز الشک والمجادلة في آلاء ربک الباهرة والنعماء الظاهرة والقدرة الباهرة (ای الغالبة) بعد ما سمعت احوال الامم السابقة، قيل اراد الخطاب مع الوليد بن المغيرة، وقيل الخطاب للنبي صلى الله عليه وسلم.

**سوال:** ممارات او مجادلة في آلاء الله کي خو عليه الصلوة والسلام نه کوله؟

**ځواب:** دې ته تعريض وايي پر بل چا چي ممارات کوي.

**درويش وايي:** چي په هره ژبه کي داسته، په پښتو کي يو سړی پر خپل سر چي ښه وبښتان پر ولاړ وي لاس تېر کړي او وايي چي شکر دی چي پک نه يم، په مجلس کي يو پک ناست وي پر هغه تعريض کوي، وقيل الخطاب للانسان على الاطلاق قال البغدادي" وهو الاظهر والاستفهام للانکار يعني لاينبغي التماري في نعم الله.

هَٰذَا نَذِيرٌ مِّنَ النُّذُرِ الْأُولَىٰ ﴿٥٦﴾

دغه (يعني محمد صلى الله عليه وسلم او القرآن المجيد) ډېرونکی دی من الکفر والمعاصي.

**درويش وايي:** چي متعلق يې نه کړی ذکر للانذار عام للمؤمن والکافر لان

الانذار ليس مختصًا بالكفرة ولي چي داسي انسان نسته چي په ده کي دي ما لا ينبغي نه وي فافهم "من النذر الاولىٰ" اى من جنس النذر الاولى اى المنذرين الاولين من الانبياء والمرسلين، او الكتب والصحف النازلة من جانب رب العالمين.

**پوه سه:** چي الاولى چي مؤنث دى مفرد يې راوړى په تأويل د جماعت لمراعات الفواصل.... سعدي شيرازي وايي:

بگوى آنچه دانى سخن سودمند .... وگر هيچ كس را نيايد پسند
كه فردا پشيمان بر آرد خروش .... كه اوخ چرا حق نكردم بگوش
به گمراه گفتن نكو ميروى .... گناه بزرگست وجور قوى
مگو شهد شيرين شكر فائقست .... كسى را كه سقمونيا لائق است
چه خوش گفت يكروز دارو فروش .... شفاء بايدت دا روى تلخ نوش

درين ابيات سعدى قدس سره اشاره باينست كه انذار بر عموم علماء امت لازم است و در موعظت چاپلوسى نبايد كرد لكن حال اكثر علماء هذا العصر الحاضر معكوس است.

## أَزِفَتِ الْآزِفَةُ ﴿٥٧﴾ لَيْسَ لَهَا مِنْ دُونِ اللَّهِ كَاشِفَةٌ ﴿٥٨﴾

يعني نژدې سو قيامت كما في قوله تعالى اقتربت الساعة، نسته ازفة لره ماسوىٰ د خداى جلت قدرته مظهره ظاهرونكى كما يدل عليه قوله تعالى لا تجلها لوقتها الا هو.

**پوه سه:** چي بعض مفسرين وايي چي آزفة علم بالغلبة دى د ورځي د قيامت لپاره.

**درويش وايي:** چي نژدې والى د قيامت په متعددو ايتو كي د قرآن عزيز راغلى دى.

**پوښتنه:** له وخته څخه د آدم عليه السلام هر نبي او هر كتاب اعلان د قرب القيامة كړى دى او تر اوسه چي الوف د كلو تېر سوه قيامت نه دى قائم سوى؟

**ځواب:** هر راتلونكى شى قريب دى او هر ماضي شى بعيد دى، ولنعم ما قيل: قريب كل ما هو آتٍ وبعيد ما هو فات اى مضىٰ.

**پوه سه:** چي دا جمله "ليس لها آه" حال ده د "من الازفة" څخه، او "كاشفة" چي يې مؤنث راوړى موصوف يې مؤنث دى اى نفس كاشفة، او يا كلمه د تاء لپاره



Scanned by CamScanner

د مبالغې ده كالعلامة، روح البيان دا توجيه رد كړې ده ولې چې له دې ځخه دا توهم پيدا كېږي چې مطلق كشف يې بل څوك هم كولاى سي، وليس كذالک، روح المعاني دا اعتراض را نقل كړى دى وروسته يې ويلي دي وفيه نظر، والله اعلم بما في قلبه من النظر، او دا هم جواز لري چي الكاشفة دې مصدر وي كالباقية والعافية، وحاصل الآية ليس لها من دون الله كشف ولا يكشفها ولا يظهرها من دون الله غيره، او عطاء او قتاده او الضحاک وايي: ليس لها نفس قادرة على كشف اهوالها وشدائدها (چي زائل كړي دغه بيري او سختۍ چي په ورځ د قيامت به وي) الا الله تعالى لمن شاء من المؤمنين او خداى عزوجل هم حسب الموعود دا شدائد او اهوال له كفارو ځخه نه كشف كوي يعني زائلوي.

اَفَمِنْ هٰذَا الْحَدِيْثِ تَعْجَبُوْنَ ۝ وَتَضْحَكُوْنَ وَلَا تَبْكُوْنَ ۝ وَاَنْتُمْ سٰمِدُوْنَ ۝

**پوهه:** چي همزه لپاره د انكار دى (يعني تعجب د قرآن او خندل پر قرآن تاسي ته مناسب نه ده) او كلمه د فاء عطف ده پر مقدر كما هو القانون النحوي تقديره اتسمعون "وتضحكون" او خاندئ د استهزاء لپاره او ژاړئ نه خشوعًا وخوفًا من عذاب الله، او يا معنى داده چي تاسي خاندئ پر هغه شي چي تاسي ته خداى ذكر كړى دى من اللذات الدنيوية ولا تبكون تحزنًا على ما فاتكم من الايمان والطاعات.

**پوهه:** چي "سمد" په لغت كي غفلت ته وايي له يو شي ځخه واللهو، يعني انتم غافلون من عذاب الله على كفركم ومعاصيكم، او له ابن عباس رضي الله عنهما ځخه روايت دى چي سمود رفع الرأس تكبرًا چي البرطمه يې هم بولي، او عبد الرزاق او البزار او ابن جرير او البيهقي وجماعة عن ابن عباس رضي الله عنهما ان سمود الغناء (يعني سروز او غزل) په يماني لغت كي نو كفارو چي به قرآن واورېدى نو به يې غزلي ويلې او چكچكي به يې ورسره كولې ليشغلوا عن استماع القرآن، وجملة وانتم سامدون حال ده من فاعل لا تبكون، وفي الحديث الصحيح ان هذا القرآن نزل بالحزن فاذا قرئتموه فابكوا وان لم تبكوا فتباكوا (او كه ژړا نه درتله نو په تكلف د ژړا هيئت پر ځان جاري كړئ) ددې سبب دادى چي حزن سړى رسوي خوشحالۍ ته او ژړا د خداى جل جلاله له بيري سړى رسوي و خندا ته، صائب اصفهاني وايي:

بنال ای ساکن بیت الحزن از چشم تاریکی
که خواهد صیقلی گشت از جمال روشن یوسف .

فَاسْجُدُوا لِلّٰهِ وَاعْبُدُوا ۩

نو سجده وکړئ د الله ته لپاره (یعني خشوعًا و تواضعًا لله بوعده و وعیده) او د خدای عبادت کوئ دون غیره تعالی، له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت دی چي علیه الصلوة والسلام چي ددې ایت په ویلو سره سجده د تلاوت وکړه وسجد معه المؤمون والمشرکون والجن والانس، رواه البخاري وفي روایة ابن مسعود رضي الله عنه غیر ان شیخًا من قریش اخذ کفًا من حصی (له شګو څخه) یا یې خاوري تندي ته پورته کړې تندی یې پر کښېښو او وه یې ویل یکفیني هذا فلقد رئیته بعد قتل کافرًا او دا کافر امیه بن خلف ؤ، او بخاري وایي چي اول سورة چي په هغه کي سجدة التلاوة راغلې ده سورة النجم دی.

**پوښتنه:** د زید بن ثابت رضي الله عنه روایت دی چي ما سورة النجم پر رسول الله ﷺ تلاوة کړی ده سجده ونه کړه؟

**ځواب:** اول دا چي سجده تلاوت خو واجب بالفور نه دی، دویم دا چي شاید علیه الصلوة والسلام به اودس نه درلودی، دریم دا چي علیه الصلوة والسلام ته به یو عذر پېښ ؤ یعني یو سرې به خبره ورسره کوله.

**درویش وایي:** چي بحمد الله و حسن توفیقه له تفسیر څخه د سورة النجم پر پنځه تاریخ د محرم الحرام په ورځ د یک شنبې وخت د ماپښین (۱۴۳۳) هـ ق، او په هم د غه تاریخ مي شروع په تفسیر د سورة القمر وکړه.

اللهم سهل ویسر تفسیر هذه السورة بالخیر والعافیة والصحة التامة علی وجه السداد، والحمد لله رب العالمین والصلوة والسلام علی سید المرسلین وعلی آله واصحابه الهادین المهتدین وازواجه امهات المؤمنین.

سورة القمر مكية وهي خمس وخمسون اية وثلث ركوعات بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

**پوهسه:** چي دا سورت اقتربت هم بولي، او له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت دی چي دا سورة په تورات کي المبيضة هم بولي لانها مبيض وجه صاحبها (اى قائلها) يوم تسود الوجوه اخرجه البيهقي لكن بيهقي ويلي دي چي دا حديث منكر دی يعني په صحيح حديثو کي نسته، وجه ذالک ان تلک السورة بالعربية ليست في التورات، ويتوهم منه انه عليه الصلوة والسلام ترجم له بعض الغارقين بلغة التورات ونقل رسول الله ﷺ تلک السورة الى العربية وهذا بعيد غاية البعد لقوله تعالى: انا انزلناه قرآن عربيا وفي موضع آخر بلسان عربي مبين، او دا سورة په نېزد جمهور القراء مدني دی وقال مقاتل" مكية الا ثلث آيات (ام يقولون الى وأمر) او ابن ابى حاتم او الطبراني في الاوسط عن ابی هريرة رض انزل الله على نبيه ﷺ بمكة قبل يوم البدر، سيهزم الجمع ويولون الدبر، فقال عمر بن الخطاب رض قلت يا رسول الله ﷺ اى جمع يهزم (عليه الصلوة والسلام جواب را نه کړی) فلما كان يوم بدر او قريشو شكست وكړى نظرت الى رسول الله ﷺ چي توره يې له تېكي څخه كښلې وه وهو يقول سيهزم الجمع ويولون الدبر، فكانت تلک الآية ليوم بدر وان نزلت بمكة.

**تفریع:** نو چا چي دغه ايت په مشبهاتو کي (يعني حال يې معلوم نه دی چي مکي دی که مدني) راوړی دی يعني چي مکي نه دی خطا وتلی دی والله اعلم.

اِقۡتَرَبَتِ السَّاعَةُ وَانۡشَقَّ الۡقَمَرُ ۝١

يعني نژدې سو جدًا قيامت او سره دوې ټوټې سوه سپوږمۍ يعني په زمانه کي د عليه الصلوة والسلام قبل الهجرة پېښه کاله، په حديث مبارک کي په روايت د شيخانو او ابن جرير عن انس رض ان اهل مكة سؤال وکړی چي ته موږ ته علامه ستا پر صحت د نبوت را ښكاره كړه، نو عليه الصلوة والسلام د انشقاق القمر معجزه ورښكاره كړه حتى چي د سپوږمۍ يوه حصه پر غره وه او بله ټوټه تر غره كښته، او په يوه روايت کي راغلي دي چي يو يهودي چي د ابو جهل مېلمه، نو ابو جهل ورته وويل چي په موږ کي يو سړی دی چي دی وايي زه نبي او رسول من الله يم ته بې درک نه کړې را معلوم؟ هغه ورته وويل که ما وروليې زه يې سمدلاسه معلومات درته کوم،

ولي چي د ساحر سحر پر اسمان نه چلېږي، خير څورلس تايخ ؤ د مياشتي چي سپوږمۍ د بدر په حالت کي وه د شپې په کمال نور کي وه، نو يهودي و عليه الصلوة والسلام ته وويل چي ته سپوږمۍ ته اشاره وکړه چي دوه ځايه سي او بيرته اشاره ورته وکړه چي سره ضم سي يعني جوته سي، عليه الصلوة والسلام هم داغسي وکړه.

**درويش وايي:** چي روح المعاني وايي چي ابو نعيم له ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت کړی دی: ان احبار اليهود سئالوا، اية فارأهم الله القمر قد انشق لايعول عليه پر دې اعتماد نه کېږي.

**سوال:** تا د مخه وويل چي يو يهودي د ابو جهل کره مېلمه راغلی ؤ الخ، نو دا ستا د مخه خبره به د روح المعاني د قول سره مخالفه نه وي؟

**ځواب:** روح المعاني هغه روايت رد کړی ؤ چي احبارو د يهودانو دا سوال کړی ؤ زما په تېر سوي حکايت کي خو يهودي ؤ چي په امر د ابوجهل يې دا پوښتنه وکړه، وفي البخاري و مسلم وغيرهما من حديث ابن مسعود رضي الله عنه قال انشق القمر على عهد رسول الله ﷺ فرقتين فرقة (يوه ټوټه يې فوق الجبل وه) او يوه فرقه دون الجبل وه، فقال رسول الله ﷺ اشهدوا، ومن حديث ابن مسعود رضي الله عنه ايضًا وانشق القمر على عهد رسول الله ﷺ فقالت قريش هذا سحر ابن ابى كبشة (چي مراد يې عليه الصلوة والسلام ؤ کما مر بيانه) نو يو سړي له قريشو څخه وويل چي تاسي انتظار وکړئ چي مسافران راسي، ولي چي محمد خو دا طاقت نه لري چي پر ټوله دنيا دي سحر وکړي مسافرين چي راغله هغو هم د انشقاق القمر کېده تائيد کړه، ولي د بدر سپوږمۍ خو هر څوکويني، فانزل الله اقتربت الساعة وانشق القمر، او ابو نعيم في الدلائل له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت کړی دی که څه هم روايت يې ضعيف دی وايي: اجتمع المشركون على عهد رسول الله ﷺ منهم وليد بن المغيرة و ابو جهل بن هشام العاص بن وائل والعاص بن هشام والاسود بن عبد يغوث والاسود بن المطلب و ربيعة بن الاسود والنضر بن الحارث فقالوا للنبي ﷺ ان كنت صادقًا (يعني في دعوى النبوة) فشق لنا القمر فرقتين نصفًا على ابى قبيص ونصفًا على قينقاع؟ فقال لهم النبي ﷺ وان فعلت که داسي وکړم تاسي ايمان راوړئ؟ دوی ورته وويل نعم، نو رسول الله ﷺ و

خدای عزوجل ته خواست وکړی ان یعطیه ما سئالوا، نو وګرځېده میاشت دوې ټوټې علی نحو ما سئالوا، نو علیه الصلوة والسلام دوی ته ناري کړې اشهدوا، لکن يوه هم ايمان نه راوړی (الفتوی المتفق علیه للمفسرین)

روح المعاني وايي چي احاديث صحيحه په انشقاق القمر کي ډېر دي، واختلفوا في تواتره فقيل هو غير متواتر، وفي شرح المواقف للسيد الشريف الجرجاني انه متواتر وهو الذي اختاره العلامة ابن السبكي في شرح مختصر لابن حاجب الصحيح عندي ان انشقاق القمر متواترة منصوص عليه في القرآن، او بخاري او مسلم او په نورو كتابو كي د احاديثو من طرق شتّی بحيث لا يمترى في تواتره انتهى چي په تواتر کي يې شک نسي کېدای، وقد جائت احاديث صحيحة عن جماعة من الصحابة ﷺ منهم علي وانس وابن مسعود وابن عباس و حذيفة و جبير بن مطعم وابن عمر ﷺ ان لم يحضر تلک الواقعة کابن عباس فانهم لم يکن مولودًا في تلک الواقعة، وانس فانه ابن اربع سنة او خمس بالمدينة، وهذا لا يطعن في صحة الخبر.

**درويش وايي**: چي اکثره مذکوره خبري د روح المعاني وې لکن روح المعاني نوري اوږدې خبري کړي دي ما يې په تفسير ايوبي کي ګنجائش نه درلودی، او مظهري په څو روايتو متحدة المآل سره انشقاق القمر بيان کړی دی، او بعضو علماؤ داسي ويلي دي چي دا انشقاق په ورځ کي د قيامت دی آه.

**درويش وايي**: چي دا قول ليس بشيئ او مخالف لقول اکثر الصحابة ولاقوال اکثر المفسرين، وفي فتح الباري شرح البخاري لابن حجر حنين الجزع وانشقاق القمر کل منهما مشهورًا يفيد القطع واليقين عند من يطلع على طرق الحديث انتهى، وقال الطيبي اسند ابو اسحاق الزجاج (۱۹) حديث في تفسيره الى رسول الله ﷺ في انشقاق القمر بمكة .... بيت:

شق ګشت ماه چهارده بر لوح سبز چرخ .... چون خامه د بيرزد تيغ بناف او

وقال الجامي:

چو مه را بر سپر کرده اشارت　زد از سبا به تیر اشارت
دو نون شد میم دور حلقه ماه　چهل را لا ساخت او شصت از دو پنجاه
بلی چون داشت دستش بر قلم پشت　رقم زد خط شق بر مه ز انگشت

وَاِنْ يَّرَوْا اٰيَةً يُّعْرِضُوْا وَيَقُوْلُوْا سِحْرٌ مُّسْتَمِرٌّ ②

که و ويني (كفار د مكې) يوه معجزه (چې دلالت كوي پر صدق د عليه الصلوة والسلام په دعوىٰ كې د رسالت من الله عزوجل) دوى روى گرداني كوي (له تأمل څخه په هغه معجزه كې او له ايمان څخه) او دوى وايي چې دا سحر دى (نو سحر خبر د مبتداء محذوفي دى اى هذا) ''مستمر'' اى ذاهب سوف يذهب دا سحر به هم تېر سي لكه نور مستمر مشق دى من قولهم مر و استمر بمعنى ذهب (يعني د مجرد او د باب د استفعال ترجمه يوه ده) كذا قال مجاهد وقتادة وقال ابو العالية والضحاك مستمر قوى شديد يعلو كل سحر مراد دوى انشقاق القمر دى مأخوذ من قولهم مر الحبل (رسى) اذا صلب واشتد و من قولهم امرأت الحبل اذا احكمت فعله واستمر الشيئ اذا قوى اذا اشتد مرارته، او بعض مفسرين وايي سحر متتابعة يعني يو په بل پسې يعني گاهي يو سحر وكړي گاهي بل.

وَكَذَّبُوْا وَاتَّبَعُوْا اَهْوَآءَهُمْ وَكُلُّ اَمْرٍ مُّسْتَقِرٌّ ③

او دوى تكذيب وكړي د نبيﷺ او د قرآن او د هغه شي چې دوى په خپلو سترگو وليدى من انشاق القمر (وكذبوا عطف على انشق) او متابعت يې وكړى د وحي منزل.

**سوال:** متابعت د دوى خو په حال حاضر كې ؤ نو بايد مضارع راوړل سوى ماضي يې د څه لپاره راوړى؟

**ځواب:** د دوى لپاره چې دا تكذيب د رسول او قرآن د دوى عادت قديمه ؤ نه يوازې په وقت حاضر كې.

''وكل امر مستقر'' والمعنى كل امر مستقر اى منة الى غاية تسقر عندها لا محالة ومن ذالك امر النبيﷺ يا به يې خذلان وكړى يعني كومك به نه ورسره وكړي او يا نصر يا به كومك ورسره وكړي في الدنيا من غلبة على اعدائه واعلاء كلمة الاسلام كما وقع لهﷺ.

**سوال:** دې ته ولي مستقر وايي؟

**ځواب:** هر شى چې خپل پاى ته ورسېږي استقر دى كذا قال مقاتل، وقيل كل امر

مقدر من عند الله مستقر كائن لا محالة وكل امر وعده الله تعالى كنصرة النبي ﷺ واعلاء كلمة الله واقع لا محالة لامتناع الكذب على الله عزوجل وقد كان كذالك.

وَلَقَدْ جَآءَهُم مِّنَ الْأَنبَآءِ مَا فِيهِ مُزْدَجَرٌ ۝

اى الى كفار مكة (من الابناء) اى اخبار الامم الماضية الكافرة او ابناء امور الآخرة من الجنة والرضوان لاهل الايمان والعذاب والنار لاهل الطغيان.

اصله مزتجر وُ تاء د افتعال يې و دال ته واړول كلمه د ما موصوله ده يا موصوفه او مزدجر مصدر ميمي دى په معنى د ازدجار يعني الذي (كه ما موصوله وي او شيئ جائهم كما موصوفه سي) په هغه موعظت دى د ازدجار چې سړى د كفر او معاصيو څخه توبه وكاړي او د اوامرو د خداى امتثال وكړي فان هلاک الامم الماضية يقتضى ذالک ... بيت:

پند گير از مصائب ديگران ..... تا نگيرند ديگران زتو پند

حِكْمَةٌ بَالِغَةٌ فَمَا تُغْنِ النُّذُرُ ۝

''حكمة'' بدل دى له ''ما'' څخه في قوله ما فيه مزدجر ''بالغة'' يعني غاية متناهية في كونها حكمة لا حلل فيها، او يا معنى داده قد بلغت الغاية في الانذار والنهى والموعظة، في القاموس الحكمة بالكسر العدل والعلم والحلم والنبوة والقرآن، نذر جمع د نذير ده كلمه د ما يا نافيه ده يا استفهاميه لپاره د انكار دى والمعنى فلم تغن النذر (على تقدير كون ما نافية) او يا به څه غنا وكړي يعني النذر يعني لا ينفع النذر فالمآل واحد.

فَتَوَلَّ عَنْهُمْ ۘ يَوْمَ يَدْعُ الدَّاعِ إِلَىٰ شَيْءٍ نُّكُرٍ ۝

نو ته يا محمد (ﷺ) چې انذار فائده نه ورته كوي مخ ګرځني واړوه، په هغه ورځ چې ناره وكړي ناره كونكى و داسي شي ته چې نابلده او فضيع وي چې نفوس يې نه پيژني او انكار ځني كوي ولي تر اوسه يې نه وُ ليدلى وهو هول يوم القيامة.

**پوه سه**: چې دا ايت منسوخ دى په اية القتال سره، او ''يوم يدع الداع'' يا منصوب دى ظرف دى ليخرجون يا مفعول به دى د اذكر مقدر، وقيل ننتظر يعني ته انتظار وكړه و هغې ورځي ته، او يا ظرف مقدم ده يقول الكافر دى، او يا ظرف دى

د تول اى تول عن شفاعتهم يوم يدع آه چي مراد ځني ورځ د قيامت ده، والمراد بالدعی هو اسرافيل چي پر صخره د بيت المقدس و درېږي او داسي وايي يا ايها العظام النخرة والجلود المتمرقة ان الله يأمركن ان تجمعين لفصل الخطاب يعني الثواب والعذاب، رواه ابن عساكر عن بن جابر الشافعي.

**فائده:** حذف الواو من يدع لالتقاء الساكنين اى الواو في يدعوا واللام المدغمة يعني لفظًا خو په دغه سبب او رسمًا چي حذف کړی اتباعًا لرسم المصحف العثماني او اتباعًا للفظه، الکلمة يا په الداع کي حذف کړه تخفيفًا.

**پوه سه:** چي عرب نکر کنايه بولي د خوفناک شي لانه في الغالب منکر.

**فائده:** الحسن او ابن کثير دا لفظ نکر وايي باسکان الکاف کما في عشر وعشر.

خُشَّعًا اَبْصَارُهُمْ يَخْرُجُوْنَ مِنَ الْاَجْدَاثِ كَاَنَّهُمْ جَرَادٌ مُّنْتَشِرٌ ﴿٧﴾

عاجزه ذليل به وي سترګي د دوی، او اجداث جمع د جدث ده وهو القبر. والمعنی يخرجون من القبور، لکه هوايي مچخان چي په سپل راسي څوک پر مڅکو ځغلي څوک پر بل طرف روان وي، تشبيه يې په کثرت او انتشار کي ده.

مُّهْطِعِيْنَ اِلَى الدَّاعِ يَقُوْلُ الْكٰفِرُوْنَ هٰذَا يَوْمٌ عَسِرٌ ﴿٨﴾

چابک روان وي، ابو عبيده وايي چي بعض مفسرينو دا قيد هم ورسره زيات کړی دی مادی اعناقهم (غاړي يې جګې نيولي وي) وقال عکرمه چي غوږونه يې خلاص نيولي وي و داعي ته يعني اواز ته، او وايي به کافران چي ډېره سخته ورځ ده، ولي چي دوی و وينې خپل حال چي سوء العذاب دی، وعن ابن عباس ناظرين اليه لا تقلع ابصارهم، سترګي نه رپوي، وفي رواية عنه خاضعين.

**فائده:** په اسناد کي د قول مذکورو کافرانو ته اشاره ودې ته ده چي مؤمنان به داغسي نه وي ببرکة ايمانهم واعمالهم الحسنة.

كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ نُوْحٍ فَكَذَّبُوْا عَبْدَنَا وَقَالُوْا مَجْنُوْنٌ وَّازْدُجِرَ ﴿٩﴾

تکذيب کړی دی دوی د مخه تر کفارو د مکې (چي رسول به يې کاذب باله په دعوی کي د رسالت، تانيث د کذبت په اعتبار د تأويل د قوم دی په قبيله سره) يعني زموږ د بنده نوح.

**فائده:** عبدنا يې و وايه رسولنا يې نه وو وايه لان مقام العبودية فوق مقام الرسالة كما في اشهد ان محمداً عبده ورسوله، سر يې دا دی چې په عبودية سره وصال دی د رب العزة سره او په رسالت کي فراق دی په اعتبار التبليغ الى الخلق، تخصيص د نوح چې يې وکړی له دې سببه چې هغه زر کاله په پنځوس کم په تبليغ کي سرگردانه ؤ په دوران کي د نبوت دده قرنونه قرنونه تېر سوه هر قرن چې راغلی اشد تر دمخه قرن به يې دده تکذيب کاوه وهذا القانون جار فيهم الى الف سنة الا خمسين عاماً.

**بوه سه:** "وقالوا" عطف دی پر كذبوا او دوی به وويل "مجنون" خبر د مبتداء محذوفي دی ای هو "وازدجر" عطف دی پر قالوا وهو اخبار من الله عزوجل يعني زجروه دی منع کاوه څخه بانواع الاذية والتخويف لکه ابن زيد چې ويلي دي او د ايت شاهد خپل وگرځاوه لئن لم تنته يا نوح لتكونن من المرجومين، وقال مجاهد هو من تمام قول القوم ای هو مجنون وازدجرية الجن يعني پر دماغ يې پېريان مسلط سوي دي دماغ يې ور خراب کړی دی، او دا ايت پر دې دلالت کوي چې فعل ددوی ډېر بد ؤ تر قول ددوی.

**درويش وايي:** چې په دې ايت سره تسلي ده و عليه الصلوة والسلام پر اذيت د مکې والو ده لره او په عين حال کي وعد کريم دی لکه نوح ﷺ چې له اذيت څخه د قوم خلاص سو، نو ته به هم له اذيت څخه د کفارو د مکې خلاص سې.

فَدَعَا رَبَّهُۥٓ أَنِّى مَغْلُوبٌ فَٱنتَصِرْ ﴿١٠﴾

"فدعا" ای نوح "ربه" وروسته تر دې چې خدای پاک ده ته وحي وکړې انه لن يؤمن من قومک الا من قد امن فلا تبتئس بما كانوا يفعلون "اني مغلوب" ای باني مغلوب من قومي "فانتصر" زما کسات او انتقام له دوی څخه واخله بنزول عذاب عليه، د دعاء کلمات يې په بل ايت کي داسي راغلي دي: قال رب لا تذر على الارض من الكافرين دياراً انک ان تذرهم يضلوا عبادک ولا يلدوا الا فاجراً كفاراً.

فَفَتَحْنَآ أَبْوَٰبَ ٱلسَّمَآءِ بِمَآءٍ مُّنْهَمِرٍ ﴿١١﴾

**درويش وايي:** چې بعض مفسرينو دا عبارت او نظم جليل پر استعاره تمثيله حمل کړی دی چې فهم يې پر متعلمينو د تفسير ايوبي ډېر گران پرېوځوي، نو له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دی چې ابن المنذر او ابن ابی حاتم يې روايت کړی

دی، ابن عباس رضـ وویل چي تر طوفان نوح لم تمطر السماء قبل ذالک الیوم ولا بعده الا بواسطة السحاب لکن په طوفان نوح کي دروازې د اسمان بېله وریځې ورښت ته ایله کړې في ذالک الیوم، په یو روایت کي راغلي دي چي څلوېښت ورځي مسلسل باران شروع ؤ، ترجمه: نو موږ خلاصې کړې دروازې د اسمان و معنی المنهمر هو المنصب صبًا شدیدًا چي په پښتو یې د شرف باران بولي، ومن الاعاجیب چي پر قوم د نوح د باران څوکاله یعني د اورښت دروازه بند وه او دوی فاهلکهم الله بمطلوبهم یعني دوی باران غوښتی۔

وَفَجَّرْنَا الْاَرْضَ عُيُوْنًا فَالْتَقَى الْمَآءُ عَلٰٓى اَمْرٍ قَدْ قُدِرَ ﴿۱۲﴾

اصل کلام خو دا ؤ فجرنا عیون الارض (موږ خلاصې کړې چینې د مځکي) لکن په اية کي عیونًا تمییز د نسبت وګرځاوه د مبالغې لپاره کانه قال جعلنا الارض کلها عیونًا.

پوهه: چي التقاء باب د افتعال په معنی د تفاعل دی ولې چي اوبه د اسمان هم ورېدې او د مځکي څخه هم راوتلې.

**سوال:** باب د تفاعل خو دوه فاعل غواړي مثل ضارب زید وعمرو دلته خو یې فاعل یو دی یعني الماء؟

**ځواب:** چونکه الماء اسم جنس دی یطلق علی الواحد والکثیر نو الماء یې یو او مفرد راوړی، نو ګویا داسي یې وویل فالتقی الماءان یعني ماء السماء والارض المخلوط.

وَحَمَلْنٰهُ عَلٰى ذَاتِ اَلْوَاحٍ وَّدُسُرٍ ﴿۱۳﴾

او موږ ګرځولي ؤ دی، ضمیر راجع دی و نوح علیه السلام ته.

**سوال:** د نوح علیه السلام سره خو په کښتۍ کي من آمن به او دده زامن او د هغو زوجات هم وې د هغو ذکر یې ونه کړی؟

**ځواب:** لانهم تابعین له فلا حاجة الی ذکرهم.

"علی ذات" ای علی سفینة "ذات الواح" چي عریض من الخشب یعني فراخي تختې د لرګي "دسر" جمع د دسار ده او یا د دیسر ده یعني مېخونه چي پر تختو ټکوهلي وه.

**فائده:** د نوح ﷺ د کښتۍ تختې د ساج وې وهو شجرة عظيمة في الهند.

**بوه سه:** چې د سر په عربي مسامير هم بولي.

تَجْرِي بِأَعْيُنِنَا جَزَآءً لِّمَن كَانَ كُفِرَ ﴿۱۴﴾

"تجري" حال دی من ذات الواح څخه يعني روانه وه دا کښتۍ د اوبو پر مخ "باعيننا" ای محفوظة بحفظنا من الغرق که څه هم اعين جمع د عين ده چې سترګي ته وايي لکن په عربي ژبه کي کنايه د حفظ ده يقولون فلان في عيني ای في حفاظتي، فلا يرد ان الله عزوجل ليس بجسم حتى يكون له عين "جزآء" مفعول به دی يعني فعلنا ذالک يعني من حفاظة نوح ومن معه واغراق الآخرين ای الكفرة لاجل الجزاء "لمن کان کفر" د هغه چا لپاره چې کفر يې مختاره کړی ؤ او شکر د نعمت د خدای يې نه وايه چې نوح ﷺ ؤ، ولي هر نبي نعمت دی د خدای ورحمت على امته او شکر د نعمت د خدای واجب دی، نو شکر د نبي د را استولو الايمان به او کفران د نعمت يې الكفر به.

وَلَقَد تَّرَكْنَاهَا آيَةً فَهَلْ مِن مُّدَّكِرٍ ﴿۱۵﴾

او مونږ پرې ايښې دی دا فعلة مذكورة ای قصتها "آية" دليل پر قدرت زمونږ او پر صدق د انبياء ﷺ، او قتاده وايي چې ضمير منصوب راجع دی و سفينة ته ای لقد ابقى الله السفينة بارض الجزيرة، وقيل بالجودي دهراً طويلاً حتى نظرها اوائل هذه الامة المرحومة.

**بوه سه:** چې اصل د "مدکر" مدتکر ؤ على وزن مفتعل نو تا يې په دال واړول للتناسب في قرب المخرج ثم ادغم الدال في الدال للتجانس.

**بوه سه:** چې استفهام لپاره د اغرا او باعثه کولو دی پر ادکار والاتعاظ يعني پند گرفتن... سعدي شيرازي وايي:

پند گير از مصائب ديگران ..... تا نگيرند ديگران زتو پند

فَكَيْفَ كَانَ عَذَابِي وَنُذُرِ ﴿۱۶﴾

نو څرنګه ؤ عذاب زما چې قوم ته د نوح مي ورکړی ای الطوفان.

**بوه سه:** چې استفهام لپاره د تعظيم او تهويل دی، والفاء للسببية فان القصة

السابقة سبب للتهويل والتعجيب چې خلک په تعجب کې واچوي، ونذر جمع د نذير ده، وقال الفراء الانذار والنذر مصدران دي کالایقان والیقین والانفاق والنفقة وکیف خبر کان قدم لاقتضائها صدر الکلام بسبب الاستفهام.

وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْاٰنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِنْ مُّدَّكِرٍ ﴿۱۷﴾

لام موطئه د قسم محذوف دی، ای والله چې په تحقیق موږ اسانه کړی دی قرآن لپاره د اتعاظ (پند گرفتن) ولې په قرآن عزیز کې خدای عزوجل انواع د مواعظو او د عبرتو او د وعید د کفارو او احوال د امم ماضیهؤ لپاره د عبرت او یا معنی دا ده چې اسانه کړی دی قرآن لپاره د حفظ چې هم مختصر دی او عبادات یې خواږه دي.

**فائده**: دا جمله قسمیه خدای عزوجل په اخیر کې د څلورو قصو راوړه لپاره د تقریر د څلورو قصو تقریرًا لمضمون ماسبق من قوله تعالی (ولقد جائهم آه)

كَذَّبَتْ عَادٌ فَكَيْفَ كَانَ عَذَابِىْ وَنُذُرِ ﴿۱۸﴾

تکذیب وکړی قوم د عاد چې نبي هود علیه السلام وُ د هود بل جمیع الانبیاء علیهم السلام لانهم متفقون في اصول الدین.

**پوښته**: چې دا شروع د بلې قصې لپاره د عبرت د کفارو د مکې ده.

**پوښتنه**: دا قصه او وروسته قصې یې ولې یو پر بل عطف نه کړې؟

**ځواب**: لپاره د اشارې ودې ته چې هره قصه ددې قصو څخه مستقل ده په عبرت او پند اخستو کې او چونکه د قوم د نوح علیه السلام بل نوم نه درلودی نو ځکه یې په اضافت ذکر کړی یعني قوم نوح علیه السلام.

**سوال**: نوع د تکذیب د عاد یې نه کړه ذکر روما للاختصار ومسارعة الی ما فیه الاذدجار من العذاب.

اِنَّآ اَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ رِيْحًا صَرْصَرًا فِىْ يَوْمِ نَحْسٍ مُّسْتَمِرٍّ ﴿۱۹﴾

**پوه سه**: چې صرصر ویخ باد ته وایي په قول د ابن عباس رض او قتاده او الضحاک رح وقیل شدیدة الصوت، په پښتو وایي چې برهاری یې کاوه وقد مر في صورة فصلت في یوم نحس، په هغه ورځ کې شوم وه پر دوی په پښتو سوی پاله.

"مستمر" چې همیشه پر دوی تر وخت د اهلاک د دوی صغیر هم و کبیر هم فلم

يبق منهم احداً، البغوي" وايي چي د چهارشنبې په ورځ کي اخير الشهر، كما قال البيضاوي ددې ايت په تفسير كي.

تَنزِعُ ٱلنَّاسَ كَأَنَّهُمْ أَعْجَازُ نَخْلٍ مُّنقَعِرٍ ﴿٢٠﴾

كافران عاديان به يې را ايستله د خپلو كورو څخه، نو بيضاوي وايي چي دوى د باد له كبله په غارو ننوتل او يو و بل به يې سره ټينګ كړي وه باد به په غارو پسي ور ننوتى او د دوى لاسونه به يې سره ايله كړه او د اسمان له خوا به يې پر سرو ور رايله كړه مغزى به يې غوټ مات سو.

"منقعر" لكه بېخونه د خورما د درختي چي د خپل ځايه و خېژي پر مځكه را ايله سي، وجه د تشبيه يې داده چي د خورما درختي غالبًا طويلي وي او عاديان هم په طول القامة كي ضرب المثل وه.

فَكَيْفَ كَانَ عَذَابِي وَنُذُرِ ﴿٢١﴾

قد مر شرح مثل هذه العبارة

وَلَقَدْ يَسَّرْنَا ٱلْقُرْءَانَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِن مُّدَّكِرٍ ﴿٢٢﴾

قد مر تفسيره ايضًا.

**پوښتنه:** پر هود ﷺ خو بعض عاديانو ايمان راوړى ؤ نو هغه له باد څخه د نجات څه حكمت عملي كړى ؤ؟

**ځواب:** هود ﷺ ته د مخه تر باد را الوتلو خداىٔ داسي وحي را استولي وې چي مسلمانان سره جمع كړه يو خط پر راوګرځوه، ده داسي وكړه نو باد په هغه نه ور ننوتى.... ابيات نصيحت آميز مناسبة لقوله تعالى بعد عدة من هذه القصص يعني فهل من مدكر.

چو بر گشته بختی درافتد به بند .... از و نیک بختان بگیرند پند
تو پیش از عقوبت در عفو کوب .... که سودی ندارد فغان زیر چوب
فراشو چو بینی در صلح باز .... که ناگاه در توبه گردد فراز
مرو زیر بار گنه ای پسر .... که حمال عاجز بود در سفر
پی نیک مردان بباید شتافت .... که هر کین سعادت طلب گرد یافت

ولکن تو دنبال دیو خسی .... ندانم که درصالحات کی رسی

**فائده:** عادیان چي په باد سره هلاک کړه خدای عزوجل که څه هم باد یو ضعیف شی دی بناء علی اغترارهم بقوة اجسامهم.

كَذَّبَتْ ثَمُودُ بِالنُّذُرِ ﴿٢٣﴾

**پوه سه:** چي تانیث د فعل مسند و ثمود په اعتبار د تأویل د دوی دی په قبیله سره بالانزارات والمواعظ والرسول ورسولهم کان صالح ﷺ، یا مراد دادی چي د ټولو رسولانو یې تکذیب وکړی لان تکذیب الواحد منهم تکذیب الکل لاشتراکهم في اصول الشرائع.

فَقَالُوٓا أَبَشَرًا مِّنَّا وَاحِدًا نَّتَّبِعُهُۥٓ إِنَّآ إِذًا لَّفِى ضَلَٰلٍ وَسُعُرٍ ﴿٢٤﴾

"منا" ای کائنا من جنسنا.

**پوه سه:** چي جار او مجرور په ځای کي د صفت دی د بشرًا او بشرًا منصوب دی علی شریطة التفسیر یعني وروسته فعل یې تفسیر دی یعني تتبعه "واحدًا" ای منفردًا معنی دا چي اتباع هم نه لري یا معنی داده چي موږ غوندي یو سړی دی یعني له اشرافو څخه هم نه دی "نتبعه" موږ یې متابعت کوو، والاستفهام للانکار یعني دې سړي لکه صالح ﷺ موږ متابعت نه کوو، د دوی مراد دا وُ چي دی د ملکو د جنس څخه وای یا د شاهانو څخه د بشر وای موږ بی اتباع کړې وای.

"انا اذًا" په تحقیق موږ په دغه وخت کي چي د صالح ﷺ غوندي چي تاسي صفات اوربدل متابعت وکړو، په لویه گمراهي او خطاء کي به یو (فالتنوین للتعظیم)

**پوه سه:** چي وهب بن المنبه" وایي چي د "سعر" معنی ده ای بُعدًا من الحق، وقال الفراء" في جنون، وقال قتادة معناه في عناد، او بعض مفسرین وایي چي سعر جمع د سعیر ده قال ابن عباس" معناه في عذاب، وقال الحسن" في شدة عذاب.

**فائده:** صالح ﷺ به قوم ته ویل چي که تاسي زما متابعت ونه کړئ تاسي به په ضلال د حق یاست او په سعیر کي یعني په اور کي به یاست، دوی به عکس ورته وکړی چي که موږ ستا متابعت وکړو نو موږ به ضلال عن الحق او په اور کي به یو.

ءَأُلْقِيَ الذِّكْرُ عَلَيْهِ مِنْ بَيْنِنَا بَلْ هُوَ كَذَّابٌ أَشِرٌ ﴿٢٥﴾

استفهام لپاره د انکار دی آیا ده ته راغلی ذکر ای الوحي والکتاب زمونږ په منځ کي چي اشراف راپکښې دي لکه کفارو د مکې چي به ویل لو لا انزل هذا القرآن علی رجل من القریتین عظیم، یعني په مکه کي ولید بن المغیرة چي غټ سرمایه داره سړی ؤ او ډېر اتباع یې درلوده او لس زامن یې هم وه او په طائف کي عروة بن مسعود الثقفي چي هغه هم له اشرافو څخه په طائف کي ؤ "بل هو کذاب اشر" دی ډېر دروغ وایي پر خدای باندي "اشر" یعني کبرجن پر موږ باندي سرداري غواړي په دعوی سره د نبوت، اضراب دی له نفي څخه د فضیلة و دعوی ته د رزیلة فیه.

سَيَعْلَمُونَ غَدًا مَّنِ الْكَذَّابُ الْأَشِرُ ﴿٢٦﴾

دوی به پوه سي سبا یعني هغه وخت چي پر دوی عذاب نازل سي، او الکلبي وایي یوم القیامة من الکذاب الاشر، آیا دوی دي که صالح ﷺ دی، او بعض قراء یې ستعلمون په تا د خطاب وایي والخطاب لهم مبني عن الالتفات من الغیبة والجملة استیناف ده في جواب ما شانهم.

**فائده:** دوی له صالح ﷺ څخه معجزه وغوښتل چي صدق د ده دلالت وکړی په دعوی د نبوت او معجزه یې صرف تعنت او ضد ؤ ولي د دوی په ګمان دا معجزه ناممکنه ورتله (چي دوی ډېري دي یعني غر في الجملة کوچنی ؤ) چي له دې څخه به اوښه راوزي حمراء وه په رنګ سره او عشرا یعني د لسو میاشتو بلاربه به وي چي اوښه پر لسمه میاشت لنګېږي من صخرة عتق ها او جونګی به یې په قد اقامت لکه مور وي، قال الله تعالی انا مرسلوا الناقة فتنة لهم لپاره د امتحان د دوی چي دوی به په معجزه سره ایمان راوړي که نه.

إِنَّا مُرْسِلُوا النَّاقَةِ فِتْنَةً لَّهُمْ فَارْتَقِبْهُمْ وَاصْطَبِرْ ﴿٢٧﴾

موږ را استوو (یعني راباسو) اوښه "فتنة لهم" یعني امتحان د دوی لپاره، نو ته انتظار وکړه "واصطبر" ته صبر کوه یا صالح پر ازار د دوی.

وَنَبِّئۡهُمۡ أَنَّ ٱلۡمَآءَ قِسۡمَةُۢ بَيۡنَهُمۡۖ كُلُّ شِرۡبٖ مُّحۡتَضَرٞ

چي دوی به حیوانات او مواشي پر اوبولي د دغه ځاه قسمة بین الناقة وبین مواشیهم چي یوه ورځ به د اوښي وار وي بله ورځ به د دوی د مواشیو نوبت وي "کل شرب" محتظر یعني چي هریو به حاضرېږي پر خپل نوبت.

**درویش وایي:** چي دا دوی ته ډېر گران تمامېدل چي یوه ورځ بې تږول مواشي پر کور وړي او تږي ورته ولاړ وای.

فَنَادَوۡاْ صَاحِبَهُمۡ فَتَعَاطَىٰ فَعَقَرَ

"فنادوا" یعني وخپل مشر ته چي قذار بن سالف ؤ مضمون د نداءیې داؤ چي د دې اوښي څخه موږ تنگ یو هلاک به یې کړو اوبه به یو ازي موږ ته پاته سي "فتعاطی" هغه صاحب د دوی راواخستل توره (یعني نور کسان هم ورسره وه)

"فعقر" د اوښي پښي یې ور پرې کړې (او ذبح یې کړه او غوښې یې سره ووېشلې) جونگي چي مور ولیدل چي مړه یې کړه نو جونگی د هغه غره وخواته چي موږ یې څني راوتلې وه ورغلی او درې ناري یې وکړي په هغه غره ننوتی، صالح علیه السلام چي په دې خبري خبر سو قوم ته یې وویل چي دد دې درو نعرو مقصد دادی چي درې ورځي وروسته پر تاسي عذاب نازلېږي اوله ورځ چي تاسي سهار راکښېنئ مخان به مو تک ژړ وي لکه زعفران، دوهمه ورځ چي تاسي راکښېنئ مخان به مو تک سره لکه وینې داسي وي او دریمه ورځ چي راکښېنئ مخان به مو تک تور وي نو عذاب د خدای عزوجل به دربانديې نازل سي، او هغسي وسوه.

فَكَيۡفَ كَانَ عَذَابِي وَنُذُرِ

**درویش وایي:** چي قدمر معنی هذه الآیة مرارًا اوس خدای عزوجل نوع د دوی د عذاب بیانوي، فقال.

إِنَّآ أَرۡسَلۡنَا عَلَيۡهِمۡ صَيۡحَةٗ وَٰحِدَةٗ فَكَانُواْ كَهَشِيمِ ٱلۡمُحۡتَظِرِ

موږ نازل کړه پر دوی یوه ناره، یعني ناره وکړه جبرئیل علیه السلام لویه ناره یو وار "فکانوا" ای فصاروا دوی وگرځېدل.

**یوه سه:** چي ابن عباس رضي الله عنهما وایي چي محتضر هغه ځای ته وایي چي یو سړی

د خپلو پسو د ساتنې لپاره د لرګيو څخه دېوالونه او د ځوزانو څخه يو ګاش جوړ کړي او د ننه په ګاش کې پسو ته وچ وابښه د خوړک لپاره هم واچوي، نو پسونه هغه څه چې د ګاشه څخه راولوېږي يا هغه وچ وابښه دوى پکښې ګرځي او ميده ميده هغه ته يې خوري هغه ته هشيم وايي، والحاصل چې په نعره د جبرئيل ثموديان داسي ريزه ريزه سوه لکه د ګاش وابښه.

وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْاٰنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِنْ مُّدَّكِرٍ

**درويش وايي:** چې د مخه تېر سوى دى بيان او تفسير د دې عبارت قرآني په تفصيل سره، او س بيان د بل قوم د کافرانو کوي خداى عزوجل اجمالاً.

كَذَّبَتْ قَوْمُ لُوْطٍۭ بِالنُّذُرِ

قوم لوط سره د کفره يو بل شوم کار هم کاوه وهو اللواطة مع الرجال.

**درويش وايي:** چې دا مذکوره ټولي قصې په نورو ځايو کې د قرآن عزيز تېرې سوې دي دلته يې راوړل صرف د اجمالي انذار لپاره دي.

**پوه سه:** چې تفسير د دې عبارت قرآني هم د مخه تېر سوى دى فتذکر.

اِنَّاۤ اَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ حَاصِبًا اِلَّاۤ اٰلَ لُوْطٍؕ نَجَّيْنٰهُمْ بِسَحَرٍ

موږ را واستولې پر دوى لپاره د هلاک د دوى، مظهري وايي چې حاصب هغه باد ته وايي چې شيګې پاشي، او روح المعاني وايي اى ملګا چې دوى يې وېشتل په ډبرو، او ابن عباس رضي الله عنه وايي هو ما حصبوا به من السماء من الحجارة في الريح، او بعض مفسران وايي چې حصباء هغه ډبري ته وايي چې تر ملئ الکف کم وي.

**پوه سه:** چې "الا آل لوط" استثناء ده من الضمير المجرور في عليهم، يعني اهل بيت د لوط عليه السلام چې نجات يې پيدا کړى له عذاب څخه، بعض وايي چې ديارلس (۱۳) نفره وه، او په کشف الاسرار کې وايي چې د لوط عليه السلام لونې وې او د هغو مړونه وه چې ايمان يې راوړى وُ "ونجيناهم بسحر" موږ نجات ورکړى دوى ته "بسحر" اى في سحر من الاسحار، بعض روات واي چې په ثلث اخير کې د شپې، او بعض وايي چې په سدس اخير کې د شپې.



Scanned by CamScanner

نِّعۡمَةً مِّنۡ عِنۡدِنَا ؕ كَذٰلِكَ نَجۡزِيۡ مَنۡ شَكَرَ ۝

(''نعمة'' مفعول له دی د نجینا ''من عندنا'' زموږ له جانبه څخه، صفت دی د نعمة) او داغه رنګه موږ نجات ورکوو (یعني په دنیا او اخرت کې) وهغه چا ته چې زموږ د نعمت شکر وو ایي بالایمان بالله وحده والطاعة.

وَلَقَدۡ اَنۡذَرَهُمۡ بَطۡشَتَنَا فَتَمَارَوۡا بِالنُّذُرِ ۝

لام موطئه د قسم محذوف دی ای والله په تحقیق انذر لوط قومه ''بطشتنا'' زموږ د نیولو څخه په عذاب سره ان لم یؤمنوا ''فتماروا بالنذر'' ای کفروا بلوط وشکوا في الانذار.

**درویش وایي:** چې د قوم لوط د اهلاک لپاره خدای پاک ملکي را واستولې چې جبرئیل علیه السلام پکښې موجود وُ پر صورت د ښائسته هلکانو نو دوی د مېلمنو په رنګه د لوط علیه السلام کور ته ورغله او لوط علیه السلام هم نه پېژندل چې دا ملکي دي بلکې خیال یې د مېلمنو پر کاوه، نو د قوم څخه د لوط یو چا ولیدل چې ښائسته هلکان د لوط کره مېلمانه راغلي دي، نو دوی په قصد د لواطت حسب العادة د لوط علیه السلام کور ته ورغله، لوط علیه السلام دروازه ورته بنده کړه.

وَلَقَدۡ رَاوَدُوۡهُ عَنۡ ضَيۡفِهٖ فَطَمَسۡنَاۤ اَعۡيُنَهُمۡ فَذُوۡقُوۡا عَذَابِيۡ وَنُذُرِ ۝

او دوی طلب وکړی، چې ته اعراض له ضیف څخه وکړه یعني زموږ په لاس یې راکړه چې موږ خپل کار د لواطت ورسره وکړو.

**سوال:** ملکي (چې په صورت د ښائستو هلکانو وې) خو ډېرې وې، نو لفظ د ضیف چې مفرد دی څرنګه استعمال سو؟

**ځواب:** لفظ د ضیف اسم جنس دی پر یوه او پر ډېرو یې اطلاق روا دی.

**درویش وایي:** چې په ملکو کې جبرئیل هم وُ ټول په صورت د ښائستو هلکانو وې دا ملکي خدای را استولي وې لپاره د اهلاک د قوم لوط لیرسلوا علیهم حجارة من طین (ډېرې د ختو یعني پخې خښتې چې په اور پخ سوي وې) لوط علیه السلام دروازه دوی ته بنده کړه، نو دوی به ناري کړې چې دروازه خلاصه کړه خو لوط نه ورخلاصول اخیر قوم قصد ددې وکړی چې پر دېواله ور واوړي، وروسته

ملکو نوح علیه السلام ته وویل چې دروازه ور خلاصه کړه، او خپل حال یې ورته وواېه: فانا رسل ربک لن یصلوا الیک بسوء، تاته هیڅ بد نه سي رسولای، نو قوم لوط په سرای ورننوتل جبرئیل علیه السلام په خپل وزر ووهله باذن الله نو ټوله یې په سترګو ړانده کړه یتردون متحیرین دروازه یې نه لیدل نو لوط علیه السلام دوی له خپل کوره و ایستل او دوی ناري وهلې و نورو خلګو ته چې د لوط کره جادوګران راغلي دي، چې ور نه سئ تاسي به هم ړانده کړي، قال الله عزوجل:

**درویش وایي:** چې اکثره مفسرین چې تفسیرونه یې زما سره موجود دي د طمسنا علی اعینهم ترجمه داسي کوي چې سترګي یې لکه نور مخ داسي سوې چې شق د سترګو یې هم نه معلومېدی یوه مستوي سطح مخ یې وُ، او ضحاک وایي چې طمس الله علی اعینهم، یعني سترګې یې فقط ړندې سوې چې هغه رسل یې نه لیدل چې په رنګ د غلمانو وه او دوی به ویل قد رئینا هم حین دخلنا البیت ای بیت لوط فاین ذهبوا فرجعوا قوم لوط خائبین، خدای عزوجل پر ژبه د رسولانو وایي "فذوقوا عذابي ونذر" نو تاسي اوس ورئ هغه عذاب چې ما تاسي په بېرولي واست یعني پر ژبه د لوط.

وَلَقَدْ صَبَّحَهُمْ بُكْرَةً عَذَابٌ مُّسْتَقِرٌّ ﴿۳۸﴾

او په تحقیق دوی سهار کړی یعني جائهم العذاب وقت الصبح "بکرة" په اول کي د ورځي "عذاب" ای الرمي بالحجارة من طین چې دا عذاب دوام داره وُ تر وخته د هلاک د دوی ټولو حتی چې په قبر کي به هم عذاب القبر د دوی سره ملګری وي تر هغه وخته چې نار مؤبده ته داخلېږي.

فَذُوْقُوْا عَذَابِيْ وَنُذُرِ ﴿۳۹﴾

ددې ایت ترجمه او تفسیر د مخه تېر سوی دی.

وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْاٰنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِنْ مُّدَّكِرٍ ﴿۴۰﴾

وقد مر مرارًا هذه العبارة مع التفصیل.

**پوښتنه:** ددې ایة د تکرار د هري قصې سره حکمت یې څه دی؟

**ځواب:** فائده او حکمت یې دادی چې دوی ته یعني کفارو ته د مکې تنبیه ورکړه سي چې دوی دي له شرک څخه بېزاره سي او په ایمان دي ځانونه مشرف کړي.

وَلَقَدْ جَآءَ اٰلَ فِرْعَوْنَ النُّذُرُ ﴿٤١﴾

نذر جمع د نذير ده په معنی د منذر بصيغة اسم الفاعل چي مراد ځني موسٰی او هارون عليهما السلام او من معهما دي.

**فائده:** په من معهما سره جمعيت د نذر صحيح سو.

**سوال:** نذير خو پر وزن د فعيل دی يعني د مجرد له باب څخه نو په معنی د منذر چي صيغه د اسم فاعل چي باب د افعال دی يعني منذر څرنګه کېدای سي؟

**ځواب:** بعض نحات وايي چي دا روا دی لکه په دې قول کي د شاعر:

امن ريحانة الداعي السميع (ای المسمع) يورقوني واصحابي الهجوع

**درويش وايي:** ولهذا الشعر قصة طويلة مذكورة في علم الادب و ذكرنا بالتفصيل قبلا، او بعض مفسرين وايي چي مراد له نذر څخه هغه معجزات د موسٰی او هارون عليهما السلام دي چي قوم فرعون يې په ېرا وه لکه عصی او يد بيضاء.

**پوښتنه:** آل فرعون يې ذکر کړی په خپله فرعون يې نه کړی ذکر حکمت يې څه دی؟

**ځواب:** حکمت يې دا دی چي هر سړی په دې پوهېږي چي سبب د اضلال د قوم خو فرعون ؤ فهو اولی و احری بالاحکام المذکورة في هذه الآيات.

كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا كُلِّهَا فَاَخَذْنٰهُمْ اَخْذَ عَزِيْزٍ مُّقْتَدِرٍ ﴿٤٢﴾

دوی تکذيب وکړی زموږ د اياتو "كلها" تاکيد د اياتو ؤ يعني بها الآيات التسع چي په مرور د زمانې فرعون او دده قوم ته ښکاره سوې.

**فائده:** جمله كذبوا بآياتنا جمله مستأنفه ده په جواب کي د سوال د سائل چي دا سوال د حکايت څخه د مجيء النذر پيدا سو کانه قيل فماذا فعل آل فرعون فاجيب بانهم كذبوا بآياتنا كلها "فاخذناهم" نو دوی موږ ونيول په عذاب سره يعني اغرقناهم في اليم ثم ادخلنا هم في النار "اخذ عزيز" مفعول مطلق دی نيول د غالب ذات "مقتدر" چي قادر دی غاية القدرة پر انتقام له هر کافره څخه لا يعجزه شيئ.

**درويش وايي:** چي دا ټولي قصې د کفارو معدودې چي خدای په اجمال سره ذکر کړې او د هغو اخير په دنيا کي هم بيان کړی لپاره د عبرت د کفارو د قريش د مکې مکرمې، نو اصل مقصود خدای پاک بيانوي او وايي:

أَكُفَّارُكُمْ خَيْرٌ مِّنْ أُولَٰئِكُمْ أَمْ لَكُم بَرَاءَةٌ فِي الزُّبُرِ ۝

مخاطب د مظهري د بيان سره موافق مؤمنان د مكي دي.

**سوال:** كفار مكه يې ولي مسلمانانو ته مضاف كړه؟

**خواب:** په سبب د جوار و بس "من اولئكم" يعني من قوم ثمود و قوم نوح و قوم عاد و قوم عاد و قوم لوط و آل فرعون چي په دنيا كي بيان كړه سوي عذابونه د استيصال خداى عزوجل وركړه.

**پوه سه:** چي مراد له خيريت څخه فضيلت دى په اعتبار د قوة الابدان او دا كثرة الاموال والاولاد او د طول الاعمار الى غير ذالك من النعم الدنيوية والاستفهام للانكار يعني تاسي يا كفار مكه تر هغو خير نه ياست، نو ولي تاسي بېغمه ياست د نزول څخه د مثل د نزول د عذاب د هؤلاء المذكورين چي ايمان نه راوړي .... تر حيواناتو تاسي بد تر ياست:

نرود مرغ سوئى دانه فراز ..... چو بيند مرغ ديگر اندر بند

**پوه سه:** چي ام منقطعه دى په معنى د بل آه للانتقال من دليل الى دليل اخر او همزه لپاره د انكار دى، ترجمه: آيا تاسي لره يا كفار مكة امان سته د عذاب الهي په كتب سماويه ؤ كي يعني په هغو كتب سماويه كي داسي نوشته دي چي تاسي اهل مكة كه شرك او كه نور معاصي وكړئ خداى عزوجل تاسي ته عذاب نه دركوي يعني دا سند خو هم نه لرئ، نو ولي ايمان نه راوړئ.

أَمْ يَقُولُونَ نَحْنُ جَمِيعٌ مُّنتَصِرٌ ۝

اى هؤلاء كفار مكة، ام منقطعه دى په معنى د بل آه، بل لپاره د انتقال دى او همزه لپاره د انكار على ما يقولون "نحن جميع" اى جميع اى متفق على عداوة محمد ﷺ "منتصر" اى ممتنع من الاعداء يعني دښمن مونږ ته قصد د جنگ نسي كولاى. او يا معنى دا ده چي مونږ له دښمن څخه كسات اخستلاى سو.

**سوال:** نحن خو متكلم مع الغير ده نو بايد منتصرين ويل سوي واى؟

**خواب:** توحيد د منتصر بناء دى پر لفظ د جميع چي هغه مفرد دى و لموافقة رؤس الآيات.

سَيُهْزَمُ الْجَمْعُ وَيُوَلُّوْنَ الدُّبُرَ۝

ژر دی چي شکست به و خوري دا جماعت د کافرانو او شابه وګرځوي.

**سوال:** په کار خو دا وه چي ادبار په صيغه د جمع يې ويلی وای؟

**ځواب:** افراد پـه تأويـل د جنس دی ای جنس الـدبر مـع موافقـة رؤس الآيـات ومشاكلة قرائن او يا جواب دا دی يولون كل واحد دبره كما في قول القائل كسانا الامير حلة اى لكل واحد حلة (يو جوت كالي يا چپنه) وهذه الآية من دلائل النبوة اى معجزة من المعجزات النبي ﷺ واخبار بالغيب قبل وقته لما روى عن ابن عباس رضي الله عنه كان بين نزول هذه الآية ويوم بدر سبع سنين، فالآية على هذا مكية قال ابو جهل يعني يوم بدر چي دی پر يوه سور رنګه آس سپور وُ چي د ورځي به يې يو فرق او ريشي ور کولي، او ده قسم وخوړی په لات او عزی سره چي نن ورځ به زه محمد (ﷺ) او دده اصحاب وژنم، اخيره يې دا سوه چي ابنی د عفراء رضي الله عنه دی مردار کړی او ابن مسعود رضي الله عنه يې سر و عليه الصلوة والسلام ته ور وغورځاوه، امير المؤمنين عمر رضي الله عنه وايي چي زه نه پوهېدم چي الجمع يؤتون الدبر څوک دي حتی چي ورځ د بدر راغله او عليه الصلوة والسلام په خپله او په روايت د بخاري عن ابن عباس رضي الله عنه چي عليه الصلوة والسلام په خپله خېمه کي داسي خواست و خدای تعالیٰ ته وکړی انشدك عهدك و وعدك (زه طلب جدي کوم ستا څخه يا الله ستا د عهد او وعدې چي زما سره دي کړې وه چي زه تا ته نصرت درکوم پر کافرانو (ته ورځ يې راکړه پر کفارو د مکې) اللهم ان تشاء ان لا تعبد بعد اليوم (يعني که ستا دا اراده وي چي ستا عبادت دي له دې ورځي وروسته نه کېږي) ولي چي دا مسلمانان زما سره و وژل سي نو ستا عبادت به څوک کوي؟ فجاء ابو بكر رضي الله عنه واخذ بيده ﷺ حسبك يا رسول الله الححت على ربك (يعني ډېر طلب د نصرت دي د رب ﷻ وکړی) فخرج عليه الصلوة والسلام زغره يې اغوستې وه يقول سيهزم الجمع ويولون الدبر، مراد له دې جماعت څخه قريش د مکې وه چي تعداد يې تخمينًا زر (۱۰۰۰) کسه ته بالغ وُ او مسلمانان درې سوه ديارلس (۳۱۳) کسان وه حتی چي جنګ شروع سو اوويا کسه ووژل سوه او اوويا (۷۰) کسه يې ژوندي ونيول سوه او نور په تېښته ولاړه مکې ته، او د مسلمانانو شهيدان څوارلس (۱۴) کسه وه.

**درويش وايي:** چي د بدر قصه ډېره اوږده ده او د مخه هم مونږ ذكر كړې ده وفيما ذكرناه كفاية لفهم هذه الآية سيهزم الجمع آه.

بَلِ السَّاعَةُ مَوۡعِدُهُمۡ وَالسَّاعَةُ اَدۡهٰى وَاَمَرُّ

(بل لپاره د انتقال دی) ؤ اهم تر قتل د بدر "موعدهم" بلكې قيامت زمانه د وعدې د عذاب د دوی ټولو كه په بدر كي شامل وه او كه نه وه دا د بدر قتل پېش خيمه ده د عذاب د يوم القيامة وليس هذا بعذاب بالنسبة الى عذاب يوم القيامة او دا سبب دی چي بعض كافرانو د دنيا عذاب نه وليدی مع انهم مستحقين للعذاب "والساعة ادهى" او قيامت اشد او سخت دی از روی اهية او اهبة او داهبة هغه امر فظيع خوفناك ته واي چي يې په دفع نه پوهېږي "وامر" يعني تريخ دی تر عذاب د دنيا، ولي چي د دنيا عذاب لكه فقر او مسكنت ناجوړي چي اخيري عذاب يې قتل دی او د اخرت عذاب اول خو اوور دی او هغه هم دائم مع العقارب والحيات دی.

اِنَّ الۡمُجۡرِمِيۡنَ فِىۡ ضَلٰلٍ وَّسُعُرٍ

په تحقيق مجرمان يعني مطلق كافران كه اهل مكه وي او كه نور نو دا ايت تعميم بعد التخصيص دی ولي چي د مخه ايتونه په اهل مكه پوري خاص وه او په دې ايت كي بيان د حال د مطلق كافرانو دی په ضلال كي له حق څخه چي اسلام دی يعني په دنيا كي او په اورو كي (ز سعر جمع د سعير ده يعني په ورځ د قيامت او بعض الناس وايي چي سعير مفرد دی)

يَوۡمَ يُسۡحَبُوۡنَ فِى النَّارِ عَلٰى وُجُوۡهِهِمۡ ؕ ذُوۡقُوۡا مَسَّ سَقَرَ

په هغه ورځ چي كشول كېږي (يعني ملائكة العذاب يې كشوي) په اوور كي پر مخانو يعني پر مخي او دوی ته ول كېږي د ملكو له خوا څخه په امر د خدای "ذوقوا مس سقر" ليس من ذوق الفم بل بمعنى جربوا يعني وڅكئ په شدت سره گرمي د دوږخ (نو مس په معنى متعارف سره نه دی يعني مجرد اللمس) فتدبر هداك الله تعالى.

إِنَّا كُلَّ شَيْءٍ خَلَقْنَاهُ بِقَدَرٍ ﴿٤٩﴾

**پوه سه:** چي لفظ د كل منصوب دى په فعل محذوف سره چي وروسته خلقنا يې تفسير دى يعني بيان العامل چي دې ته په نحو كي منصوب على شريطة التفسير وايي.

**پوښتنه:** ددې چي يې عامل حذف كړى بيا يې تفسير وكړى او د اول واره يې داسي نه وويل سول انا خلقنا كل شيئ څه فائده يې ده؟

**ځواب:** فائده په دې حذف كي استقرار في الذهن دى، له دې كبله چي متعلم چي د كل نصب وويني نو عامل ته حيران او طالب وي وروسته چي تفسير وكړل سي په ذهن كي ښه قرار ونسي .... بيت:

چه خوش باشد كه بعد از انتظارى .... با اميد رسد اميد اورى

**درويش وايي:** چي د بقدر معنى داده چي هر شى چي موږ پيدا كړى دى بتقدير سابق تر خلق او يا يې معنى داده چي مقدر او محفوظ په لوح محفوظ كي قد علمنا حاله و زمانه قبل الخلق چنانچه د عبد الله بن عمرو بن العاص ﷺ څخه روايت دى قال سمعت رسول الله ﷺ قال كتب الله مقادير الخلائق قبل ان يخلق السموات والارض بخمسين الف سنة يعني پنځه زره (٥٠٠٠) كاله، وعن علي بن ابى طالب ﷺ قال رسول الله ﷺ لا يؤمن عبد حتى يؤمن باربع (١) يشهد ان لا اله الا الله (٢) واني رسول الله بعثني بالحق (٣) وان يؤمن بالبعث (۴) وان يؤمن بالقدر يعني خير و شر دواړه د خداى په تقدير دي (يعني على ما يقضيه الحكمة) رواه الترمذي وابن ماجه وعن ابن عمر نحوه.

**درويش وايي:** چي قدريه يوه ډله ده تر ټولو درواوويا (٧٣) ډلو خيشه ډله ده چي هغه وايي خالق د افعالو د بندګانو په خپل بندګان دي د خداى په اراده پوري اړه نه لري، وقد ورد في الحديث الصحيح الحديث القدرية مجوس هذه الامة (يعني مجوسيان وايي چي عالم لره دده واجب الوجود خدايان دي يو خالق د فائده مندو شيان دى لكه مېوې، انګور، انار وغيرها من المثمرات يا غنم، ورجي، جوار وغيرها من الاشياء الارتزاقية چي دا خداى دوى يزدان بولي، او بل خداى ضرر مند شيان پيدا كوي لكه ځوزان، كرورې، ماران، لړمان، لېوان،

پرانګان وغیرها چي دې خدای ته دوی اهرمن وايي او په بل نامه شیطان ورته وايي، نو قدریه که څه هم واجب الوجود یو بولي، لکن خالقان غیر متناهي بولي یعني بنده خالق بولي د خپلو افعالو) قال ﷺ في اخیر الحدیث المذکور ان مرضوا فلا تعودوه (پوښتنې ته يې مه ورځئ) و ان ماتوا لا تشهدوهم (یعني جنازې ته يې مه ورځې) رواه احمد و ابو داؤد.

**درویش وايي:** چي په دې باب کي چي تقدیر د خیر او شر د خدای عزوجل له خوا دی بېځي ډېر احادیث ستته و انعقد علیه اجماع الصحابة ﷺ ومن بعدهم من اهل السنة والجماعة کذا قال المظهري .... بیت:

قضی الله امرًا و جف القلم .... سر بر خط ازلي دار و خموش

**درویش وايي:** چي په نامه د اسلام یو بله ډله هم سته که څه هم په ایت او حدیث کي اشاره نه ده ورته سوې لکن په مناسبت د قدریه چي هغه ډله هم د ایاتو او احادیثو پر خلاف ده او د اجماع څخه د امت مرحومه هم مخالف دي، زه به يې بیان کړم چي دې ډلې ته مرجیه وايي مشتق من الرجاء (یعني امید د بخښني) دا ډله وايي چي لکه چي د کفره سره هیڅ حسنات په ښه نه دي یعني ثواب یوم القیامة نه لري، دغه رنګه د ایمان او اسلام سره ګناه که صغیره وي او که کبیره تاوان او ضرر نه لري یعني په ورځ د قیامت عذاب ورلره نسته ولو مات بلا توبة.

وَمَآ أَمۡرُنَآ إِلَّا وَٰحِدَةٞ كَلَمۡحِۭ بِٱلۡبَصَرِ ۝

یعني لشيئ اردنا ایجاده وتکوینه "الا واحدة" ای کلمة واحدة وهي کلمة کن او یا معنی داده الا فعلة واحدة وهي الایجاد بلا معالجة الاسباب و الآلات "کلمح بالبصر" لکه رپول د سترګي یعني في الیسر و السرعة.

وَلَقَدۡ أَهۡلَكۡنَآ أَشۡيَاعَكُمۡ فَهَلۡ مِن مُّدَّكِرٖ ۝

لام لپاره د قسم دی قد لپاره د تحقیق دی، او په تحقیق موږ هلاک کړي دي "اشیاع" جمع د شیع ده معناه المثل یعني امثال ستاسي په کفر کي یا اهل مکه "فهل من مدکر" الاستفهام لپاره د تحریض او باعثه کولو دی د اهل مکه پر عبرت اخستلو په ایمان راوړلو.

وَكُلُّ شَيْءٍ فَعَلُوهُ فِي الزُّبُرِ ﴿٥٢﴾

او هر شی چي دوی یې فعل وکړی (فعلوه صفت د شيء دی) "في الزبر" ای مکتوب په صحائف د اعمالو د دوی چي د کرام کاتبین له خوا نوشته کېږي، او یا په لوح محفوظ کي تا چي په ورځ د قیامت مطابق د هغه سره جزا، ورکړه سي ان خیرًا فخیر وان شرًا فشر.

وَكُلُّ صَغِيرٍ وَكَبِيرٍ مُسْتَطَرٌ ﴿٥٣﴾

او هره صغیره او کبیره له اعمالو ځخه د مکلفینو.

**پوه سه:** چي دا جمله تاکید ده د ماقبل جملې.

**درویش وایي:** چي عادت د رب الجلیل دی په قرآن مجید کي چي تر وعید د کافرانو وروسته وعد د مؤمنانو بیانوي نو دلته هم وایي:

إِنَّ الْمُتَّقِينَ فِي جَنَّاتٍ وَنَهَرٍ ﴿٥٤﴾

په تحقیق هغه کسان (چي د کفر او الحاد په صفاتو جمیله ؤ کي او په صفاتو جلیله ؤ کي ځان ساتلی وي) په باغو کي او په ویالو کي به وي چي جاري په جنت کي یعني الماء والخمر والعسل واللبن کي به وي.

**پوښتنه:** لفظ د نهر یې مفرد راوړی او سره د دې چي ویالې خو څلور دي کمامر؟

**ځواب:** اکتفاء بان النهر خو اسم جنس دی قلیل او کثیر دواړو ته شامل دی مع موافقة رؤس الآیات ای اواخرها. البغوي وایي قرء الاعرج ونهر بضمتین چي جمع د نهار ده والمراد لا لیل لاهل الجنة.

فِي مَقْعَدِ صِدْقٍ عِنْدَ مَلِيكٍ مُقْتَدِرٍ ﴿٥٥﴾

یعني په ځای کي د رشتیا ولا لغو فیها ولا تأثیم لکه چي په بعض مقاعدو کي د دنیا به وه چي هغه مقعد صدق عبارت له جنت ځخه دی، او الجوهري په خپل کتاب چي په بیان کي د لغاتو عربیه ؤ دی وایي چي تعبیر کول کېږي د فعل فاضل ظاهرًا وباطنًا په صدق سره ومنه قوله تعالی في مقعد صدق الآیة وقوله تعالی لهم قدم صدق عند ربهم وقوله تعالی ادخلني مدخل صدق و اخرجني مخرج

صدق، او جعفر صادق رحمه الله وايي چي مدح د مکان یې په صدق سره وکړه نو په دغه مکان کي نسي او سېدلای مګر اهل الصدق يعني في الدنيا آه.

**درويش وايي:** چي صدق عبارت دی له اخلاص څخه د عمل لله عزوجل ظاهرًا وباطنًا لا کالمنافقين واهل الرياء والسمعة.

"عند مليک مقتدر" ای عند الله چي قادر تام دی او هم مالک دی د ټولو مخلوقاتو او هم ملک دی لايعجزه شيئ.

**پوه سه:** چي مراد له دې څخه خو مراد عندية مکاني نه دی لانه تعالی ليس بجسم ولا ذی مکان بلکي عندية دی چي لا کيفية لها ولا يفتهموها العقول والافهام.

**درويش وايي:** قد تم تفسير سورة القمر بالخير و العافية په شپه د چهار شنبې بعد صلوة المغرب في ۱۶ محرم الحرام (۱۴۳۳) هـ ق، وروسته ان شاء الله عزوجل تفسير د سورة الرحمن شروع کېږي اللهم وفقني لتفسيرها ايضًا بالخير والعافية والصحة والسلامة، الحمد لله رب العالمين والصلوة والسلام على سيد الانبياء والمرسلين ثم على اصحابه الاکرمين و ازواجه امهات المؤمنين.

تفسير ايوبي حنفي د نصيراحمد احمدي لخوا سکين او pdf سو. د دعا په هيله احمدي! واتساپ ۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹

ومن آياته أن خلق لكم من أنفسكم أزواجا لتسكنوا إليها

سُوْرَةُ الرَّحْمٰنِ مَدَنِيَّةٌ وَهِيَ ثَمَانٌ وَّسَبْعُوْنَ اٰيَةً وَّثَلٰثُ رُكُوْعَاتٍ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

اَلرَّحْمٰنُ ﴿١﴾ عَلَّمَ الْقُرْاٰنَ ﴿٢﴾

خدای عزوجل تعليم يې کړی دی د قرآن يعني و محمدﷺ ته بواسطة جبرئيل عليه السلام. او دا سورة په روايت چي بيهقي په خپل سند د علي رضي الله عنه څخه روايت کړی دی مرفوعًا. د عروس القرآن په نامه يادېږي، و رواه ابن جعفر رحمه الله عن آبائه الاطهار کذالک ای عروس القرآن.

**درويش وايي**: چي دا سورة مکي دی په قول د جمهورو علماؤ اوقراؤ رحمهم الله قاله العلامة البغدادي رحمه الله في روح المعاني وروسته علامه بغدادي رحمه الله د دې سورة د مدني والي پر تائيد په اسنادو سره احاديث صحيحه رانقل کړي دي چي د تولو نقل به سبب د ملال د مطالعه کونکو وګرځي، فقير وايي چي په مصاحف مطبوعه ؤ کي في المطابع المختلفة هم وايي چي دا سورة مکي دی والله اعلم بالصواب.

**درويش وايي**: چي کفارو د مکې به ويل چي موږ رحمٰن نه پېژنو انسجد لما تأمرنا، او بعض د دوی به ويل چي موږ يو رحمٰن يمامه پېژنو چي د دوی مراد مسيلمة الکذاب ؤ چي هغه ځان په رحمٰن اليمامة سره مشهور کړی ؤ چي دې کذاب په حيوة کي د رسول اللهﷺ دعوه د نبوت کړې وه او ډېر اتباع يې درلوده چي هغه په خلافت د ابی بکر الصديق رضي الله عنه په قتل ورسېدی قاتل يې وحشي ؤ چي په جاهليت کي دغه وحشي حمزه بن عبد المطلب رضي الله عنه په قتل رسولی ؤ او دې وحشي په حيوة د نبي ﷺ ايمان راوړی ؤ، نو د سورة رحمن په اول کي يې پر هغو کفارو رد وکړی چي الرحمن هغه ذات دی چي ورکونکی دی د نعم دنيويه او اخرويه ؤ د ټولو له ابتداء څخه د خلق الی ابد الآبدين کما يدل عليه صيغة الرحمن (چي صيغه د مبالغې ده) او خدای پاک اولاً هغه اصل د ديني نعمتو ذکر کړی و اجلها واعظمها وهو تنزيل القرآن وتعليمه لان القرآن الجليل اساس الدين وفيه صلاح الدارين، وروسته يې بيا خلق الانسان ذکر کړی اشارةً الی ان الانسان انما خلق لپاره د تعلم القرآن والايمان به ولذالک علمه البيان، ولي زدکړه د قرآن جليل په

نعمت د بيان کړه کبري من التعليم والتعلم ومع هذا اشراک د مکې والو او عبادت د بتانو چي دوی نعمتونه د خدای نه پيژني او له هغو څخه منکر دي نو دوی ته خدای پاک توبيخ او سرزنش ورکړی په دې سورة کي (۳۱) واره يعني وروسته تر ذکر کولو د بعض نعمتو "فبای آلاء ربکما تکذبان" او بعض مفسرين وايي چي دا ايت رد دی د هغه قول د مشرکانو د مکې انما يعلمه بشر يعني چي قرآن ده ته يو بشر وربنيي، نو حاصل د رد يې دادی چي بشر دومره طاقت نه لري چي مثل د قرآن البليغ المعجز دي جاته وښيي کما يدل عليه ايات التحدی يعني مثل قوله تعالى ان کنتم في ريب الآية وغير ذالک بلکې دا قرآن علمه الرحمن الذي هو المنعم بالنعم الدنيوية والاخروية کلها بمقتضى رحمته وهذا القرآن من اجل نعمه ولي چي په قرآن کريم کي صلاح د دارينو سته.

خَلَقَ الْاِنْسَانَ ۙ﴿۳﴾ عَلَّمَهُ الْبَيَانَ ﴿۴﴾

قال قتادة وابن عباسؓ المراد بالانسان آدمؑ، کريمه: وعلم آدم الاسماء کلها الآية، فکان آدمؑ يتکلم بلغات کثيرة بمقدار ما يتکلم به اولاده الى يوم القيامة وافضلها العربية وتعيين لغات آدمؑ في علمه تعالى وقال ابو العالية والحسنؒ المراد جنس الانسان "علمه البيان" و انسان ته يې ښوولی اظهار د مافي ضميره چي دده په زړه کي يا په ژبه سره يا په کتابت سره او انسان ته يې فهم او افهام ورکړی دی حتى چي تميز د انسان وسي له ټولو حيواناتو څخه وصار قابلاً للوحي وتنزيل القرآن على اشرف افراد الانسان وهو محمدﷺ، او السديؒ وايي علم کل قوم ژبه د دوی چي دوی خبري په کوي، او ابن کيسانؒ وايي خلق الانسان يعني محمداًﷺ علمه البيان يعني القرآن چي په قرآن کي ما کان او ما يکون من الازل الى الابد موافق دي د ما جاء به رسل الله (اى في اصول الدين وهي المعتقدات) وهداية للناس (بل للانس والجن) او په عين حال کي قرآن معجزه ده د عليه الصلوة والسلام لپاره، کريمه: قل لو اجتمع الانس والجن على ان يأتوا بمثل هذا القرآن لايأتون بمثله ولو کان بعضهم لبعض ظهيراً.

**درويش وايي:** چي په سلګونو کلونه تېر سوه د نزول د قرآن عظيم الشان پر محمدﷺ او دا اعلان د اتيان بمثل القرآن په قرآن مجيد کي مکرر ځايونه راغلی

هم دی نو که اتيان بالمثل ممکن وای بشر ته نو کفارو د نړی به په ملياردو ډالر او پونډونه وغيرها سره جمع کړي وای او عربي دانان بې مزدوران کړي وای چې مثل د قرآن دي جوړ کړي، بلکې د لسو سورتونو کما جاء في القرآن بلکې په مثل د يوه سورت لکن نه سوه کاميابه.

**درويش وايي:** چې اعظم د معجزاتو د عليه الصلوة والسلام هم دغه قرآن کريم دی ولې چې باقي دی کر الازمان ومر الدهور د مثال په توګه شق القمر خو معجزه عظيمه وه، لکن موږ که کافرانو ته ووايو چې زموږ د نبي ﷺ معجزه شق القمر وه کافران به راته ووايي چې دا خو تاسي مسلمانان وايا ست موږ يې نه منو چې شق القمر دي په اشاره ستاسي د نبي وجود ته راغلې وي وهکذا نوري معجزې چې د عليه الصلوة والسلام په حيوة رونما سوي وي، نو اخيراً موږ مسلمانان مجبور يو چې کافرانو ته به وايو "لو کنتم في ريب مما نزلنا على عبدنا الآية"

اَلشَّمْسُ وَالْقَمَرُ بِحُسْبَانٍ ۝

**يوه سه:** چې حسبان يا مصدر دی لکه غفران يا قرآن يا رجحان من حسبت حسبانًا يا جمع د حساب ده کرکبان، معنی يې پر هر تقدير داده چې لمر او سپوږمۍ په مقدار معلوم مقدر سره چې د دوی په رفتار سره امور او احوال د کائناتو سفليه ؤ مربوط دي او کلونه يا قمري يا شمسي او اوقات د لمونځو او روژې او حج او وعدې د پورو هم مربوط دي.

**يوه سه:** چې دا څلور فصله يعني پسرلی، دوبی، منی او ژمی په شمسي حساب پوري مربوط دي او روژه يا حج يا لمونځونه په قمري حساب پوري مربوط دي، د لمر د رفتار ځايو ته بروج وايي او د سپوږمۍ د رفتار ځايو ته منازل وايي، نو قمري کال (۳۵۴) ورځې دی او شمسي کال (۳۶۵) ورځې دی په يوه ربع بالا، وتفصيل ذالک في شرح الچغميني وغيره.

وَّالنَّجْمُ وَالشَّجَرُ يَسْجُدٰنِ ۝

**يوه سه:** چې نجم هغه نبات ته وايي چې تر مځکې خو راووځي لکن ساق نه لري چې جګ ودرېږي لکه بادرنګ يا چمبرخيال يا کدو وغيرها، او شجره هغه نبات ته وايي چې تر مځکې راووځي پر خپله تنه جګ ودرېږي لکه توت، انار،

سبب، شوتالو وغيرها، مراد له سجدې څخه د دوی انقياد دی وما اراد الله منهما طبعًا لکه مکلف چې سجده کوي خدای ته اختيارًا او دا روايت دی د ابن عباس رضي الله عنه ابن جبير او رزين رحمه الله څخه.

**فائده:** خدای پاک مشابه کړی انقياد طبعي د دوی د انقياد اختياري سره د مکلف يعني په سجده کي ثم استعمل لفظ د مشبه به چې سجده کول دي په اختيار سره په مشبه کي چې انقياد طبعي دی د نجم او شجر چې دې ته په علم بيان کي استعاره مصرحه تبعيه وايي، قال مجاهد والحسن و قتادة رحمه الله المراد بالنجم ستوري د اسمان دي، والمراد بسجودها غروبها، وفيه نظر چې دا توجيه د معطوفه سره سمون نه لري وقال العلامة البغدادي المشهور هو الاول، او بعض مفسرين وايي چې مراد د سجدې د نجم او شجر سايه د دوارو ده پر مځکه کما في قوله تعالى يتفيؤ ظلاله عن اليمين والشمال سجدًا لله وهم داخرون، او بعض مفسرين وايي: مارا بر سجده ايشان وقوف نيست چنانچه بر تسبيح ايشان قال الله تعالى ولکن لا تفقهون تسبيحهم.

**فائده:** ذکر الله سبحانه في مقابلة النعمتين السماوتين ای الشمس والقمر نعمتين ارضتين وهما النجم والشجر ولا يخفى على العاقل کون الشمس والقمر والنجم والشجر نعيم للانسان او الحيوان فتدبر.

وَالسَّمَآءَ رَفَعَهَا وَوَضَعَ الْمِيْزَانَ ۝ اَلَّا تَطْغَوْا فِي الْمِيْزَانِ ۝

او اسمان، چې مراد څني جنس دی پورته يې پيدا کړی دی يعني د اول الامر څخه، داسي نه ده چې اول کښته ؤ بيا يې پورته کړی.

**درويش وايي:** چې روح البيان او مظهري وايي چې معنی د ايت خلقها مرفوعة او روح البيان وايي چې نصب د السماء په فعل مضمر دی على شريط التفسير لکن، علامه بغدادي په روح المعاني کي په دې کي ډېر لوی بحث کړی دی او سوال و جواب يې راوړی دی چې اوسنی زماني مفسر به يې رانقل کړي ان شاء الله.

**فائده:** د رفع څخه مراد يا رفع مکاني ده کما هو محسوس مشاهد يا رفع رتبي ده ولي چې اسمان منشاء د احکامو د خدای عزوجل دی او د قضاياؤ د خدای ج وتنزل منه او امره تعالى ومحل ملائکته چې د مځکي څخه تر اول اسمان

پوري د (۵۰۰) سوه کالو لار ده، يا رفع حسي او رتبي دواړه مراد دي عند من يجوز عموم المشترک او يا عموم مجاز دی فتأمل فيه.

**پوه سه:** چي مجاهد وايي مراد له ميزان څخه عدل دی والمعنی امر بالعدل او د خلګو په ذمو کي يې عدل لازم ګرځولی دی حتی انتظم امر العامة، او الحسن" او قتادة او الضحاک" وايي چي مراد له ميزان څخه ما يوزن به الاشياء ويعرف به المقادير يا ترازو يا پيمانه يا ګز ونحو ذالک، ولي په دغو مذکوره آلاتو سره انصاف او انتصاف معلومېږي، نو اصل معنی د ميزان مطلق تقدير دی وهو يشمل الکل نو پر دې تقدير معنی د وضع الزام ده، وقيل المراد بالميزان القرآن المجيد دی او معنی د وضع انزل ده يعني انزل القرآن علی محمد ﷺ.

**پوه سه:** چي کلمه د ان ناصبه ده او کلمه د لا نافيه ده ولام العلة مقدرة چي متعلق دی بوضع الميزان ای وضعه لئلا تطغوا فيه ولا تتجاوز احد الا مضاف.

وَأَقِيمُوا الْوَزْنَ بِالْقِسْطِ وَلَا تُخْسِرُوا الْمِيزَانَ ۝

برابر ورکوئ ترازو په عدل سره يعني د ترازو په ذريعه د چا حق مه خورئ او کم مه ورکوئ ترازو يعني هغه شی چي په ترازو يې مشتري ته ورکوئ کم يې مه ورکوئ، حسين کاشفي" په تفسير حسيني کي وايي اين همه تاکيد اهل ترازو در جهت آنست که بوقت وضع ميزان قيامت شرمنده نشويد.

**فائده:** خدای عزوجل لفظ د ميزان درې واره مکرر راوړی ولم يکتف بالضمير لپاره د تشديد د توصيه او يا د الامر باستعمال الميزان علی وجهه، کريمه: ويل للمطففين الآية، دوی هغه کسان دي چي په پيمانه يا ترازو کي چم کوي.

وَالْأَرْضَ وَضَعَهَا لِلْأَنَامِ ۝

"الارض" منصوب علی شريطة التفسير بما بعده "وضعها" ای خلقها وحفظها يعني کښېنته يې پيدا کړې ده غوړولې يې ده "للانام" لپاره د مخلوق يعني لمنافع الانام وهو جمع لا مفرد له من لفظه بمعنی الخلق والجن والانس مما علی الارض کذا في القاموس، او البيضاوي وايي چي الانام هر ذی روح ته وايي پر هغه دا سوال وارد دی چي مخاطبه په دې سورة کي د انس او جن سره ده لا للحيوانات.

فِيْهَا فَاكِهَةٌ وَّالنَّخْلُ ذَاتُ الْاَكْمَامِ

په دې مځکه کې دي مېوې (ابن کيسان) وايي چې په مځکه کې انواع کثيرة سته چې انسانان يې په مزه مزه خوري من النعم التي لاتحصیٰ) او خورما په مځکه کې سته.

**درويش وايي:** چې دا تخصيص بعد التعميم دی لان النخل داخلة في الفاكهة.

**پوه سه:** چې دا جمله "فيها فاكهة" تعليل ده لقوله والارض وضعها للانام، او اكمام جمع د كم ده بكسر الكاف چې پوښ د خورما دی بالفارسية خوشهای آن در غلاف تا ما دام که منشق نشده درغلاف باشد.

وَالْحَبُّ ذُو الْعَصْفِ وَالرَّيْحَانُ

او دانې سته په مځکه کې چې خلک يې خوري كالحنطة والشعير وجميع ما يتغذی به لکه جواري ورجې وغيرها، عصف بلګو ته د کښت او نبات وايي چې وچ سي لکه پرور "والريحان" او ريحان هغه غذايي دانې دي لکه غنم وغيره كذا قال اكثر المفسرين، او ابن عباس وايي كل ريحان في القرآن فهو الرزق كما يدل عليه ما قيل للاعرابي الى اين تذهب، قال اطلب ريحان الله ای رزقه، او له ابن زيد څخه ابن جرير واخرج عن الحسن انه قال كل مشموم طيب الريح من النبات چې په پښتو يې هم ريحان بولي چې د دانو او بتي يې ښه خوشبويي ولاړيږي او تور تخم کوي هغه تخم يې په مځکه کې وپاشي درخت وزمه شين بوټی راشين سي چې تر يو حده پوري بلند کېږي، او بعض مفسرين وايي چې اصل د ريحان روحان ؤ قلب الواو ياء للتخفيف.

**سوال:** اهل اشتقاق ولې وايي چې اصل يې روحان ؤ يعني ولې يې واوي بولي؟

**ځواب:** انه مأخوذ من الروح (چې ښه بوی ته وايي) و الروح واوي فافهم.

**اعراب:** عامه قاريان پر دې دي چې والنخل ذات الاكمام والحب ذو العصف والريحان ټول مرفوع دي عطف دي پر فاكهة.

فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ

**درويش وايي:** چې په دې سره مخاطب انس او جان دواړه په اتفاق د مفسرينو.

**سوال:** جن خو د مخه نه دی ذکر سوی؟

**ځواب:** ددې سوال په جواب کې روح المعاني او روح البيان او مظهري وايي چې دا دواړه صنف داخل دي په انام کې چې د مخه ذکر سو، ولې چې الحسن وايي چې انام دواړه ډلو ته شامل دی، مګر مظهري دا جواب هم راوړی دی چې دا خطاب و واحد ته دی (يعني الانس) په لفظ د تثنيه مثال يې دا ويلی دی القيا في جهنم، او روح المعاني په سختۍ سره دا جواب رد کړی دی چې دا ډېر ابعد جواب دی، او قياس يې پر القيا في جهنم هم بعيد دی، او بعض مفسرين وايي چې دا خطاب دی و ذکر او انثى ته د بني آدم، روح المعاني دا جواب هم ابعد بللی دی چې وروسته هغه ايت سنفرغ لکم ايها الثقلان څخه هم خطاب د دواړو فريقينو فهمېږي دا جواب روح البيان هم راوړی دی او مظهري هم راوړی دی او روح المعاني هم راوړی دی، لکن في قلب الفقير في هذا الجواب شيئ وهو ان القرينة ينبغي ان تكون سابقة الا ان يقال ان غاية القرب كالسبق والله اعلم، او روح البيان او خازن دا هم قرينه بولي چې اصل دواړو ډلو ته قريبًا راغلی دی في قوله تعالى خلق الانسان من صلصال الآية چې متصل په هغه پورې و خلق الجان الآية.

**درويش وايي:** چې په دې کې هم ماذکرت بقولي لکن في قلب الفقير آه والجواب ههنا هو الجواب السابق کما مر آنفًا.

**فائده:** په تفسير بحر العلوم کې وايي چې آلاء نعم ظاهرة او باطنة انس و جوان دواړو ته وايي نو هغه چا چې ويلي دي چې آلاء نعم ظاهره ته وايي فقط او النعماء و نعم باطنهٔ ته وايي سهو يې لانهما مترادفان فافهم.

خَلَقَ الْاِنْسَانَ مِنْ صَلْصَالٍ كَالْفَخَّارِ ۙ﴿۱۴﴾

پيدا کړی يې دی انسان يعني آدم عليه السلام.

**ځېړه سه:** چې صلصال وچو خټو ته وايي چې سرې يې په يو شي کرار کرار وټکوي شرينګې کوي، او فخار هغه خټو ته وايي چې په اوور پخې سوي وي چې په پښتو يې کودرې بولي.

**پوښتنه:** په بل ځای کې د قرآن عزيز راغلي دي من حماء مسنون په دې ايت کې صلصال راغلی دی نو ددې به منافات نه وي؟

**ځواب:** يا ولي چي آدم ﷺ اول له خاورو څخه بيا ختې سو بيا من حماء مسنون څخه بيا من طين لاب بيا فخار سو.

وَخَلَقَ الْجَآنَّ مِنْ مَّارِجٍ مِّنْ نَّارٍ

**درويش وايي:** چي مراد له جن څخه جنس پېرانان دي، او بعض مفسرين وايي "الجان" د جن د پلار نوم دی، او الضحاک وايي هو ابليس او مجاهد وايي چي جان ابليس نه دی وهو الصحيح، او په کشف کي هم وايي چي الجان ابو الجن دی لکه چي آدم ابو الانس دی او ابليس ابو الشياطين دی "من مارج" له صافو لمبو څخه چي دود نه وي ورسره، او مجاهد وايي چي مارج ګډوډو لمبو ته وايي سرې، ژړې، زرغونې چي اور د بر بل سي او دخان يې قطع سي خالص انګار پاته سي پر هغه باندي دا مختلفي لمبې پيدا کېږي فمعنى المارج من لهب مختلط "من نار" بيان د مارج دی او په تفسير کشف الاسرار کي وايي خلق الجن من مارج من نار، والملائکة من نور، والشياطين من دخانها او انسانان له خاورو څخه يعني په اعتبار د اصل د دوی چي آدم دی او په روح البيان کي وايي چي په مابين د پيدائش او خلق د جن او د آدم شپېته زره کاله دي والله اعلم، شيخ اکبر او کبريت احمر او مشک اذفر محي الدين ابن العربي قدس سره از سفر ثاني دفتوحات مکي ميگويد که مارج آنست که ممتزج بهوا که آنرا هوائي مشتعل گويند چون آب و خاک بهم شود آنرا طين گويند پس جان مخلوقست از دو عنصر آتش و هوا و آدم آفريده شده از دو عنصر آب و خاک وچنانچه تناسل دربشر بالقاء آب است (يعني نطفه) در رحم (يعني رحم زن) تناسل درجن بالقاء هوا است دررحم انثى شان.

**پوه سه:** چي اولاد ابليس لايموتون قبل النفخة الاولى، و اولاد الجان يولدون ويموتون قبل ذالک.

**درويش وايي:** چي انس او جن دواړه مکلف دي بالاحکام الشرعية فالکافر من الفريقين في النار ابدًا والمؤمن منهما في الجنة ابدًا.

**پوښتنه:** د مخه تېره سوه چي جان مخلوق دی من مارج من نار نو اوور خو په اوور نه سوځي نو دوی لره په دوږخ کي چي هم اوور دی څه باک سته؟

**ځواب:** دا مذکوره په ايت کي خو بيان د اصل مادې د دوی دی نور خو دوی

بدنونه لري په اوور سوځي، دا سوال يو انګرېز پر مسلمانانو کړی ؤ په دور کي د انګرېزانو د حکومت پر لويه وچه د هند او پاکستان، نو مسلمانانو ته د انګرېزانو حکومت وويل چي ددې سوال جواب دي د مسلمانانو يو عالم ورکړي، خير ددې لپاره يو عالم برجسته د مسلمانانو له خوا وټاکل سو او انګرېزانو سخت انتظامات ددې جلسې لپاره کړي وه چي د مسلمانانو او انګرېزانو ترمنځ يوه لويه فتنه جوړه نه سي، خير مجلس ته بحث پر دې مسئله د انګرېزانو حبر (يعني لوی ملا) او د مسلمانانو خپل ملا او ستر عالم هم حاضر سوه، خو د مسلمانانو له خوا عالم و حاکم ته د انګرېزانو وويل چي موږ چي هر څه سره وکړو فورًا به دوی کاروايي نه کوي، خير خو حبر د انګرېزانو خپل سوال مطرح کړی چي اور په اوور څه باک کوي کمامر؟ د مسلمانانو عالم ورته وويل چي آدم ﷺ له څه شي څخه پيدا سوی دی؟ انګرېز حبر ورته وويل چي له خاورو څخه، نو د مسلمانانو د عالم په بغل کي پټه يوه اومه خښته وه يعني په اوور نه وه پخ سوې د انګرېزانو حبر پې پر دا سر په وويشتی سر يې مات سو او وينې څنې وبهېدلې د انګرېزانو عسکرو چابک دستي کول چي د مسلمانانو عالم ګرفتار کړي، د مسلمانانو عالم ورته وويل چي زما او دده بحث جاري دی چي په هوش کي راسي که فرضًا هغه مړ سو بيا په ما هر څه چي کوئ، خير حبر چي په هوش کي راغلی د مسلمانانو عالم ورته وويل چي ولي دي سر مات سو او بېهوشه سوې؟ حبر ورته وويل چي تا څرنګه قاتلانه حمله راباندي وکړه، د مسلمانانو عالم ورته وويل چي تا خو ويل چي جنس په جنس نه په عذابېږي، او تا دا هم وويل چي آدم ﷺ له خاورو څخه پيدا دی نو ما خو ته د خاورو په يوه لوټه وويشتلې نو ولي بېهوشه سوې، حبر سلامي ورته وکړه چي زه خطاوتلی وم شيطان غولولی وم بخښنه غواړم، د مسلمانانو څخه نارې د الله اکبر د خوشالۍ پورته سوې، حاکم د انګرېزانو خپل ټوپۍ په خوله ورته نيولې وه لکه د دوی چي عادت دی چي په وخت کي د پښېمانۍ پر يوه خطا باندي ټوپۍ په خوله نسي، دا ؤ تفصيل د هغې خبرې چي د درويش د ماسبق پوښتنې په جواب کي تېره سوه تائيد او صحت.

فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿۱۶﴾

يعني له هغو نعمتو څخه چي پر تاسي يعني انس او جن باندي يې فيض کړی دی حتی چي افضل د مرکباتو يې تاسي ګرځولي ياست او خلاصه د کائناتو يې هم تاسي د دوی ګرځولي ياست تکذيب کوئ.

رَبُّ الْمَشْرِقَيْنِ وَرَبُّ الْمَغْرِبَيْنِ ﴿۱۷﴾

دا خبر آخر دی د الرحمن.

**پوه سه:** چي مراد د مشرقين څخه دوه مشرقه د لمر دي په دوبي او ژمي کي او دوه مغربه د لمر دي په دغو دوو فصلو کي د دوبي او ژمي.

فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿۱۸﴾

چي په دې کي هم نعم الٰهيه سته او فوائد لا تحصیٰ سته لکه اعتدال د هو او مايناسب کل فصل من الفصول الاربعة.

**سوال:** د مخه ترجمه خو تا ترجمه د مشرقينو او مغربينو سره د دوبي او ژمي وکړه اوس دي بيا فصول اربعه راوړه؟

**ځواب:** يو هغه مشرق مراد دی په هغه لويه ورځ د کال او د بل مشرق څخه هغه مشرق مراد دی چي لمر پکښي راخېژي په کوتاه ورځ کي د کال چي د دې دوو مشرقينو او مغربينو تر مابين (۱۸۰) مشرقه او مغربه دي، نو د مابين دوه فصله چي پسرلی او منی دی هم پکښي داخل سوه، دا دی مثال دد دې ايت چي څلور سره فصلو ته شامل دی لکه يو سړی چي مدح د يو عظيم بادشاه ووايي مثلاً سليمانؑ چي ده لره دی د مشرق او مغرب سلطنت، نو له دې څخه دا فهمېږي چي سلطنت د مابينها هم دده دی، او بعض مفسرين وايي چي مراد مشرق د لمر او د سپوږمۍ دی وکذا المغربين.

مَرَجَ الْبَحْرَيْنِ يَلْتَقِيٰنِ ﴿۱۹﴾

او خدای پاک روان کړي دي دوه بحره

**پوه سه:** چي لوی رود ته په عربي بحر وايي او مراد دد دې بحرينو څخه دا دی چي د يوه اوبه تروې وي او د بل دا خوږې وي) چي دا دواړه سره ملاقي کېږي يعني سره نژدې کېږي حتی چي تماس سره کوي، يلتقيان حال دی له بحرينو څخه.

بَيْنَهُمَا بَرْزَخٌ لَّا يَبْغِيٰنِ ﴿٢٠﴾

په مابين كي د دوى مانع د قدرت د خداى عزوجل دى، دا بل حال دى "لايبغيان" چي يو پر بل تجاوز نه سره كوي، دا بل حال دى له بحرين څخه.

**بوه سه:** چي برزخ حائل بين الشيئين ته وايي څكه قبر ته برزخ وايي لانه حائل بين الدنيا والآخرة، او د لا يبغيان معنى داده چي يو د بل خاصيت ته يعني تريو والي يا خوږ والي ته تاوان نه رسوي بلكې ډېره زمانه پر يوه حال باقي وي مع ان شانهما الاختلاط وانفعال كل واحد منهما من الآخر على الفور، او بعض مفسرين وايي چي دوى دواړه تجاوز نه كوي تر خپل حد چي ددې دوو تر مابين مځكه دي خرابه كړي تا چي مځكه ښكاره سي او مسكن دي وګرځي د انسانانو لپاره، او الحسنؒ على ما رواه عبد الرزاق وابن المنذر عنه وايي لايبغيان عليكم چي تاسي دي غرق كړي.

فَبِأَيِّ اٰلَاۤءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿٢١﴾

يعني ظهور د قدرت د خداى عزوجل دي.

يَخْرُجُ مِنْهُمَا اللُّؤْلُؤُ وَالْمَرْجَانُ ﴿٢٢﴾

حال دى من البحرين چي راوځي له دغو دوو دريابو څخه يو ملح او بل عذب دى ملغلري او مرجان.

**سوال:** دُر او مرجان خو د ملح درياب څخه راوځي دون العذب؟

**جواب:** قيل في جوابه يخرج من المجتمع بين الملح والعذب وفيه انه ينافي عدم الاجتماع بينهما لقوله تعالى برزخ، او بعض مفسرين وايي چي په كلام د عربو كي دا روا ده چي دوه شيان ذكر كړي او خاصه د يوه شي ذكر كړي كما في قوله تعالى يا معشر الجن والانس الم يأتيكم رسل منكم مع ان الرسل كانوا من الانس دون الجن.

**فائده:** مفسرين وايي چي لوء لوء غټو ملغلرو ته وايي او مرجان كوچني ملغلري ته وايي كذا في القاموس، و روى عبدالرزاق و الفريابي وعبد بن حميد وابن الجرير وابن المنذر عن ابن مسعودؓ چي ده وويل چي مرجان سرې سرې دانې دي وهو المشهور المتعارف چي په پښتو يې هم مرجان بولي، وعلى هذا اللوء لوء شامل لكبار والصغار كذا في روح المعاني.

فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٣٢﴾

**درويش وايي:** چي تر پايه پوري د سورة رحمن ترجمه د دغه ايت يوه ده.

وَلَهُ الْجَوَارِ الْمُنشَآتُ فِي الْبَحْرِ كَالْأَعْلَامِ ﴿٣٣﴾

او خداى لره دى (يعني د خداى ملک دی او دده په حکم سره چليږي) جوار جمع د جارية ده چي لويي کښتۍ ته وايي چي سفينه يې هم بولي د منشئات معنى بعض مفسرينو په معجزات بحكم الله، ولي چي يوه کوچنى ډېره چي درياب ته واچول سي دوبيږي دا دومره لويه کښتۍ چي هم په لسګونو مسافر او د دوى تجارتي اموال هم په کښتي پراته وي نه ډوبيږي الا ان يشاء الله، او بعض مفسرين وايي چي د کښتۍ لرګي يې يو بر بل پورته کړي وي "في البحر" متعلق دى په منشئات پوري وهي صفت للجوار "كالاعلام" يعني لکه غرونه جمع د علم طويل غره ته وايي، والجملة يعني من قوله وله الجوار آه عطف ده پر مرج البحرين خبر د الرحمن.

فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٣٤﴾

يعني په سفر کي د درياب په واسطه د کښتۍ هم ډېر منافع تجارتي او علم پر عجائبو د بحر مربوط نو فباى الاء آه.

كُلُّ مَنْ عَلَيْهَا فَانٍ ﴿٣٥﴾

هر شى چي پر مځکه دى من الحيوانات والمركبات وحتى الجبال والبحار والمعادن او من الانس والجن.

**پوه سه:** چي کلمه د من لپاره د تغليب ده عقلا او وده على غيرهم.

**درويش وايي:** چي التغليب فراخه دروازې ته وايي په عربيت کي "فانٍ" په ورځ د قيامت كان قبلها متى شاء الله.

وَيَبْقَىٰ وَجْهُ رَبِّكَ ذُو الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ ﴿٣٦﴾

مظهري وايي چي لفظ د وجه چي مخ ته وايي او خداى جل جلاله خو مخ په دې معنى نه لري نو دا لفظ د متشابهاتو څخه دى.

**درويش وايي:** چي څه ضرورت دى ولي چي وجه په معنى د ذات حقيقت هم

راغلي ده كما يقال عليﷺ اى ذاته.

**فائده**: اولا يې وجه مستعار وګرځول ذات لشرف الوجه في اعضاء الانسان لانه مجمع الحواس الظاهرة وموضع السجود ومظهر اثار الخشوع، راوي وايي چي دا آيت چي نازل سو ملكو وويل هلكت بنو آدم، بيا چي دا آيت نازل سو كل نفس ذائقة الموت د دوى يقين سو چي مونږ نه هم هلاكېږو لانهم اجسام لطيفة وارواح متعلقة بها كالانسان فلا بد لهم من الهلاک.

**پوښتنه**: په دې ايت كي وجه ربک يې په افراد سره د ضمير ووايه او په نورو ايتو كي يې ضمير تثنيه ووايه چي ربكما، فما وجه ذالک؟

**ځواب**: روح المعاني وايي چي ظاهره داده چي مخاطب په ربک سره رسول اللهﷺ دى وفيه تشريف عظيم لهﷺ بخلاف غيره من الايات فافهم.

"ذو الجلا" اى ذو العظمة والسلطان والاستغناء المطلق "والاكرام" اى اللطف العام والاحسان په دنيا كي پر مسلمانانو او كافرانو په وركړه سره د رزق او صحت او عافيت او مال او اولاد الى غير ذالک .... بيت:

اى كريمى كه از خزانه غيب ..... ګبر و ترسا را وظيفه خور دارى
دوستان را كجا كنى محروم ..... تو كه با دشمانان نظر دارى
اديم زمين سفره عاو اوست ..... برين خوان يغما چه دشمن چه دوست
آفاقها ګرديده ام مهريتان ورزيده ام
بسيار خوبان ديده ام اما تو چيزى ديګرى

ترمذي له انسؓ او احمد والنسائي او الحاكم په صحيح سند سره د ربيعه بن عامرؓ څخه روايت كړى دى قال قال رسول اللهﷺ چي تاسي محكم ساتئ ذكر د يا ذو الجلال والاكرام، سبب يې دادى چي په ذو الجلال والاكرام كي ټوله نعمتونه د دنيا او اخرت درج دي كمامر او په حصن حصين كي (چي د احاديث صحيحه ؤ يو كتاب دى) راغلي دي چي عليه الصلوة والسلام تېرېدى هغه سړي ويل يا ذو الجلال والاكرام عليه الصلوة والسلام ورته وويل قد استجيب لک (خواست دي قبول سو) فسئل (سوال كوه) والا تعاظ بقوله من كريم صفات الانسان.

فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿٢٨﴾

ولي چي احياء د دوی په حيات ابدي سره او ثواب ورکول په نعيم مقيم سره اجل النعماء واعظم الالاء.

يَسْـَٔلُهٗ مَنْ فِى السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ

ضمير راجع دی و خدای عزوجل ته، يعني د خدای څخه طلب کوي اسمان او مځکي والا من الملائکة والانس والجن د خپلو حاجاتو من المغفرة والعافية و توفيق العبادة والبرکات وغير ذالک.

**درويش وايي:** چي تخصيص چي ما په تفسير کي وکړی پر درو طائفو نظراً الی لفظ من چي نحات وايي چي لفظ د من مختص په ذوی العلم پوري دی، او بعض مفسرين وايي چي مراد له من السمٰوات والارض څخه ټول له موجودات دي من المذکورات والحيوانات والنباتات والجمادات فان کل ذالک ممکن والممکن له مالک خالق مقتدر علی ايجادها وهو الله تعالی نو پر دې تقدير راوړل د کلمه د من مبني پر تغليب د ذوی القول دی لشرفها علی غيرهم.

كُلَّ يَوْمٍ هُوَ فِىْ شَاْنٍ ﴿٢٩﴾

هر وخت (غرض دا دی چي له يوم څخه مراد متعارفه معنٰی نه ده چي ورځ يې بولي) کل منصوب دی په ظرفيت سره د يسئله "هو" يعني رب تعالی شانه وسلطانه په يو حال او صفت کي دی وانما من شيونه تعالی ان يحيي ويميت ويرزق ويعز قومًا ويذل اخرين ويشفي مريضًا ويمرض صحيحًا ويفک عانيًا (ای مسکينًا) ويرهن فارغًا (چي له پوره څخه فارغ هغه پوروړی کوي) ويفرح مکروها ويجيب داعيًا ويعطی سائلاً ويغفر للمؤمنين ذنوبهم بتوبة او بغير توبة حسب مشيته تعالی ويدخل جهنم ويعذبهم بانواع التعذيب من السلاسل والعقارب والزقوم الی غير ذالک اعاذنا الله منها بالثبات علی دين الاسلام الی حين وداع الروح من البدن ويدخل الجنة من خاف مقام ربه ويکرمهم بانواع فی الجنة دار القرار الی ما لايحصی من احسانه لهم قال رسول الله ﷺ من شانه ايغفر ذنبًا ويفرج کربًا (ای غمًا) ويرفع قومًا (من مقام الذلة الی العزة) و بضع آخرين

(من مقام العزة الى مقام الذلة) رواه ابن ماجه وابن حبان.

**درويش وايي:** چي په دې باره کي احاديث صحيح ښځي ډېر دي وفيما ذکرناه کفاية لمن القى السمع وهو شهيد.

فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٣٠﴾

يعني چي تاسي له يوه حال څخه و بل حال ته نقل کوي کما مر في تفسير کل يوم في شان عنقريب.

سَنَفْرُغُ لَكُمْ أَيُّهَ الثَّقَلَانِ ﴿٣١﴾ فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٣٢﴾

**پوه سه:** چي مراد له دې ايت څخه دا نه دی چي له کار څخه فارغ سم، لانه تعالى لا يشغله شان عن شان کذا قال ابن عباس رضی الله عنه والضحاک رحمه الله، نو معنى د ايت يا داده چي زه به قصد وکړم تاسي ته وروسته تر مهلت نو به شروع ستاسي په کار کي وکړم، او يا معنى داده چي خدای عزوجل وعده کړې ده د اکرام او انعام د مؤمنانو سره او وعيد د عذاب يې و اهل فجور ته ورکړې ده، نو وايي چي ژر دی چي زه به ځان فارغ کړم و تاسي ته مما وعدناکم واخبرناکم يعني يحاسبکم ونجزيکم ما وعدناکم من الخير والشر والى هذا ذهب الحسن وقتادة، يا معنى د ايت داده چي زه به ځان مجرد وګرځوم ستاسي د جزاء لپاره يعني يوم القيامة فانه تعالى لا يفعل يوم القيامة غير ذالک، او يا دا ايت مستعار دی د قول څخه د يو سړي و بل ته د تهديد لپاره "ته يار و دريږه چي زه در فارغ سم" يعني چي در فارغ سم نو په تمام قوت سره به تا ته عذاب درکړم "ايه الثقلان" اى انس او جن.

**فائده:** انس او جن چي ثقلان بولي ځکه چي دوی پر ځمکه بار د خپل ثقل اچولی دی احياءً و امواتاً، وقال جعفر الصادق بن محمد الباقر رحمه الله لانهما مثقلان بالذنوب يعني کفارهما، وقيل چي دوی درانه دي په تکليف الهي سره.

**پوښتنه:** سنفرغ لکم ايها الثقلان کي څه نعمت دی چي دوی ته خدای پاک وايي فبای آه، يعني د ماقبل څخه خو آلاء نه فهمېږي؟

**ځواب:** د دې سوال جواب روح المعاني داسي ورکړی دی التي من جملتها التنبيه على ما ستلقونه يوم القيامة للتحذير عما يؤدی الى سوء الحساب، او روح

البيان هم بعينه دغه قدر عبارت ويلى دى او مظهري وايي وقيل التهديد ايضًا نعمة يتزجر به المكلف په اخير كي يې ويلي دي وهذا تكلف فافهم والله اعلم.

يٰمَعْشَرَ الْجِنِّ وَالْاِنْسِ اِنِ اسْتَطَعْتُمْ اَنْ تَنْفُذُوْا مِنْ اَقْطَارِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ فَانْفُذُوْا

چي د مخه تعبير په ثقلان څني سوى وُ په دې ايت تعبير په خپل اسم جنس له دوى څخه وكړى لزيادة القرير والاهتمام بما سيئاتي.

**پوه سه:** چي په دې ايت كي يې جن د مخه كړى له دې كبله چي په وجود كي جن د مخه دى تر انس او په هغه ايت كي قل لو اجتمعت الانس والجن كي يې انس د مخه كړى دى په سبب د شرافت د انس پر جن اجماعًا "ان استطعتم" كه ستاسي له طاقته پوره وي.

**فائده:** ضمير د جمع يې راوړى يعني استطعتما يې نه وو ايه په اعتبار د كثرت د افراد د هر يوه د دوى دوو.

"ان تنفذوا" په قاموس كي وايي چي نفاذ تېرېده دي د شي تر شي يعني چي ووځي "اقطار" جمع قطر ده په معنى د جانب اى من جوانب السموات والارض يعني هاربين من قضاء الله فيكم وعذابه "فانفذوا" نو ووځئ، دا امر تعجيز دى، وقيل معناه ان استطعتم چي تاسي وتښتئ له مرګ څخه چي تر اطرافو د اسمانو او مځكي ووځئ نو وتښتئ لكن داسي نسئ كولاى، كريمه: اينما كنتم يدركم الموت الآية، او بعض مفسرين وايي لكه مظهري چي دا وينا يعني په ورځ د قيامت به وي، اخرج ابن جرير او ابن مبارك له الضحاك" څخه روايت كړى دى چي ورځ چي د قيامت سي اول اسمان سره وچوي والملك على ارجائها او ملكي يې پر اطرافو ولاړي وي هغو ته هم خداى پاک امر وركړي چي وركښتي سي پر تو له اهل محشر راوګرځي من الجن والانس، نو دوى راسي پر تو له اهل محشر راوګرځي وروسته دوهم اسمان بيا دريم اسمان بيا څلورم اسمان بيا پنځم اسمان بيا شپږم اسمان بيا اووم اسمان چي پر اهل محشر اووه صفه د ملكو راوګرځوي (او دا نعره وسي اين المفر) د تښتني ځاى چېري دى؟.

**درويش وايي:** چي مظهري تر دې وروسته داسي متشابه عبارت د حديث

مذکور راوړی دی چې په تاویل یې زما ملاګانه کوې د نورو مطالعه کوونکو ملاوي به هم ورماتي کړي، نو هغه عبارت ما نه روا رې صرف د غه عبارت را نقل کوم چې جهنم به هم راوړل سي، اهل محشر ته چې دوږخ و ويني ناري به وباسي و بل ته وهي چې راځئ فرار وکړو ددې دوږخ څخه نو دوی پر طرف د محکمي چې ولاړ روي او صفونه د ملکو و ويني چې فرار ته یې نه پرېږدي بېرته چارو ناچار خپلو اولو ځايو ته راسي، کريمه: اني اخاف عليکم يوم التناد يوم تولوا مدبرين (چې ناري مو سره وهلې بېرته تر شا راغلاست) وقوله تعالى يا معشر الانس والجن ان استطعتم ان تنفذوا من اقطار السموات والارض فانفذوا وقوله تعالى وانشقت السماء فهي يومئذ واهيه (يعني سره د محکمي بناء به هغه سستت وي) والملک على ارجائها، اخيري ناره وکړل سي چې د حساب ځای ته راسئ فاذا سمعوا الصوت فاقبلوا الى الحساب.

لَا تَنْفُذُوْنَ اِلَّا بِسُلْطٰنٍ ﴿۳۳﴾

تاسي نفوذ او فرار نه سئ کولای مګر نه په قوة او په زور سره وانتم عن ذالک بمعزل والف الف منزل، او يا معنى د ايت داده الا بسلطان مني فانه لا قدرة لاحد الا مستفادة من الله تعالى لانه لاحول ولاقوة الا بالله د خدای قدرة داسي دی لکه چې رسول الله ﷺ یې سره د بدن په شپه د معراج من السموات السبع الى سدرة المنتهى، چنانچه شيرازي قدس سره وايي:

چنان گرم در تیه قربت براند .... که در سدره جبرئیل ازو باز ماند
بدو گفت سالار بیت الحرام .... که ای حامل وحی برتر خرام
بگفتا فراتر مجالم نماند .... که نیروی بالم نماند
اگر یک سری موی برتر پرم .... فروغ تجلی بسوزد پرم

فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿۳۴﴾

نو په کومو نعمتو سره د خدای تاسي تکذيب کوئ، استفهام انکاري دی؛ ولي چې د تکذيب څخه تعذيب پيدا کېږي او تاسي فرار له تعذيب څخه هم نسي کولای، او بعض مفسرين وايي چې آلاء د تنبيه او تحذير دی او مساهلة د مع کمال

القدرة او بل نعمتو څخه ده د خدای تعالیٰ نصب د دلائل عقلیه ؤ دي چي په لږ فکر وهولو كي عاقل بايد غافل او مكذب نه وي، شيرازي قدس سره وايي :
برگ درختان سبز درنظر هوشيار ..... هر ورقی دفتریست معرفت کردگار
كريمه: وفي انفسكم افلا تعقلون.

يُرْسَلُ عَلَيْكُمَا شُوَاظٌ مِّنْ نَّارٍ ۙ وَّنُحَاسٌ فَلَا تَنْتَصِرَانِ ۚ

را استوي پر تاسي باندي (يعني هغه وخت چي تاسي له قبرو څخه بعث سئ) "شواظ" اكثره مفسرين وايي چي شواظ هغه لمبې دي چي دود نه وي ورسره، او مجاهد وايي چي هغه زرغوني لمبې دي چي دود ځني قطع سوی وي والمآل واحد "من نار" بيان دی د شواظ "ونحاس" سعيد بن جبير او الكلبي وايي چي نحاس دود ته وايي وهو رواية عن ابن عباس، وقال مجاهد وقتادة النحاس هو الصفر المذاب يعني ويلي وي چي د دوی پر سرو بې تو يوي وهو رواية العوفى عن ابن عباس "فلا تنتصران" ستاسي سره څوک كومک نسي كولای د خدای له عذاب څخه چي تر حشرگاه پوري مو رسوي، روح البيان، مظهري او روح المعاني اوله ترجمه لا يمنعان كړې ده او وروسته يې د الضحاک څخه يو روايت رانقل كړی دی چي هغه وايي دا كار په دنيا كي تر سره كيږي، دی وايي چي يو عظيم اور به د مغرب له خوا راووځي تحشر الناس حتى القردة والخنازير آه لكن بحر چي تفسير د علامه سمرقندي دی چي اصلي نوم يې البحر المواج دی وايي چي مراد په سورة الرحمن كي انس او جن دي فقط قردة او خنازير څرنګه الضحاک ورسره ملګري كړي دي والله اعلم.

فَبِاَيِّ اٰلَاۗءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ۚ

په كومو نعمتونو سره د خدای تاسي تكذيب كوي چي هغه عبارت دی د تهديد څخه پر كفر او معاصيو فان هذا اللطف من الله تعالى والتميز بين المطيع والعاصي بالجزاء والانتقام من الكفار لطف آخر.

فَاِذَا انْشَقَّتِ السَّمَاۗءُ فَكَانَتْ وَرْدَةً كَالدِّهَانِ ۚ

چي سره وچوي اسمان يعني وګرځي دروازې دروازې لنزول الملائكة، نو دا د انشقاق لپاره د فنا او عدم نه دی بلكې لپاره د نزول د ملكو بعد بعث الموتى من

القبور کذا قال الضحاکؒ او په یو خبر کي راغلي دي چي دا انشقاق د اسمان په سبب د انکشاف د جهنم دی چي د هغه سرپوښ لیري سي ''فکانت وردة'' نو ګرځي اسمان په رنګ سور لکه سور ګل ګلاب چي خلک یې بویوي او بعض وایي لکه سور رأس کذا في القاموس، او البغويؒ وایي چي سپین رنګ مائل و سور والي ته یا ژړوالي ته، او قتادةؒ وایي چي اسمان خو اوس شین رنګ دی او په ورځ د قیامت به یې لون آخروي مائل و حمرة ته ''کالدهان'' جمع د دهن ده خبر ثان دی د کانت لکه وردة چي خبر اول ؤ، یا کالدهان نعت دی د وردة یا حال دی، والمراد کدهن الزیت یا مطلق مایدهن به دی، حاصل دا چي اسمان په دغه ورځ په رنګ سور وي لکه سور ګل او په قوام کي لکه ویلي غوړي د زیتون وغیره.

**پوهسه:** چي جواب د اذا محذوف دی ای یکون من الاحوال دا احوال معنی حالات و الاهوال غمونه ما لا یحیط به دائرة البیان.

فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّکُمَا تُکَذِّبٰنِ ﴿۳۸﴾

یا دا جمله معترضه ده بین الشرط و الجزاء، نو جزاء د شرط پر دي تقدیر قوله تعالی.

فَیَوْمَئِذٍ لَّا یُسْئَلُ عَنْ ذَنْۢبِهٖۤ اِنْسٌ وَّلَا جَآنٌّ ﴿۳۹﴾

**پوهسه:** چي ضمیر د ذنبه راجع دی و انس ته لتقدمه په رتبه کي او جان یې تبع دی.

**پوښتنه:** په دې ایت کي نفي د سوال د ذنب وسوې یعني چي بې سواله یې خدای ؑ دوږخ ته اچوي ولي چي خدای ؑ عالم الغیب و الشهادة دی د دوی په ګنهو تر دوی خبر دی، او بل دا چي کرام کاتبین من الملائکة کتبوا اعمالهم وخزنة جهنم یعرفونهم بسیماهم فلا حاجة الی السوال عن الذنوب، او په بل ایت کي راغلي دي فوربک لنسئلهم اجمعین فما التوفیق بین النفي و الاثبات، قال مجاهدؒ في جوابه عن ابن عباس رضی ونحو ذالک قال الحسن و قتادةؒ وهو المعنی لما قال ابن عباس رضی في الجمع بین الآیتین حیث قال انه لایسئلون سوال شفقة و رحمة بلکي سوال له دوی څخه پر طریقه د تقریع او سرزنش کیږي، وعن عکرمة رضی عن ابن عباس رضی في الجمع بین الآیتین چي په قیامت مواقف سته چي په بعض کي سوال نه ځني کوي او په بعض کي یې کوي.

فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ

فان الاخبار بما ذكر في الآية السابقة نعمة يزجركم عن الشر، او يا معنى داده چي هغه انعامات چي رب جل وعلا ورکړي دي عباده المنقادين په دغه ورځي کي د قيامت، او هغه انتقام چي خدایٔ د عباده المتمردين على الكفر والعصيان نعمة على الاحباب كما قال الله تعالى: فقطع دابر القوم الذين ظلموا والحمد لله رب العالمين.

يُعْرَفُ الْمُجْرِمُونَ بِسِيمَاهُمْ فَيُؤْخَذُ بِالنَّوَاصِي وَالْأَقْدَامِ

پيژندل کېږي مجرمان يعني کافران په سيما سره.

**بوه سه:** چي سيما بكسر السين يا په قصر سره يا په مد سره علامې ته وايي، نو دا جمله استيناف ده لپاره د جاري مجرى التعليل لعدم السوال، يعني سوال ته ضرورت نسته ولي دوی خپله علامه لري چي سواد الوجوه مع ارزقة العيون يا کابه عطف تفسير د کابه او بيقراري، لکه مؤمنان چي په اضدادو د هغو صفاتو پيژندل کېږي.

''فيؤخذ بالنواصي والاقدام'' نو مجرم نيول کېږي د ملکو له خوا په نواصي سره، نواصي جمع د ناصية ده چي مقدم ته د رأس وايي مراد څني وېښتان د مقدم الرأس دي او تړپښو يې ونسي اوورته يې وغورځوي او يا معنى داده و تجرهم على وجوههم او يا معنى داده چي نواصي او اقدام يې سره جمع کړي په يوه ځنځير کي د شا د خوا او دوږخ ته يې وغورځوي.

فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ

ولي تكذيب بالآلاء مفضي و دغه تعذيب ته د مجرم چي نعمت دی لپاره د مؤمن لان تعذيب اعداء المؤمنين نعمة لهم.

هَٰذِهِ جَهَنَّمُ الَّتِي يُكَذِّبُ بِهَا الْمُجْرِمُونَ

دا دی دوږخ (مبتداء او خبر دی) هغه جهنم دی چي تکذيب کاوه چي نسته مجرمانو مشرکانو يعني في الدنيا.

**فائده:** موصول سره د صله صفت دی د جهنم او مجموع جمله مقوله ده يقال المقدر ده ای يقال لهم من جانب خزنة جهنم يعني چي د غه کش ماکش د اخذ بالنواصي والاقدام به ملکي دا خبره ورته کوي (ای هذه آه)

يَطُوفُونَ بَيْنَهَا وَبَيْنَ حَمِيمٍ اٰنٍ ۝

تګ او راتګ به کوي مجرمان په مابين کي د دغه اى جهنم (چي مؤنث سماعي دى) او په مابين کي د حميم، يعني چي په دوږخ کي دوى تږي سي او د اوبو طلب وکړي حميم ته يې ورولي چي نهايته تو دې اوبه دي "آن" اى بالغ نهايت الحرارة ته وايي چي تر دې بالا تو دې اوبه نسته، ترمذي او البيهقي د ابو الدردا رضي الله عنه څخه يو روايت کړى دى مرفوع و عليه الصلوة والسلام ته چي پر اهل النار داسي لوږه غلبه وکړي، نو فرياد د خوراکي شيانو وکړي نو ملکي د طعام د ضريع ورته پېش کړي چي نهايت تريخ بټى دى لايسمن ولا يغني من جوع، بيا دوى د پر تږي سي طلب د اوبو وکړي نو ملکي په چنګک د اوسپني د دوى مخ ته چي نژدې کړي د مخ پوستکى يې ټول راشوه سي الى اخير الحديث.

فَبِاَيِّ اٰلَاۗءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ۝

ولي چي تکذيب په الاء الله سره يوجب التعذيب بعض مفسرين بلکې اکثره مفسرين وايي چي له قول څخه د خداى عزوجل کل من عليها فان بيا تر دې ځايه پوري نصائح او زواجر او تخويفات دي وکل ذالک نعمة من الله لانها يزجر عن الکفر والمعاصي وذالک الزجر فضل ورحمة من الله عزوجل، يو مظهري" دى چي وايي دا ټول له تکلفات دي يعني زواجر او نصائح ته نعمت وايي وروسته ده له ځانه يو طويل بيان راوړى دى لايقبله الطباع السليمة ان شئت فارجع الى تفسيره وطالعة بدون العصبية ومعرفة الحق بالرجال.

وَلِمَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهٖ جَنَّتٰنِ ۝ فَبِاَيِّ اٰلَاۗءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ۝

**پوه سه:** چي مقام يا ظرف دى اى الموقف الذي يقف فيه العباد للحساب، او يا مصدر ميمي دى والمعنى قيام ربه اى اطلاعه وعلمه، په روح البيان کي وايي جنة للخائف الانسي يعني يو جنت د هغه خائف مقام ربه دى چي د انسانانو له جنس څخه وي او بل جنت د خائف جني لپاره دى على طريق التوزيع، ولي خطاب دوا رو دلو ته يعني انس او جن ته دى. تفسير روح المعاني وايي وهذا عندي خلاف الظاهر آه شايد وجه به يې دا وي چي معنى د لمن خاف آه چي هر فرد لره د

من خاف مقام ربه دوه جنت دي که انس وي او که جن.

**پوښتنه**: چي مذکور ایت شروع ده په تعدید کي د هغو آلاء چي په اخرت کي ور کړه کیږي ولمن خاف ته.

**پوښتنه**: دا دوه جنته څه شی دي؟

**ځواب**: په دې کي د مفسرینو اختلاف دی (۱) یو جنت دده خپل کور دی او یو یې لپاره د ملاقات دده د دوستانو دی والیه ذهب الجبائي (۲) دوه باغونه دي یو په داخل کي د قصر او یو خارج القصر (۳) وي دوه منزله چي له یوه څخه ګاهي هغه بل ته ولاړ سي لپاره د کمال لذت بیا هغه اول ته ولاړ سي بلا تشبیه لکه من یطوف بین النار حمیم آن (۴) جنت لعقائده الصحیحة وجنت لاعماله الصالحة (۵) جنت لفعل الطاعات وجنت لترک المعاصي (۶) او جنت چي ثواب د عمل دی او بل جنت چي د خدای پاک تفضیل او احسان دی (۷) یا یو جنت دی چي روحاني خوشالي پکښې وي او په هغه بل کي جسماني خوشالي، روح المعاني وایي چي له وروسته آیتو څخه دا فهمیږي چي نعمتونه ټول له جسماني دي.

**درویش وایي**: چي بیهقي په شعب الایمان کي له حسن څخه روایت کوي چي یو ځوان په زمانه کي د عمر رضی الله عنه د خلافت چي همېشه به په مسجد نبوي کي په عباداتو بخت ؤ، یوه پېغله ښځه پر ده عاشقه سوې وه، نو دی چي کور ته ولاړی په خپل خلوت ځای کي کښېنستی هغه ښځه پسي ورغله و ده ته یې د زنی دعوت ورکړی دده نفس هم څه ناڅه مائل سو وروسته چي مقام ربه ورپیاد سو لویه ناره یې وکړه او بېهوشه سو اکا یې ورته راغلی نو کله چي دی په هوش کي راغلی اکا ته یې وویل چي ورسه عمر رضی الله عنه ته سلامونه وایه وقل ما جزاء من خاف مقام ربه، اکا چي یې عمر رضی الله عنه ته ورغلی عمر رضی الله عنه یې له ماجرا څخه خبر کړی، نو عمر ورسره راروان سو، عمر رضی الله عنه و ځوان ته نارسیده یله چغه او بغاره وکړه او بېهوش سو او د بېهوشی په وخت کي یې روح خدای عزوجل ته وسپاره یعني مړ سو، عمر رضی الله عنه چي راغلی ځوان مړ ؤ، عمر رضی الله عنه وویل لک جنتان لک جنتان.

راغب اصفهاني وایي چي له خوف څخه د خدای عزوجل دا مراد نه دی چي صرف یې په زړه کي رعب پیدا سي لکه رعب د زمري څخه، بل انما یراد به الکف

عن المعاصي كلها وتحري الطاعات جبلها ، ولذا قيل لايعد خائفًا من لم يكن اللذنوب تاركًا وقال بعض المفسرين المراد بالخوف اشده.

**درويش وايي**: چي مظهري دا ټوله بيان چي په بيان کي د جنتانو چي دمخه موړ بيان کړه او روح المعاني ټوله هم رواړي دي مظهري رد کړي دي او داسي يې ويلي دي وهذا التأويل مستبعد جدًا ، دليل يې دا ويلى دى چي ددې څخه خو دا لازمېږي چي عدد د جناتو پر ضعف د عدد د خائفانو وي بل على ضعف ضعفهم لان قوله تعالىٰ ومن دونهما جنتان عطف دى پر هغه ايت ولمن خاف مقام ربه جنتان نو بايد هر يوه لره د من خاف مقام ربه څلور جنته وي، وروسته ده احاديث راوړي دي چي عدد د جنات څلور دى آه.

**درويش وايي**: چي د څلور والي حديثونه يې را نقل کړي دي هغه يو مخصوص جنتونه دي لکه په حديثو کي هم تصريح په خصوصيت سره سوې ده والا فالجنات مطلقًا ثمانية اجماعًا، او هغه دليل چي مظهري د استبعاد د تأويل مذکور کړ څولى دى د هغه دليل دده فاسد دى، ولي په جنات کليه د نه جنات صغيره صغيره سته هغه که څو ته ورسېږي څه استبعاد پکښې سته، ولي جنات کليه هر يو يې تر دنيا و مافيها فراخه دي كما ثبت في الاحاديث الصحيحة المروية في الصحاح الستة، وقد روى روح المعاني في شان هاتين الجنتين من حديث عياض بن غنم مرفوعًا ان عرض كل واحدة منهما (اى من الجنتين) مسيرة مأة عام.

**درويش وايي**: والله أعلم روح البيان، روح المعاني او تفسير حسيني دا ټوله توجيهات مذكوره په باره کي د ومن خاف مقام ربه جنتان راوړي دي، آيا دوى محدثين نه او که څرنګه؟.

ذَوَاتَآ اَفۡنَانٍ ﴿۴۸﴾

**پوه س**: چي اصل د "ذواتا" ذوۆ اى للمذكر وذات اصله ذوات للمؤنث او تثنيه ذواتا ده على الاصل او په جمع کي هم ذوات راځي تخفيفًا او دغه الفاظ نه مستعملېږي مګر نه مضاف لانها وضعت ليتوصل بها الى الوصف باسماء الاجناس او دلته ذواتا صفت دى د جنتان "افنان" يا جمع د فن ده په معنى د نوع

والمعنى ذواتا انواع من الاشجار والاثمار، دا روايت د ابن عباس‏ؓ وابن جبير والضحاك‏ؒ څخه مروي دى.

**فائده:** علم ته چي فن وايي هم په دغه مناسبت چي علم د هر فن وي فائده لري خصوصًا العلوم الشرعية من العقائد والعمليات كما لايخفٰى وما يتوقف عليه العلوم الشرعية كاللغة والنحو والصرف والمعاني والبيان يعني ما عدا علوم الفلاسفة، او يا جمع د فنن ده وهو مادق ولان من الاغصان كذا نقل عن ابن الجوزي، او ګاهي د فنن تفسير په ښاخ كوي وقال عكرمه‏ؒ ظل الاغصان على الحيطان (پر دېوالو) وقال الحسن‏ؒ ذواتا ظلال الى غير ذالک من التفاسير.

فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿۴۹﴾

والآلاء ههنا ظاهرة كما يخفٰى.

فِيۡهِمَا عَيۡنٰنِ تَجۡرِيٰنِ ﴿۵۰﴾

په دې دواړو جنتو كي دوې چينې د اوبو چي بهېږي همېشه، دا بل صفت دى د جنتانو يا خبر دى د مبتداء مقدري اى في كل واحد منهما عين تجرى بالماء الزلال چي يوه تسنيم بولي او بل سلسبيل بولي، وروى هذا عن الحسن‏ؒ او عطية العوفى وايي چي يوه چينه من ماء غير آسن (چي خوند يې متغير نه وي) او بله چينه من خمر لذة للشاربين (يعني د سر درد نه وي پكښې كما في خمر الدنيا) او بعض مفسرين وايي چي عينان تجريان حيث شاء صاحبها من الاعالى والاسافل من جبل مسک.

**پوه سه:** چي ددې ايت معنى دا نه ده چي فقط دا دوې چينې د اوبو دي لامزيد عليهما. ولي خداى عزوجل په بل ځاى كي د قرآن كريم وايي فيها (اى في الجنات) انهار من ماء غير آسن وانهار من لبن لم يتغير طعمه (لكه شيدې چي خيد كېسي تريو خوند كوي) وانهار من خمر لذة للشاربين (يعني چي سر درد او بېهوشي نه وي پكښې لكه د دنيا په شرابو كي) وانهار من عسل مصفى (چي د مچمچى د آلودګي څخه پاک وي يعني موم) فلا بد انيكون من كل نوع انهار اربعة.

فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿۵۱﴾

د آلاء بيان ته ضرورت نسته.

فِيهِمَا مِن كُلِّ فَاكِهَةٍ زَوْجَانِ ﴿٥٢﴾

په دې دوو جنتو کې د هرې مېوې څخه دوې نوعې دي، يوه نوع غريبه نا ولده او بله معروفه ده چې دوی په دنيا کې پېژندله. بعض رطب او يا بس لکه انګور او کشمش يا خورما تازه يا تمر وچه خورما دا بل صفت دی د جنتان، او بعض وايي چې رنګ يې يو وي او خوند يې جلا وي، البغوي بسنده له ابن عباس څخه روايت کړی دی ما في الدنيا حلوة او مرة که خوږه وي او که ترخه الا هو في الجنة حتى الحنظلة (يعني مرغوني چې ډېره ترخه ده) الا انها في الجنة حلوة يعني خوږه ده.

فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٥٣﴾

المعنى ظاهرة لايحتاج الى الاعادة.

مُتَّكِئِينَ عَلَىٰ فُرُشٍ بَطَائِنُهَا مِنْ إِسْتَبْرَقٍ ۚ وَجَنَى الْجَنَّتَيْنِ دَانٍ ﴿٥٤﴾

فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٥٥﴾

تکيه به يې کړې وي، يعني په ارام به ناست وي لکه بادشاهان.

**پوه سه:** چې دا لفظ "متکئين" حال دی له خائفين څخه.

**سوال:** خائفين چېرې ذکر سوي وه؟

**ځواب:** من خاف په معنی د جمع دی لان کلمة من شامل للواحد والجماعة وههنا الخائف من مقام ربه اشخاص کثيرون "على فرش" جمع د فرش ده وهو ما يفرش للجلوس عليه والنوم چې په پښتو يې کوربچه بولي "بطائن" جمع د بطانة ده خلاف الظهارة (چې بطانة ته په فارسي او پښتو دوا رو کې استر وايي) دا به له استبرق څخه وي يعني پنډ ورېښمين ټوکر.

**درويش وايي:** چې ابن جرير او ابن ابى حاتم والبيهقي عن ابن مسعود چې تاسي ته خدای خبر درکړی د بطائنو چې استرې بولي چې په دنيا کې خلک ډېر معمولي ټوکر څخه ورکوي يعني د کوربچې سر ډېره مخ چې په دنيا کې هغه د قيمتي ټوکر څخه ورکوي، واخرج عن سعيد بن جبير قال ظواهرها من نور جامد، او البغوي وايي چې د سعيد بن المسيب چې بطائن خو استبرق وه فما الظواهر فقال هذا کما قال الله عزوجل فلا تعلم نفس ما اخفى لهم من قرة اعين، په دې کې

مقصد د سعيد بن جبير" دا دی چې علم ظواهر د موکول و علم ته د خدای عزوجل دی بدليل قوله تعالى فلا تعلم نفس آه.

**بوه سه:** چې "جنا" اسم دی په معنی د مجنود دی يعني هغه ميوه چې له درختو څخه پرې کيږي د خورک لپاره هغه نژدې و جنتيانو ته يعني جنتي ته دا تکليف نسته چې دی درختي ته وخيژي او ميوه به شکوي، اخرج سعيد بن المسيب" والبيهقي وهناد في تفسير قوله تعالى وذللت قطوفها تذليلا ان اهل الجنة يأكلون من ثمار الجنة قيامًا وقعودًا و مضتجعين على اى حال شاؤا يعني ښاخونه د درختي ورته رانژدې کيږي على اى هيئة شاؤا.

فِيهِنَّ قَٰصِرَٰتُ ٱلطَّرْفِ لَمْ يَطْمِثْهُنَّ إِنسٌ قَبْلَهُمْ وَلَا جَآنٌّ ۝
فَبِأَيِّ ءَالَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ۝

او په جنتو کي داسي ښځي موجودي دي من حور العين وغيرها چې سترګي يې پر خپلو ازواجو قصر دي يعني په بل جنتي پسي يې سترګي نه وي کړې. لکه په دنيا کي چې ښځه خپل تر ميړه ښائسته وويني سترګي پسي کړوي يعني چې کاشکي دا زما ميړه وای لکن په جنت کي د هري ښځي خپل ميړه تر هرچا ښائسته ورته معلوميږي.

**بوه سه:** چې اصل د "طمث" وينو ته وايي. نو ښځه چې بکر وي پر اول جماع کي چې د بکارة فرده يې څيري سي تر فرج يې ويني راځي. نو معنی د ايت دا ده چې دغه اهل جنت ښځي تر خپلو مړو دمخه يې نه انسان او نه جان يې بکارت ورته زائل کړی وي په جماع سره حتی چې ويني راسي بلکې د ښځو د اهل جنت کماهن باکرات وي چې خپل ميړه به يې بکارت ور زائلوي.

**بوه سه:** چې جمله د لم يطمثهن آه حال ده من قاصرات الطرف څخه.

**فائده:** زجاج" وغيره وايي چې ددې څخه دا و فهميده چې جن هم د خپلو ماينو سره جماع کوي.

**فائده:** اهل علم وايي چې د جنت حوري هميشه باکرات وي داسي نه چې په اوله پله کي باکرات وي وروسته بيا لکه د دنيا ښځي چې بکارت يې زائل سي نو فرج يې فراخه سي.

**پوښتنه:** د باکرې ښځې سره وطي خو درد کوي، نو د جنت حوري چې همېشه باکرات وي، نو د دوی سره جماع دوی ته درد پيدا کوي او که څرنګه؟

**ځواب:** درد خو هيڅ نه وي لکن همېشه چې باکرات وي ددې لپاره چې د باکره جماع خوندوره وي کما يدل عليه التجربة في نسائنا في الدنيا.

**پوښتنه:** وطي د جن د بشري ښځې سره کېدای سي؟

**ځواب:** مجاهد او الحسن ؒ وايي چې انسان چې په وخت کې د جماع اسم الله نه ووايي نو جن سره د دخول د بشر خپل آله هم ورسره ملګرې کوي.

**درويش وايي:** چې دې ته څه ضرورت دی ولي جن استقلالاً د بشريه ښځې سره ولې جماع نه سي کولای، ويدل علي ذالک ما رواه ابو عثمان سعيد بن داؤد الزبيدي، قال کتب قوم من اهل اليمن الى مالک ؒ صاحب المذهب چې دلته يو سړی دی د جنياتو څخه دی وايي چې زه نکاح غواړم د بشريه ښځې سره په حلال ډول، فقال مالک ؒ ما ارى بذالک بأساً لکن زه دا مکروه بولم چې يوه ښځه چې حامل سي يو څوک ورته ووايي چې ستا مېړه څوک دی؟ دا ووايي جن دی فيکثر الفساد في الاسلام ويفتح باب الزنى للنساء، ولې که د زنى يوه ښځه چې مېړه نه لري اميدواره سي، خو هغه ښځه هم دا ويلای سي چې زما حمل د خپل مېړه جن څخه دی.

**فائده:** بعض علماء وايي چې جن لره په جنت کې حوري نسته، لکن الطبرسي ؒ وايي چې جنيانو لره هم حوري سته اذ لامانع لان يخلق الله تعالى في الجنة حوراً للانس چې هم شکل د انسانانو وي، يقال لذالک حور الشهات، ويخلق الله تعالى من الحور ما يناسب الجن.

كَأَنَّهُنَّ الْيَاقُوتُ وَالْمَرْجَانُ ﴿٥٨﴾ فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٥٩﴾

**پوه سه:** چې جمله صفت ده د قاصرات الطرف يا حال دی.

**درويش وايي:** چې په ياقوت او مرجان کې د مفسرينو اختلاف دی، اخرج عبد الرزاق و عبد بن حميد وابن جرير عن قتادة ؒ چې ده ددې ايت په تفسير کې وويل في صفاء الياقوت وبياض اللؤلؤ (نو د مرجان سپيني ملغلري اخستي دي) او الحسن ؒ ورته تفسير کړی دی، او بعض وايي في صفاء الياقوت وحمرة المرجان (نو له "جان" څخه يې متعارف معنى اخستې ده) او بعض وايي چې

دوی مشابه دي د ياقوت سره په سور کي د مخ او د مرجان ای صغار اللؤلؤ.

**سوال:** تخصيص د صغار يې ولې وکړی؟

**ځواب:** کشاف وايي چي صغار اللؤلؤ بالا دي تر کبارو په صفايي کي د رنګ که څه هم په قيمت کي کبار تر بالا دي، او بعض وايي چي ارادة د کبارو ښه ده لانه اوفق بقوله تعالى كانهن بيض مكنون واخرج احمد وابن حبان والحاكم والبيهقي في بحث البعث والنشور في تفسير هذه الآية ينظر الى وجهها چي دا په خپله پرده کي وي تر اندازيې مخ صاف وي او هغه کوچنی ملغلره چي په دې پوري ځړيږي تضيئ مابين المشرق والمغرب او حوري اوويا (۷۰) جوته کالي اغوستي وي داسي صافي وي چي تر دې تولو ستر ګي ور وځي او پنډۍ يې معلوميږي.

**پوه سه:** چي ياقوت يوه ډبره ده ډېره سخته حتى چي سوهان تاثير نه پکښي کوي اصلا بلکې د سوهانه سره يزداد حسنًا. لکن اصل ياقوت ډېر عزيز الوجود دی سيمًا ياقوت احمر يې وروسته هغه اصفر عزيز دی، د طب په کتابو کي وايي چي لوړ قيمت ده سره ياقوت که يې څوک په ګوتمۍ کي ولګوي امن الطاعون وان عم الناس وكان لابسها معظم عند الناس وجيهًا عند الملوک.

روايت کړی دی ابو سعيد له رسول اللهﷺ څخه په بيان کي د اهل الجنة لكل رجل منهم زوجتان على كل زوجة (۷۰) جوته کالي وي، يرٰى مخ سوقهن (ماغزه د پنډۍ د دوی معلوميږي من وراء اللحم په سبب د حسن) او د غه په حديث د ابو هريرهؓ په روايت اول زمرة (ډله) تدخل الجنة على صورة القمر ليلة البدر (د څوارلسم تاريخ) والذين على اثرهم (چي تر هغو وروسته داخليږي) كاشد كوكب اضائة قلوبهم على قلب اجل واحد لا اختلاف بينهم ولاتباغض الى اخير الحديث الذي مريعني له زوجتان آه.

هَلْ جَزَآءُ الْاِحْسَانِ اِلَّا الْاِحْسَانُ ۚ فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ۝

نه ده جزاء او ثواب د نېک عمل په دنيا کي (استفهام انکاري دی) مګر احسان يعني ښه ثواب په اخرت کي، له انسؓ څخه روايت دی چي عليه الصلوة والسلام دا ايت ووايه هل جزاء الاحسان الا الاحسان بيا عليه الصلوة والسلام وويل هل تدرون ما قال ربكم (يعني په دې ايت د خدای عزوجل څه مراد دی) اصحابوؓ ورته وويل الله ورسوله اعلم، قال رسول اللهﷺ چي الله عزوجل وايي هل

جزاء من انعم عليه بالتوحيد چې ما احسان کړی وي پر چا په توحيد سره (یعني لاَ اله الا الله) الا الجنة ابن عباس رض دا ورسره من قال لاَ اله الا الله وعمل بها جاء به محمد ﷺ الا الجنة (چي مراد ځني عمل صالح دی)

وَمِن دُونِهِمَا جَنَّتَانِ ۝ فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ۝

ماسوئ د هغه جنتين څخه چي دمخه ذکر سوه دا جمله عطف ده على قوله تعالى ولمن خاف مقام ربه جنتان، مظهري وايي چي جنتان دلته پر هغه جنتان چي په هغه ايت کي ذکر سوي ولمن خاف مقام ربه جنتان عطف المفرد على المفرد دی او من دونهما حال مقدم عليه، والمعنى ان لمن خاف مقام ربه اربع جنات.

**سوال:** خو اول به يې څلور جنتان ويلي وای؟

**ځواب:** مظهري" ددې په جواب کي وايي ولم يفعل هكذا ليدل على كون الاولين افضل من الآخيرين انتهى.

**درویش وايي:** چي وليس بشيئ او سلطان المفسرين علامه بغدادي" وايي چي من دونهما مبتداء او خبر دي يعني جنتان مبتداء ده چونکه نکره د خبريه چي من دونهما پر مقدم کړی کما قال النحات في قوله في الدار رجل، حاصل د معنى يې بغدادي" داسي بيان کړی دی دون تينک الجنتين في المنزلة والقدر جنتان اخريان، بيا روح المعاني ويلي دي چي ابن زيد والاكثرون وايي الاوليان للسابقين الى الخيرات والاخريان لاصحاب اليمين، وقد اخرج ابن جرير وابن ابي حاتم وابن مردوية عن ابی موسیٰ رض عن النبي ﷺ في تفسير قوله تعالى ولمن خاف مقام ربه جنتان وقوله سبحانه وتعالى "و من دونهما جنتان" قال ﷺ جنتان من ذهب للمقربين وجنتان من ورق (یعني سپين زر) لاصحاب اليمين، روح المعاني ويلي دي وزعم بعضهم ان الاوليين للخائفين والاخيرين لذرياتهم الذين الحقوا بهم، روح المعاني دا تفسير رد کړی دی بقوله ولم اجد له مستنداً من الاثار انتهى قوله يعني په احاديث کي دا قول سند نه لري.

**درویش وايي:** چي روح البيان عيناً بيان د روح المعاني کړی دی او قول د مظهري چي څلور جنته دي په قيل راوړی دی اشارة الى الضعف كما ذكرنا من قبل.

مُدْهَآمَّتٰنِۚ﴿۶۴﴾ فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِۚ﴿۶۵﴾

چي دا دوه جنته خالص شنه دي چي د ډېر شینوالي څخه مائل وتور والي ته دي.

**فائده:** په مدهامتان کي اشاره ودې ته ده چي غالب په دې دوو جنتو کي نباتات دي چي پر ځمکه پراته وُ لکه باد رنګ، کدو او هغه خوشبویه ګلان دي چي پر ځمکه پراته وي او په اولو دوو جنتو غالب درختي میوه داري دي او فواکه تا چي تفاوت یې ښکاره سي.

فِيْهِمَا عَيْنٰنِ نَضَّاخَتٰنِۚ﴿۶۶﴾ فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِۚ﴿۶۷﴾

په دې دوو جنتو کي دوې چینې سته چي اوبه لوړي پورته کوي چي په ښتو یې فواره بولي او په بعضي کورو کي د عیش پرستو خلګو لیدل کېږي.

**فائده:** په وصف کي یعني نضاختان کي هم دا دوه جنته تر اولو دوو جنتو یعني ولمن خاف مقام ربه جنتان کم دي ولي د هغه جنتو په باره کي خدای پاک داسي وویل فیهما عینان تجریان چي معنی یې داده چي تجریان من فوق العرش، او دلته یې داسي وویل نضاختان چي له کښتې څخه لوړي یې اوبه ځي، ابن ابی حاتم رح د البراء بن عاذب رض څخه روایت کوي هما ای عینان تجریان خیر دي تر عینان نضاختان.

فِيْهِمَا فَاكِهَةٌ وَّنَخْلٌ وَّرُمَّانٌۚ﴿۶۸﴾ فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِۚ﴿۶۹﴾

په دې دوو جنتو کي ده تفکه لپاره یعني نفس خوا پر پاکوي یعني غذاء یې مطلب نه وي لکه مالته، لیمبو، نارنج وغیرها، نو ځکه علماء وایي چي خورما او انار فاکهة نه دي او د نخل میوه چي خورما ده قوي غذاء ده او انار دوا ده.

**درویش وایي:** چي عطف هم ددې تقاضا کوي، ولي عطف تغایر غواړي د معطوف او معطوف علیه ځکه امام اعظم ابو حنیفه رحمه الله وایي چي که چا قسم واخستی چي فاکهه نه خورم او خورما یا انار یې وخوړی نه دی حانث او نور فقهاء وایي چي حانثېږي، یعني انار او خورما هم فاکهه دي.

**سوال:** چي انار او خورما هم فاکهه سي نو وروسته تر ذکر د فاکهة ددوی و ذکر ته ضرورت سته؟

**ځواب:** ددې وسوال ځواب دوی ورکوي چې تخصيص بالذکر يې تعميم بعد التخصيص دی اشعارًا علی کمال نفعها في التفکه لکه په قرآن شريف کې چې ذکر او عطف د جبرئيل او ميکائيل کړی دی بعد ذکر الملائکة.

**درويش وايي:** چې په مسئله کښې د حنث په خورک د خورما يا انار چې سړی قسم اخستی وي چې زه فاکهه نه خورم لکه نور فقهاء چې د امام اعظم ؒ ځخه مخالف دي دغه رنګه امام ابو يوسف ؒ او امام محمد ؒ هم ځني مخالف دي کذا في روح المعاني او روح البيان او مظهري چې درې سره حنفيان دي.

**درويش وايي:** چې خورما او انار د جنت بلکې ټولي مېوې د جنت لکه انګور، انځر، شفتالو وغيرها صرف نوم دی په حقيقت کې بل شيان دي، البغوي ؒ په خپل سند سره روايت کړی دی له ابن عباس ؓ ځخه چې درختنه د خورما تنه يې د زمرد إخضر ځخه ده او بلګونه يې د سرو زرو دي او سعف ددې (سعف د خورما له درختي ځخه لکه وربښم داسي راوځي) دا کالي د اهل جنت دي، پر دوی قطع کېږي يعني لکه خياط چې يو ټوکر پر يو سړي سکښوي، وثمره امثال القلال (لکه لوی ژيان يا لوی سولغې) اشد بياضًا دي تر شيدو او ډېر خواږه دي تر عسلو او مندکي نه لري، او نرم دي تر پيروي، واخرج ابن ابی الدنيا عن ابن عباس ؓ ان التمر من ثمر الجنة طولها اثنی عشر زراعًا او مندکي هم نه لري لکه ثمر د دنيا او پر يوه انار د جنت ډېر خلګ راټول وي خورک ځني کوي، مظهري، روح المعاني او روح البيان بادنی تفاوت في العبارات.

فِيهِنَّ خَيْرَٰتٌ حِسَانٌ ﴿٧٠﴾ فَبِأَيِّ ءَالَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٧١﴾

دا جمله بل صفت دی د جنتانو، د فيهن معنی داده في اماکنهم د دوی په کورو کې، قال البغوي ؒ عن الحسن عن ابيه ؒ عن ام سلمة ؓ قلت يا رسول الله ﷺ اخبرني عن قوله تعالی خيرات حسان؟ ده وويل حورات دي خيرات الاخلاق حسان الوجوه، رواه الطبراني.

حُورٌ مَّقْصُورَٰتٌ فِى ٱلْخِيَامِ ﴿٧٢﴾ فَبِأَيِّ ءَالَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٧٣﴾

**پوه سه:** چې ''حور'' بدل دی من خيرات جمع مؤنث يې حوراء ده او جمع مذکر

يې احور ده والمراد بيض يعني سپين بدنونه به يې وي كما اخرجه ابن المنذر وغيره من ابن عباسؓ او ام سلمةؓ هم عن رسول اللهﷺ او مظهري له ابن الاثير څخه نقل کړی دی چې حور شديد بياض العين (چې د سترګو سپين يې تک سپين وي) او تور ځايونه يې تک تور وي، د سترګو حدقه يې مستديره وي (يعني مع قليل من الطول) او بانو ګان د سترګو يې پورته ولاړ وي او شاخوا د بانو ګانو يې تک سپين وي.

**فائده:** داسي رنګ په انسانانو کي خو نسته استعارةً که ورته وويل سي امکان لري، په قاموس کي ورته ترجمه چې ابن الاثير کړې وه کړې يې ده، روح المعاني وايي چې حديث د ام سلمةؓ چې د رسول اللهﷺ څخه يې نقل کړی دی، نو له تفسير څخه د رسول اللهﷺ عدول نسي کېدای و بل تفسير ته (يعني لکه د ابن الاثير او قاموس او مظهري وغيرهم ته والله اعلم) او په بل ځای کي د قرآن عين راغلی دی ''مقصورات في الخيام'' پرده نشينه وي په خپلو خېمو کي.

**محاورة:** امرئة قصيرة او مقصورة يعني په حجاب کي ملازمه د خپل کور وي لا تطوف في الطرق لکه زمونږ د زمانې ښځې چې ټوله ورځ په بازارو کي ګرځي، البغويؒ يې داسي تفسير کړی دی قاصرات طرفهن على ازواجهن فلا يبغين بهم بدلاً (يعني سترګي يې پر خپلو مړو باندي چې د خپل مېړه ماسوی ته يې سترګي نه کېږي) وعن انسؓ چې رسول اللهﷺ وويل چې زه په شپه د معراج جنت ته ورغلم يو ځای په جنت کي چې البيدع يې باله د ملغلرو او دشنه زمرد خېمې ولاړې وې او هم د ياقوت احمر خېمې ولاړې وې، له خېمو څخه دا نداء وسوه السلام عليک يا رسول الله، قلت يا جبرئيل ما هذا النداء دا څرنګه نارې ماته په يا رسول الله سره وهل کېږي، جبرئيلؑ راته وويل هؤلاء المقصورات في الخيام يعني حورات دي چې اجازه يې له خدایﷻ څخه وغوښتل و تاته د سلام اچولو او خدایؑ هم اجازه ورکړه الى اخير الحديث، فقرء رسول اللهﷺ حور مقصورات في الخيام، وروى البغويؒ بسنده عن عبدالله بن قيس ان رسول اللهﷺ قال ان في الجنة خيمة من لوء لوء مجوف عرضها (٦٠) اميال في کل زاوية منها اهل (يعني د جنتي حوري) مايرون الآخرين يطوف عليهم المؤمنون، او په بخاري او مسلم کي ورته حديث راغلی دی.

**درویش وایي:** چي که ځه ټوله حالات د جنت او د هغه د مېوو او د حورو چي په صحيح احاديثو کي راغلي دي وڅېړم او تفصيلي بيان يې وکړم، تفسير ايوبي به نهايته دراز سي او بعض عوام مطالعه کوونکو ته به شکوک او شبهات پيدا سي، ولې د دوی تر عقلو لوړي خبري پکښي راځي، نو ښه به دا وي چي هغه څه چي په صحيح حديث سره ثابت دی چي د جنت په احوالو کي راغلی دی چي په جنت کي مالا عين رئت ولا اذن سمعت ولا خطر على قلب بشر اکتفاء وکړم.

لَمْ يَطْمِثْهُنَّ إِنْسٌ قَبْلَهُمْ وَلَا جَانٌّ ﴿٧٤﴾ فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٧٥﴾

چي نه وي مسه کړي دا حوري نه انسان د مخه تر جنتيانو او نه جان.

**فائده:** کناية عن الجماع.

**فائده:** ذکره المظهري نساء الدنيا يعني مايني د دنيا خير من حور عين لحديث اخرجه البيهقي عن ام سلمةؓ چي دا وايي ما و رسول اللهﷺ ته وويل نساء الدنيا افضل ام حور العين؟ قال نساء الدنيا افضل من حور العين کفضل الظهارة على البطانة لکه بالاوالی د سرېېره پوښ د تلتک يا نالی وغيرها، پر بطانه (يعني استر د دغو شيانو) قلت بم؟ په څه سبب نساء الدنيا افضل دي تر حور العين، قالؐ بصلوتهن وصيامهن البس الله على وجوههم (اى نساء الدنيا) قالت ام سلمةؓ المرئة يوه ښځه يو مېړه وکړي چي هغه مړ سي بل پسي وکړي الى الثلثة والاربعة في الدنيا بيا دا ښځه مړه سي فتدخل الجنة ويدخلون کلهم الجنة، ايضًا فمن يکون زوجها منهم؟ قالؐ چي دې ته اختيار ورکړل کېږي نو دا به مختاره کړي احسنهم خلقًا يعني في الدنيا زوجه ايا ن ام سلمةؓ وايي چي حسن الخلق يې ښه دی په دنيا او اخرت کي.

مُتَّكِئِينَ عَلَىٰ رَفْرَفٍ خُضْرٍ وَعَبْقَرِيٍّ حِسَانٍ ﴿٧٦﴾ فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٧٧﴾

تکې به يې وهلي وي "متکئين" حال دی لمن خاف مقام ربه جنتان حال کوونکو متکئين "رفرف" في القاموس الرفرف ثياب خضر.

**پوښتنه:** چي رفرف يا اسم جنس دی يا اسم جمع دی وعلى التقديرين يصح اتصافه بخضر او دا سوال نه وارديږي چي خضر خو مفرد دی نو څرنګه صحيح

اتصاف الرفرف به، وجه عدم الورود ان اسم الجنس واسم الجمع ايضًا مفرد فافهم. بعض اهل اللغة وايي چي رفرف هغه عالي ثياب دی چي پر چپر کېږ د خوب يې کښته وځړوي او اعلى قسم د فرش دی چي پر مخکه اوار وي او يا مزين بالبنتان دي، تاريخ وايي چي بساط د نوشيروان شپېته گزه په شپېته گزه کي ؤ چي دده په بنګله کي به اوارېدی ملغلري او جواهرات رنګ په رنګ پوري ځړېده آه. والرفرف الفراش الرقيق من الديباج.

**يوه سه:** چي تفسير د رفرف علي رضي الله عنه او ابن عباس رضي الله عنهما والضحاک رحمه الله په دي ايت په فضول د رجاعي ګانو چي پر فراش يې اوار کړي لپاره د خوب کړی دی. او عاصم الحواري رحمه الله وايي چي رفرف بالبنتانو ته وايي. او الجبائي رحمه الله وايي رفرف لوړو لوړو فرشو ته وايي. والى غير ذالک من التفاسير المذکورة في روح المعاني وروح البيان والمظهري والله اعلم بمراده في کتابه.

**يوه سه:** چي وعبقري حسان عطف دی پر رفرف، مراد د عبقري معنى د جنس ده ځکه توصيف په جمع سره چي حسان دی صحيح دی. لان اسم الجنس يشمل الکثير ايضًا، عرب دا ګمان لري چي عبقري منسوب دی و عبقر ته، چي هغه د يو ښار نوم دی د دوی په ګمان دېر جنيات پکښې دي نو هر يو غريب او نادر شی د هغه ته کوي، او قطرب وايي چي يا د عبقری لپاره د نسبت نه د بل هو بمنزلة کرسي وتخت ده، او په قاموس کي وايي عبقر بلد کثير الجن وقرية ثيابها في غاية الحسن، او په مفردات کي وايي چي عبقر موضع للجن ينسب اليه کل نادر من انسان وحيوان وثوب، او خليل نحوي وايي کل جليل نفيس فاخر من الرجال وغيرهم عند العرب عبقری.

تَبٰرَكَ اسْمُ رَبِّكَ ذِي الْجَلٰلِ وَالْاِكْرَامِ ۝

لوړ دی از روی رتبه نوم د رب ستا.

**فائده:** تبارک ماضي صيغه ده چي معنا يې تعالى ده چي خاوند دی (صفت د رب دی) او مراد د بزرګی د ذات اقدس او اکرام مراد انعام دی پر مخلوق بالذ چي اول اشاره ده و صفات جلاليه ؤ ته د ذات جليله کالخلق والملک او وحدانيت في

العبادة و الانتقام من اعدائه في الآخرة والاولى او اكرام اشارة وصفات جمالية ته د خدای ﷻ ده لکه رزق ورکول او صحت او عافیت ورکول دي و امت مسلمه ته في الدنيا والآخرة، والحاصل چي په دې ايت کي تنزيه او تقديس دی له تعالی، نو په دې کي تقرير او تاکيد دی لما ذکر في هذه السورة الكريمة من الآئه الفائضة على الآنام، وقدر ورد في الاحاديث تعالى اسمه الجليل الذي من جملته ما صدرت به السورة ای الرحمن چي د اسم مبارک تنبيه ده بافاضة الآلاء المذكورة في السورة او اشاره و دې ته هم ده چي خدای لوړ دی د ما لايليق بشانه تعالى من الامور التي من جملتها انکار او تکذيب د نعمتو د خدای ﷻ دی.

**تنبيه:** واذا كان اسمه تعالى باعتبار كونه دالاً على ذاته الاقدس كذالک فما ظنک بذاته الاقدس الاعلى، وقيل الاسم بمعنى الصفة دی (ای جنس الصفات الجلالية والجمالية کمامرت) والعلاقة بين الاسم والصفة داده صفت علامة دالة على الموصوف كما ان الاسم دال على المسمى، او بعض مفسران وايي چي د اسم لفظ زائد دی کما في قول القائل ثم اسم السلام عليكما.

**درويش وايي:** چي وهذا غير مقبول والقياس مع الفارق.

**مسئله:** په حديث صحيح کي راغلي دي چي عليه الصلوٰة والسلام چي سورة رحمن و اصحابو ته تلاوت کاوه خلګو صرف غوږ ورته نيولی وُ نو عليه الصلوٰة والسلام دوی ته وویل چي ما دا سورة جن ته هم ويلی دی او هغه احسن جواباً منکم، ولي هر ځای چي به ما دا ايت ووايه "فبای آلاء ربکما تکذبان" دوی به ويل ولا بشيئ من الائک تکذب ولک الحمد، نو موږ که څه هم پر ځای د دې ايت سره دعاء د جنياتو مکرر نه کړو ګناه نه ده لکن په اخيري ايت کي د فبای آلاء ربکما تکذبان هغه دعاء مندوب ده.

**درويش وايي:** چي بحمد الله وحسن توفيقه له تفسير څخه د سورة الرحمن پر لس بجې تخميناً د ورځي د چهار شنبې د محرم الحرام اخيري ورځ، سنه (۱۴۳۳) فارغ سوم، هم دا اوس تفسير د سورة الواقعة شروع کېږي ان شاء الله تعالى.

اللهم سهل على تفسير هذه السورة واختمه بالخير والعافية والصلوٰة والسلام على سيد البرية محمد وعلى آله وصحبه البررة.

سُوْرَةُ الْوَاقِعَةِ مَكِّيَّةٌ وَّهِيَ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ سِتٌّ وَّتِسْعُوْنَ اٰيَةً وَّثَلٰثُ رُكُوْعَاتٍ

اِذَا وَقَعَتِ الْوَاقِعَةُ ۝ لَيْسَ لِوَقْعَتِهَا كَاذِبَةٌ ۝

يعني چي پيدا سي نوې ورځ د قيامت، وجه التسمية بالواقعة لتحقق وقوعها البته كلمه د اذا منصوب ده په اذكر مقدر سره.

**پوه سه:** چي وقوع د يوم القيامة په نېز د نفخه ثانيه ده، اخرج ابو عبيد وابن الفريس والحارث بن ابى اسامة وابو يعلى وابن مردوية والبيهقي ؒ في شعب الايمان عن ابن مسعود ؓ قال سمعت رسول اللّٰه ﷺ يقول من قرء سورة الواقعة كل ليلة لم تصبه فاقة ابدًا (يعني الفقر والمسكنة) واخرج ابن عساكر عن ابن عباس ؓ نحوه مرفوعًا، واخرج ابن مردوية عن انس ؓ عن رسول اللّٰه ﷺ قال سورة الواقعة سورة فاقرؤها وعلموها اولادكم، واخرج الديلمي ؒ عن ابن مردوية ؒ مرفوعًا علموا نسائكم سورة الواقعة فانها سورة الغنٰى.

**پوه سه:** چي كلمه د لام په "لوقعتها" كي لپاره د توقيت ده، والمعنى نسته په وخت كي د وقوع د هيڅ نفس چي پر خداى عزوجل دي دروا غ ووايي يا په شريک بالمعبودية سره لكه مشركين د مكې يا په ولد او صاحبه (يعني مايني) لكه نصارىٰ چي وايي چي عيسىٰ ابن اللّٰه دى او مور مريم يې د خداى صاحبه ده العياذ باللّٰه، يا دا چي لايبعث اللّٰه الموتى لان كل نفس په دغه ورځ چي قيامت قائم سي مؤمنة صادقة مصدقة سره دد ې چي په د ې دنيا كي اكثر نفوس كاذبه مكذبه على اللّٰه وه پر د ې تقدير كاذبه اسم فاعل دى او دا هم احتمال سته چي لام دي لپاره د تعليل وي، فالمعنى ليس لاجل وقعتها او في حقها اخبار كاذبة بل كل ما ورد في شانها من الاخبار صادق حق لا ريب فيه، فاللام للتعليل والكاذبة مصدر دى كالعافية كذا في روح البيان، او دا معنى چي چا كړ ې ده چي په هغه ورځ خداى ؓ ته څوک دروا غ نه وايي غلطه ده، ولي چي كافران په ورځ د قيامت خداى ؓ ته وايي ربنا ما كنا مشركين، نو دا دروا غ نه دي.

خَافِضَةٌ رَّافِعَةٌ ۝

دا ورځ ذليلونکې او کښته کونکې ده لاعداء الله الذين استکبروا في الدنيا وعتوا عتوًا کثيرًا "رافعة" پورته کونکې ده لاولياء الله الذين تواضعوا في الدنيا لامر الله".

**پوه سه:** چې دا دوه صفتونه دي د واقعة بعد توصيفها بجملة يعني ليس آه.

**سوال:** خافض او رافع خو خدای عزوجل دی نو يوم ته يې ولې نسبت وکړی؟

**ځواب:** دا اسناد مجازدی په سبب د وقوع د خفض او رفع په دې کې.

إِذَا رُجَّتِ الْأَرْضُ رَجًّا ۝

چې وښوري مځکه په سخت حرکت سره حتی چې پر مځکه سربېره شيان که بناء وي دي که څه هم په سيخ او کانکريټ جوړي سوي وي يا غرونه وي.

**پوه سه:** چې اذا شرطيه نه دی بلکې ظرف دی خافضة او معطوف پر هغه چې رافعة دی يا بدل دی د اذا وقعت.

وَبُسَّتِ الْجِبَالُ بَسًّا ۝

معنی دا ده چې ټوک ټوک سي غرونه کما قال عطاء و مقاتل" يا معنی دا ده چې غرونه له ځايو څخه روان سي من قولهم بس الغنم اذا ساقها يعني مرعی ته کذا قال الکلبي والحسن وابن کيسان".

فَكَانَتْ هَبَاءً مُّنْبَثًّا ۝ وَكُنْتُمْ أَزْوَاجًا ثَلٰثَةً ۝

نو وګرځي غرونه لکه يو ګرز چې پر يو سوري د خوني د لمر شعاع راسي منبثًا ای متفرقًا، او تاسي به وګرځئ (يا امت محمد ﷺ لان الخطاب معهم) درې صنفه.

**سوال:** زوج خو جوت ته وايي په لغت کې لکه مېړه او مايننه، نو له درو څخه څرنګه درې جوته جوړيږي؟

**ځواب:** هر يو د درو چې د بل واخلي يا ذکر کړي جوت ګرځي، مثلاً نر چې يوازي وي فرد دی او دغه ښځه چې مېړه نه لري فرد ده چې مېړه و رضم کړه سو زوج سوه نو دواړه زوجين اثنين سوه وعلی هذا فقس.

**پوه سه:** چې له درې صنفو څخه دوی په جنت کې به وي او يوه په دوزخ کې.

فَأَصْحٰبُ الْمَيْمَنَةِ ۙ مَا أَصْحٰبُ الْمَيْمَنَةِ ۝

دا شروع په بیان کي د ازواج ثلثهٔ مع اشارة اجمالية الى احوالها قبل تفصيلها.

الاعراب: اصحاب الميمنة مبتداء ده كلمه د ما استفهاميه ده مبتداء ثاني ده او اصحاب الميمنة يې خبر دى، والجملة خبر ده مبتداء اولى دى چي اصحاب الميمنة وه.

**فائده:** بعض مفسرين وايي چي اصحاب الميمنة هغه دي چي پر راسته طرف جنت ته روان وي، او اصحاب المشئمة هغه كسان دي چي پر چپه طرف دوزخ ته روان وي او الضحاک ؒ وايي هم الذين يعطون كتبهم بايمانهم يعني چي عمل نامې په راسته لاس وركول كېږي و اصحاب المشئمة هغه كسان دي چي عمل نامې په چپه لاس وركول كېږي، او بعض مفسرين وايي چي اصحاب الميمنة هغه كسان دي چي پر راسته لاس د آدم ؑ وه، او اصحاب المشئمة هغه كسان دي چي پر چپه لاس د آدم ؑ وه اى حين اخذ الميثاق بقوله الست بربكم؟ قالوا بلى.

وَأَصْحٰبُ الْمَشْـَٔمَةِ ۙ مَا أَصْحٰبُ الْمَشْـَٔمَةِ ۝

د دې اعراب هم هغسي دى لكه د اصحاب الميمنة آه.

**درويش وايي:** چي كلمه د ما كه څه هم د سوال له ماهيت څخه د شي په اصطلاح د اهل المنطق كما يقال ما الانسان اى ما ماهية الانسان فيقال في جوابه الحيوان الناطق لكن په عرف عام كي لپاره د استفهام عن صفة الشيئ كما يقال ما زيد فيقال في جوابه عالم مثلاً دلته استفهام جاري پر عرف دى، يعني ما صفت اصحاب الميمنة فيقال في جواب فخيم عظيم ويقال ما صفت اصحاب المشئمة فيقال في جوابه فضيع شنيع، واصل المقصود تعجيب الناس يعني په تعجب كي اچول د سامعينو كانه قيل اصحاب الميمنة في غاية حسن الحال واصحاب المشئمة في غاية سوء الحال.

وَالسّٰبِقُوْنَ السّٰبِقُوْنَ ۝

**بوه سه:** چي دا دريم قسم دى د ازواج ثلثه.

**پوښتنه:** دا قسم او صنف خو اعلى او اشرف د درو قسمو نو ولي تر هغه نورو دوو وروسته راوړى؟

**ځواب**: نعم لکن وروسته راوړه یې په سبب ددې دی چي دوی او احوال سره متصل سي کما سیأتي.

**درویش وايي**: د السابقون څخه مراد څوک دي په دې کي اختلاف دی.

(۱) هم الذین سبقوا الی الایمان بیله درنګه او سبقت یې و اسلام او طاعت ته کړی وي او مراتبو ته د قرب الی الله عزوجل وهم الانبیاء علیهم السلام، ولي چي دوی مقدم انفاس شریفه دي چي و ایمان او طاعت ته یې لبیک ویلی دی والامم تبع لهم، او هغه کسان هم له امتو څخه د دوی چي پر اکمله وجه یې متابعت د دوی کړی وي او کمالات د نبوت یې بالتبعیة یا په وراثت تر لاس کړي وي وهم الصحابة کلهم مع تفاوت درجاتهم رضی الله عنهم، وبعض التابعین لهم بالاحسان.

(۲) وقال ابن عباس رضی الله عنهما السابقون الی الهجرة هم السابقون في الآخرة یعني في دخول الجنة.

(۳) او ابن سیرین رحمه الله وایي هم الذین صلوا الی القبلتین من المهاجرین والانصار رضی الله عنهم، والمراد بالقبلتین الکعبة المبارکة وبیت المقدس.

(۴) ربیع بن انس رضی الله عنه وایي السابقون الی اجابة الرسول في الدنیا هم السابقون الی الجنة کابی بکر الصدیق وعلي رضی الله عنهما، ولهذا قال علی..... بیت:

سبقتکم الی الاسلام طرًا ای جمیعًا غلامًا ما بلغت اوان حلمی (ای البلوغ)

(۵) وعن علي رضی الله عنه هم السابقون الی الصلوة الخمس.

(۶) ابو نعیم والدیلمي رحمهما الله عن ابن عباس رضی الله عنهما چي دا هغه کسان دي چي اول مسجد ته ورځي او اخیر ته ځني وځي.

(۷) له عبادة بن الصامت رضی الله عنه څخه روایت دی هم السابقون الی المساجد والخروج في سبیل الله ای الغزوات.

(۸) ابن جبیر رحمه الله وایي هم السابقون الی التوبة واعمال البر.

(۹) وقال کعب بن مالک هم اهل القرآن بالحفظ والعمل به، وفي البحر قال وفي الحدیث سئل رسول الله ﷺ فقال هم الذین اذا عطوا الحق قبلوه، او چي سوال د حق ځني وسي بذلوه حکموا الناس کحکمهم لانفسهم.

(۱۰) وقیل السابق هو الذي سبق الی الطاعات في حداثة السن حتی خرج من

الدنیا، الی غیر ذالک روح المعاني وایي وما ذکر في اکثر الاقوال من باب التمثیل پر هر تقدیر السابقون السابقون مبتداء او خبر دي.

**درويش وايي:** چي چونکه مبتداء او خبر دلته سره یو دي او حمل يې اولی چي بدهي دی نو به توهم ددې کېدی چي په راوړلو کي يې فائده څه ده؟ نو د دفع ددغه توهم لپاره دا لس قولونه چي تاسي واورېده مبتداء او خبر يې مقید کړه تاچي حمل له اولیت څخه ووځي او مقید سي والله اعلم.

**درويش وايي:** چي په ایت مذکوره کي خو تأویل او تقید په مبتداء او خبر دواړو کي وکړی کمامر مفصلاً، او داسي مقولې په عربو کي سته چي ظاهرًا حمل اولی بدهي وي لکن یوازي په خبر کي تأویل کوي کما في قول الشاعر:

انا ابو النجم زه ابو النجوم یم تأویل یوازي په خبر کي کوي یعني انا الشاعر المشهور المعروف، وشعری شعري یعني شعري المشهور بالبلاغة والفصاحة، ورته مثالونه په پښتو کي هم سته لکه یو عالم چي ووایي زه خو زه یم، ای چي تاسي مي پېژنئ چي علامه یم، یا یو سخي سړی ووايي زه خو زه یم ای المشهور بالسخاوة وامثال ذالک.

أُولَٰئِكَ الْمُقَرَّبُونَ ﴿١١﴾ فِي جَنَّاتِ النَّعِيمِ ﴿١٢﴾

دغه کسان چي دي مقرب بندګان و خدای ته دي، دا جمله مستأنفه ده في جواب ماحالهم "في جنات النعيم" متعلق دی په مقربون پوري، اویا متعلق دی په محذوف پوري چي حال دی له ضمیر څخه المقربون ای کائنین في جنات النعیم.

ثُلَّةٌ مِّنَ الْأَوَّلِينَ ﴿١٣﴾

خبر دی د مبتداء محذوفي ای هم ثلة یو جماعت عظیمه ده من الصدر الاولی من هذه الامة چي صحابه کرام ﷺ او تابعین او تبع تابعین رحمهم الله دي کما ورد في الحدیث النبوي "خیر امتي قرني (زما قرن چي صحابه دي) ثم الذین یلونهم (چي په پوري متصل وي یعني تابعین) ثم الذین یلونهم (چي تبع تابعین دي) ثم ان بعدهم قوم یشهدون ولا یستشهدون (چي شهادت به اداء کوي او دوی به چا نه وي شاهدان کړي، یعني د درواغو شاهدي به اداء کوي) ویخونون ولا یأتمنون وینذرون ولا یفضون ویظهر فیهم السمن، کذا روی مسلم عن ابی هریره رض (او



Scanned by CamScanner

خیانت به کوي په معاملاتو کي او امانت داري نه لري او نذر کوي وفا نه کوي او چاغ والی د بدن به په دوی کي وي.

وَقَلِيلٌ مِّنَ الْآخِرِينَ ﴿۱۴﴾

او لږ کسان به وي د وروسته خلکو څخه یعني په امت کي د علیه الصلوة والسلام، یعني امت د علیه الصلوة والسلام به په مرور د ازمنة متطاولة څخه و طلب د دنیا بالحرام والحلال وحب الشهوات وقلة طاعت الله ورسوله ته اکثر د دوی به مائل سي. او یو لږ دله به پر شریعت غراء مستقیم پاته وي او تناؤ د قال الله و قال الرسول به یې په غاړه کي اچولی وي د اوامرو د خدای او د رسول به اطاعت کوي.

عَلَىٰ سُرُرٍ مَّوْضُونَةٍ ﴿۱۵﴾

دا بل خبر دی للضمیر المحذوف ای هم علی سرر جمع د سریر ده، چارپایي یا چپرکټ یا پلنګ یا تخت.

**پوه سه:** چي وضن محکم جوړول د زغري دی (چي په پخوا زمانې کي جنګي قمیصؤ د اوسپني د الغو څخه به یې جوړ کړی او په وخت کي د جنګ به یې اغوستی تاچي توره په اسانی سره بدن ته د لابس الذرع ته ونه رسېږي) بیا لفظ مستعار سو و هر محکم شي ته، له ابن عباس څخه روایت دی په تفسیر ددې ایت موضونة بالذهب، او ډېر مفسرین وایي موصولة منسوجة بالذهب (وصل سوي به وي او دل سوي به وي په سرو زرو سره) والجواهرات، او الضحاک یې ترجمه په بالښتانو سره کوي چي په توله اطاق کي په صف پراته وي لکه په موجوده زمانې کي د عربستان په مهمان خانو کي.

مُّتَّكِئِينَ عَلَيْهَا مُتَقَابِلِينَ ﴿۱۶﴾

دوی به تکیه کړې وي او څنګ به یې اچولی وي پر هغو سرورو، او مخ په مخ به سره ناست وي، یعني یو د بل به یې سره څټ نه وي، دا کنایه ده د کمال محبت څخه د دوی یو د بل سره که چېري ضرورت پیدا سي چارپایي به ګرځي تاچي بیرته سره مخامخ سي، په عربي ژباړه دې ته حسن العشیرة وتهذیب الاخلاق وصفاء المودة والمحبة وایي.

يَطُوفُ عَلَيْهِمْ وِلْدَانٌ مُّخَلَّدُونَ ﴿١٧﴾

او طواف به کوي يعني شاوخوا به ګرځي لپاره د خدمت هلکان يعني چي کبير السن نه وي، بعض مفسرين وايي چي په قيامت کي خداى پيدا کوي لپاره د خدمت د جنتيانو، او بعض مفسران وايي چي دا غلمان چي دي اولاد د اهل دنيا دي لم يکن لهم حسنات فيثابون عليها ولاسيئات فيعاقبون عليها فجعلوهم لخدمة اهل الجنة، دا روايت د علي رضي الله عنه والحسن البصري څخه دی.

**درويش وايي**: چي د ولدان په باره کي عظيم اختلاف دی او احاديث هم پکښي متعارض دي فارجع الى روح المعاني وروح البيان، نو د فقير په نيز ډېره زيبا خبره داده چي و الله اعلم ووايي، په تفسير کشف الاسرار کي وايي الاحاديث متعارضة في هذه المسئلة وكذالك مذهب المجتهدين، والمسئلة ظنية والعلم عند الله تعالى وهو عزوجل اعلم، انتهى.

**درويش وايي**: چي نقل د احاديثو او مذاهبو و مطالعه کونکو ته د تفسير ايوبي سخت تشويش پيدا کوي، له دې سببه فقير له نقل څخه ډډه وکړه.

"مخلدون" يعني همېشه به وي دا ولدان چي به مري نه به زړېږي او نه به يې هيڅ تغير په الوانو کي راځي ويبقون ابدا على شكل الولدان، اخرج ابن ابى الدنيا عن انس رضي الله عنه مرفوعا ان اسفل اهل الجنة (اى ادناهم) اجمعين من يقوم على رأسه عشرة آلاف خادم، او په روايت کي د ابو هريره رضي الله عنه خمس آلاف خادم، ليس منهم خادم الا ومعه ظرف ليس مع صاحبه والله اعلم.

بِأَكْوَابٍ وَأَبَارِيقَ وَكَأْسٍ مِّن مَّعِينٍ ﴿١٨﴾

**پوهه**: چي جار او مجرور سره د معطوفاتو متعلق دي په يطوف پورې، او اكواب جمع د کوب ده هغه د ښېښګ لوښی دی چي د هر شي څخه جوړ وي چي ګردی، خوله يې وي نه چوښکه لري او نه لاستی چي په پښتو يې آب خوری بولي دا تر ټولو لوښو ښه ده په جنت کي بلکي په دنيا کي هم ډېر قشنګ لوښی دی ولي پر هر ځای چي يې سړی خوله کښېږدي او به ځني څښلای سي "واباريق" جمع د ابريق ده، هغه لوښي ته وايي چي فقط چوښکه لري، سميت اباريق ولي چي

برېښني رنګ د هغه لوښي په سبب د صفا والي "وكأس" او هغه کټوريان چي شراب پکښې وي، که شراب نه وه پکښې كأس يې نه بولي "من معين" د جاري ابدًا لبنتي څخه د شرابو.

لَا يُصَدَّعُوْنَ عَنْهَا وَلَا يُنْزِفُوْنَ ⑲

پر سريې نه درد کېږي له څښلو څخه د هغو شرابو، لکه د دنيا شراب چي په اول وخت کي ډېر د سر درد لري، دا جمله سره د معطوف عليها صفت ده د كأس چي مؤنث سماعي دی "ولا ينزفون" په قاموس کي وايي نزف ذهب عقله يا سكر منه.

**فائده:** قراء د کوفې دا عبارت په کسره سره د زاء معجمه وايي من باب الافعال، نو معنی يې داده چي شراب نه نېستي کېږي بلکې همېشه به جاري وي، او نور قراء يې په فتح د زاء وايي، نو معنی يې هغه ده چي مورد ذکر کړه چي ذهب عقله وسكر فافهم.

وَفَاكِهَةٍ مِّمَّا يَتَخَيَّرُوْنَ ⑳

او مېوې د جنت د درختو به خوري چي د دوی خوښي وي يعني اشتهاء يې ورته کېږي.

**تنبيه:** ټولو مېوو ته د جنت يې فاكهة وويل له دې سببه چي غرض په ټولو مېوو کي د جنت تفكه ده لا الغذاء لعدم الحاجة الى الغذاء لاهل الجنة.

وَلَحْمِ طَيْرٍ مِّمَّا يَشْتَهُوْنَ ㉑

او غوښي د مرغه چي د دوی اشتهاء ورته کېږي، البغوي" وايي چي د جنتي په زړه کي چي د يو مرغه غوښي ور وګرځي يا د کرک يا د تارو وامثال ذالک چي ده په دنيا کي خوړلي وې، نو هغه غوښي ورته پخې حاضري سي كما يشتهى، حديث نقل کړی دی ابن ابی الدنيا او البزار والبيهقي له ابن مسعود څخه ده وويل قال رسول اللهﷺ انک تنظر الى الطير في الجنة نو ستا د دغه مرغه غوښو ته شوق وسي نو ته به يې و وينې پوخ بريان په غورو کي بين يديک، تفسير حسيني ميگويد وآن آن بود که مؤمنان بر خوان نشسته باشند، چيزی ميخورد کدام مرغ مي آيد ودر پيش ايشان بر شاخ طوبى نشيند وبه قدرت الله جلت قدرته بگويد که من

آنم که هیچ چشمه نیست در بهشت که من ازان نه چشیده ام و هیچ درختي نیست که من از میوه آن نخورده ام گوشت من بهترین گوشتها است پس در بهشتی شوق خوردن گوشت او پیدا شود مرغ ازان شاخ طوبی بر گردد پر سر خوان بهشتیان قسمت شود، یکی پخته گوشت ویکی بریان گوشت ویکی قدید یعني گوشت خشک پس بهشتی چنان خواهد بخورد پس بقدرت الله آن مرغ زنده شود و بپرد، هناد د مغیث بن سوید ؒ څخه روایت کړی دی قال طوبی شجرة (یوه درخته ده) في الجنة حتی چي د جنت په هر سرای کي دده یو ښاخ له ښاخو څخه سته چي په ښاخ کي یې رنګارنګ میوې سته پر دې هر ښاخ باندي ناست وي یو مرغه لکه مایه او ښی چي د جنتي و غوښو ته اشتهاء وسي اشاره ورته وکړي فیقع علی خوانه فیأکل من احد جانبیه سواء ومن الآخر قدید (له یو طرفه څخه تازه په غوړو کي پخ سوی) او د بل طرفه لکه د لاندي غوښي چي وخوري، بیرته دا اول مرغه سي والوزي.

**پوښتنه:** ایوبي ته بېخي نادره نه کوې؟

**ځواب:** ما د ځانه دا خبره نه ده کړې بلکې سند مې ورته ذکر کړی، او که تاسي تر دې لا نادره خبره غواړئ نو تفسیر مظهري، روح البیان او روح المعاني مطالعه کړئ چي په صحیح سند و سره به زما تر خبري نادره درته وکړي.

## وَحُورٌ عِينٌ ﴿٢٢﴾

**یوه سه:** چي حور جمع د حوراء ده او عین جمع د عیناء ده.

**فائده:** حور مرفوع چي مبتداء ده محذوف الخبر ای فیها حور عین او لهم حور عین کذا قال الاخفش ؒ یا معطوف دی علی ولدان ای یطوف علیهم حور عین.

**سوال:** د مخه ذکر سوه چي ولدان خو طواف پر جنتیانو کوي او طواف خو له شان سره د حوراتو مناسب نه دی لانهن مقصورات في الخیام؟

**ځواب:** امکان لري چي بعض حورات مقصورات في الخیام نه وي او محذرات دي نه وي بلکې خدم د هغو حورو دي چي مقصورات في الخیام وي فلا ینافي طوافهن ولا ینکر ذالک علیهن او یا طواف د دوی دی په داخل کي د خیامو وي وهو لاینافي طوافهن ولاینکر ذالک علیهن او یا طواف د دوی دي په داخل کي د خیامو وي وهو لاینافي کونهن محذورات ومقصورات في الخیام،

مجاهدؒ وایي چې د حور معنی داده چې له ډېره حسنه سترګې پر برېښي او ماغزه د پنډيو يې تر جامو لاندې معلومېږي، او د عين معنی داده چې د سترګو توريې خالص نور وي او غټې سترګې يې په طول کې وي وهذا من احسن صفات العين.

كَأَمْثَالِ اللُّؤْلُؤِ الْمَكْنُونِ ﴿۲۳﴾

د ام سلمةؓ ئخه البيهقي داسې روايت کړی دی قالت يا رسول الله اخبرني عن قوله تعالى كامثال آه قال رسول اللهﷺ صفائهن كصفاء الدرر في الاصداف.

**پوه سه:** چې صدف د يو حيوان نوم دی په درياب کې چې دا اصداف د پسرلي په مياشتو کې ټوله د اوبو پر سر راسي او خولې يې باران ته نيولې وي، د بعض اصدافو په خوله کې چې يو ځک باران وسي لکه د کيشف داسې کاسې لري چې دوی يې په خپل اختيار خلاصوي او بندوي، هغه صدف چې يو ځاځکی باران يې په خوله کې وسو کاسه بندي کړي د درياب پای ته ولاړ سي په قدرت د قادر متعال، د غه ځاځکی د باران د دې حيوان په نس کې کرار کرار ملغلره کېږي چې مقدار يې پوره سو حيوان مړ سي او هغه ملغلره ټوله صدف ډک کړي چې دې ملغلري ته دريکتا وايي او دريتيمه هم ورته وايي او دريکدانه هم ورته وايي چې لوی قيمت لري د بادشاهانو ښځي يې د سر په تاج کې نصب کوي، دا ملغلري بيا اوباز راباسي، وهكذا چې پر دوه ځاځکي کاسې بندي کړي دوې ملغلري پيدا کېږي لکن د دريتيمه قيمت کم وعلى هذا درې ځاځکي څلور ځاځکي وهلم جرا.

مصرع:...... تا صدف قانع نه شد پر دُر نه شد

**درويش وايي:** وهذا البيان لا بد منه لفهم الآية والحديث.

**پوه سه:** چې كامثال اللؤ لوؤ صفت بعد صفت دی حورو ته د جنت "المكنون" اى المخزون في الصدف لايمسه ايدي الناس. البغويؒ وايي چې يو وخت په جنت کې يوه رڼا پيدا سي جنتيان وايي چې رڼا د غابنو او د وريو د حوري وه چې وې خندل في حضور زوجها :- گفته اند : مشت نمونه خروار است.

جَزَاءً بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿۲۴﴾

دا جزاء او ثواب دی د هغو صالح عملو چې دوی په دنيا کې کوله، هل جزاء الاحسان الا الاحسان.

**پوه سه:** چي جزاءً منصوب دی بناء پر دې دی چي مفعول مطلق د فعل محذوف دی ای جزی جزاء یا منصوب دی مفعول له دی یعني یفعل بهم ذالک لاجل الجزاء لاعمالهم في الدنيا.

لَا يَسْمَعُونَ فِيهَا لَغْوًا وَّلَا تَأْثِيمًا ﴿۲۵﴾

نه اوري اهل جنت په جنت کي باطلي خبري، وهذا هو المروي عن ابن عباس رض بروایة البيهقي، او روح المعاني وايي چي لغو هغه خبري دي چي د اعتبار وړي نه وي او بېله فکره د سړي څخه صادرېږي فيجري مجرى اللغا وهو صوت العصافير (د چوغکو اوازونه) وغيرها من الطيور و قد يسمى كل كلام قبيح لغواً. وفي القاموس اللغو واللغاء بېکاره خبرو ته وايي "ولا تأثيمًا" واخرج البيهقي عن ابن عباس رض وهناد عن الضحاک انه الكذب، او روح المعاني او مظهري او روح البيان وايي ای ولا نسبة الى الاثم ای لايقال لهم اثمم (ګناه ګار سوي) وبسئ ما صنعتم (او بد کار دي وکړی)

اِلَّا قِيلًا سَلٰمًا سَلٰمًا ﴿۲۶﴾

"الا" استثناء منقطع ده ولي چي مستثنى په مستثنى منه کي چي لغو دی او تأثيم داخله نه دي "قيلاً" ای قولاً "سلامًا" قال الزجاج رح هو صفت لقيلاً بتأويله بالمشتق ای سالمًا سالمًا، وهذا ای التکرار يدل على فشوا السلام فيما بينهم، او بعض مفسرين وايي چي دا سلامًا سلامًا د ملائکو دخوا و جنتیانو ته ويل کېږي ومعناه سلمتم من عذاب الاخرة، نو پر دې تقدير په معنا د اخبار دی او پر اول تقدير په معنی د دعاء دی بالسلامة.

وَاَصْحٰبُ الْيَمِيْنِ ۙ مَآ اَصْحٰبُ الْيَمِيْنِ ﴿۲۷﴾

هم اصحاب القلوب الصافية والنفوس المطمئنة اولياء الله المتقون. ويدخل فيهم العصات من المؤمنين اما بمغفرة ذنوبهم بمحض فضل الله الغفور الرحيم. واما بشفاعة الانبياء والصالحين واما تعذيبهم بالنار تاچي له ګناه څخه پاک سي هغه هم په صالحين متقينو پوري ملحق کېږي.

**فائده:** الاستفهام لتعظيم شانهم عند الله، دا جمله معترضه ده لپاره د تعظيم.

**سوال:** د مخه په اجمال کې خو اصحاب الميمنة راغلي وُ او دلته اصحاب اليمين وويل سو؟

**ځواب:** دا تفنن في العبارة دی مصداق يې يو دی.

فِيْ سِدْرٍ مَّخْضُوْدٍ ۙ وَّطَلْحٍ مَّنْضُوْدٍ ۙ

خبر د مبتداء دی ای هم في سدر مخضود او خبر بعد الخبر دی د مخضود معنی داده چي ځوزان يې ځني قطع سوي وي يا معنی داده چي ښاخونه يې راکاږه وي من کثرة الحمل، في القاموس خضد الشجر ای قطع شوکه، ويقال خضد الغصن (ښاخ راکوږ سو) ای ثناه وهو رطب چي مېوه لنده وي نو په سبب د لوندوالي ښاخ يې کوږ سي، اخرج البيهقي عن ابی امامةؓ قد سئال اعرابي يا رسول اللهﷺ لقد ذکر الله في القرآن شجرة يؤذی صاحبها فقال رسول اللهﷺ وماهي قال السدر د بېري درخته ده فان لها شوګا ځوزان لري، فقال رسول اللهﷺ يقول الله تعالی في سدر مخضود خدای عزوجل ځوزان ځني قطع کوي ويحصل مکان کل شوکة ثمرة، الحديث، واخرج البيهقي عن مجاهدؒ في قوله تعالی مخضود قال الموقر حملاً چي وابنکي يې ډېر وي وطلح منفود الموز المتراکم يو پر بل پراته وي لکه د کېلې وابنکي، او د السديؒ څخه روايت دی وهو شجر يشبه طلح الدنيا لکن ثمرها احلی من العسل، وعن مجاهدؒ کان لاهل الطائف واد معجب فيه الطلح والسدر فقالوا ليت لنا واد في الجنة مثل هذه الوادي فنزلت هذه الآية، کريمه: وفيها ما تشتهی الانفس وتلذ الاعين، وفصل طلح الجنة وسدرها علی ما في الدنيا کفضل سائر ما في الجنة علی ما في الدنيا.

**درويش وايي:** ومن اعاجيب التفاسير چي طلح منفود ام غيلان ده چي هغه ډېر ګلان کوي پر نظم برابر چي ښه بوی يې ځي چي عرب يې په باغو او مځکو کي ښنه کوي لپاره د نزهت او زينت او طيب الرائحة لپاره وان کان لايؤ کل منه.

مصرع...... ببين تفاوت راه از کجا بکجا.

وَّظِلٍّ مَّمْدُوْدٍ ۙ

او په سايه کي دي چي غوړېدلي دي پر تولـه مځکه د جنت لکه سايه چي

غوړېدلې وي پر تو له مخکه په دنيا کي بعد الصبح قبل طلوع الشمس، او عرب هر شی چي نه قطع کېږي هغه ته ممدود وايي، بخاري او مسلم له ابي هريرةؓ څخه روايت کړی دی عن رسول اللهﷺ چي په جنت کي يوه درخته سته چي سپور سړی يې په سايه کي روان وي سل کاله نه يې سي قطع کولای اقرئوا ان شئتم وظل ممدود يعني د ظل ممدود څخه دغه ظل مراد ده، په بل روايت کي يې داهم ورزياته کړې ده چي بلکونه د هغې درختي خوشبويي د اهل جنت ده، وعن ابن عباسؓ شجرة في الجنة على ساق (پر خپله تنه) چي اهل جنت ورځي او هورې لاندي تر درختي مجلس سره کوي. د بعض خلکو ورپياد سي او اشتهاء يې وسي چي کاشکي موږ هغه لهو يعني سروز اوربدلی وای چي په دنيا کي به مو اورېدی، نو خدای پاک يو باد پيدا کړي له جنت څخه درختهٔ وښوروي بکل لهو في الدنيا.

**يوه سه:** چي ديار د عربو ګرم دي، نو سايه د دوی لپاره استراحت دی، نو فيحتمل ان يكون المراد بالظل الممدود دي غاية الاستراحة وي كما ورد في الحديث الصحيح السلطان (اى العادل) ظل الله في ارضه يأوى اليه كل مظلوم اى يستريح عند عدله.

وَمَآءٍ مَّسْكُوبٍ ۝ وَفَاكِهَةٍ كَثِيرَةٍ ۝ لَّا مَقْطُوعَةٍ وَلَا مَمْنُوعَةٍ ۝ وَفُرُشٍ مَّرْفُوعَةٍ ۝

او اوبه وي چي جاري وي همېشه بېله لښتيو (يعني خرق العادة) او مېوې وي په جنت کي چي كثيرة الاجناس والانواع وي.

قال البغويؒ قال ابن عباسؓ چي نه قطع کېږي چي څوک يې پرې کوي ولې په ځای کي د هغې بله مېوه پيدا کېږي، ولا تمنع من احد اراد اخذها، او ددې تائيد کوي هغه حديث د ثوبانؓ انه سمع رسول اللهﷺ يقول لا ينزع رجل من اهل الجنة من ثمرها الا اعيد مكانها مثلها، رواه البزار والطبراني، او بعض مفسرين وايي لا مقطوعة بمرور الزمان لکه اکثره مېوې د دنيا چي ژمی راسي قطع سي ولا ممنوعة بالاثمان لکه په دنيا کي چي ثمن څوک ور نه کړي د کاندار د مېوې مېوه نه ور کوي.

**يوه سه:** چي "فرش" مع د فراش ده لکه سرج جمع د سراج ده، فراش هغه شي ته وايي چي سړی يې هواروي د ناستي يا د پروتي لپاره، او د مرفوعه معنی يا داده

چي پر چير كتهانو سر بېره اوار وي فالرفع حسي او يا معنى داده كما في حديث اخرجه احمد و الترمذي و حسنه (ترمذي حديث حسن بللى دى) والنسائي و جماعة من المحدثين عن ابى سعيد الخدري رضي الله عنه عن النبي ﷺ انه قال ارتفاعها كما بين السماء والارض او د اسمان او مځكي تر منځ لاره او مسافة دى د پنځه سوه كالو.

**سوال:** دومره لوړ فراش ته جنتيان څرنګه ورپورته كېږي يا څرنګه راكښته كېږي؟

**ځواب:** روح المعاني ددې سوال په جواب كي وايي ولا تستبعد ذالک من حيث العروج والنزول ونحوهما فالعالم عالم آخر وراء طور عقلک انتهى.

**درويش وايي:** چي په دنيا كي ددې مثل في الجملة موجود دى ولي بعض بلډنګان په عربستان يا په اماراتو كي يا په نورو ممالكو كي د كفارو ډېر جګ بلډنګان سته د سل منزله څخه لوړ الى غير ذالک هر څو مره چي جګ د پايه څخه تر اعلى منزل په لفټ كي په دوو يا درو دقيقو كي سړى پورته كېداى سي، نو چي صنعت د انسانانو ودې اندازې ته ورسېدى فلا استبعاد في صنع البارى جلت قدرته، او يا معنى د مرفوعة داده چي دا فراش عاليه القدر دي فارتفاعها معنوي بمعنى شرفها، او ابو عبيدة رحمه الله وايي چي مراد له فرش څخه ښځي د جنتيانو دي، ولي په عربي ژبه كي فراش كنايه له ښځو څخه راغلې ده لكه لباس چي هم كنايه له دوى څخه راغلې ده في قوله تعالى هن لباس لكم وانتم لباس لهن، او كښت هم كنايه له ښځو څخه راغلې ده في قوله تعالى فأتوا حرثكم انى شئتم اى من حيث الكيفية لا من حيث المحل يعني الدبر، د رفع معنى پر دې تقدير رفع القدر والمنزلة في الحسن والجمال والافعال وغير ذالک.

**درويش وايي:** چي پر دې تقدير ارجاع د ضمير ده.

إِنَّآ أَنشَأْنَٰهُنَّ إِنشَآءً ۝

آسانه سو (ولي چي ضمير خو غالبًا و مذكور مقدم ته راجع كېږي، مقدم خو فراش ذكر سوى دى فافهم ولا يناسب العود الى الفراش الا بهذا المعنى يعني چي له فراش څخه مراد نساء سي)

**سوال:** په عبارت كي دي صنعت استخدام وي يعني په لفظ ظاهره د فرش هغه د مخني معنى مراد وي او په ضمير سره د هن دي حوري او ښځي مراد وي؟

**ځواب**: استخدام ههنا لايفهمه كافة الناس فهو بعيد جدًا او پر تقدير د هغه چي د فرش څخه فرش ظاهره مراد سي ضمير د هن راجع دی و ښځو ته كه څه د مخه يې ذكر نه دی راغلی لكن له سياق څخه فهم كول كېږي كانه قيل و فرش مرفوعة ای في القدر واعلی قدر الفرش ان يكون عليه مع اهل الجنة نسائهم، او حور العين فتدبر غايته، والمراد بالانشاء خلق جديد، ابتداء من غير ولادة كالحور العين او اعادةً كنساء الدنيا.

**فَجَعَلْنٰهُنَّ اَبْكَارًا ۝ عُرُبًا اَتْرَابًا ۝**

موږ دوی ګرځوو باكرات چي د بكارت پردې به يې پر ځای وي، هر وار چي مېړه وطي وركړي دوی به عذاري او باكرات وي من غير وجع چي په وطي كي درد نه وي لكه باكرات د دنيا چي په اوله جماع كي درد وررسره وي كما يدل عليه التجربة، اخرج البيهقي وابن المنذر عن الحسن" قال قال رسول اللهﷺ لاتدخل الجنة عجوز فبكت عجوز، فقال رسول اللهﷺ انها ليست بعجوز (په ورځ د قيامت يعني چي جنت ته يې خدای ﷻ وروليږي سپين سري به په انتهاء شابة كي ورولي ان شاء الله تعالى، يقول الله تبارك وتعالی: انا انشاء عن انشاء فجعلناهن ابكارًا "عربًا" جمع د عروب ده يعني معشوقې وي د مړو او پر مړو به ډېري ګراني وي، اخرج ابن ابی حاتم عن جعفر بن محمد عن ابيه عن جده قال قال رسول اللهﷺ كلامهن عربي، والله اعلم "اترابًا" جمع د ترب ده بالكسر ای مستويات في السن ښځي به يې (۳۳) كلني وي او مړونه به يې هم (۳۳) كلن وي او قد و قامت به يې شپېته (٦٠) وي او اووه (۷) ګزه به يې بر وي علی قد ابيهم آدمؑ شباب جرد پر مخانو د مړو به يې ږيري نه وي البته د باڼوګانو او د ورځو وېښتان به يې وي لانه زينة للوجه، مكحولون سترګي به يې بې رنجو لكه په رنجو توري وي، هغه ډېر ښائسته جنتي به لكه د ځوارلسم سپوږمۍ برېښي او اخيري به يې لكه روښانه ستوري په اسمان كي، د نر مخ به د دې په مخ كي ليدل كېږي او د دې مخ به د مېړه په مخ كي معلومېږي، ناره نه توكي او نه ګرنګ پاكوي وما فوق ذالک هو ابعد.

**مسئله**: در تفسير كه بزبان فارسی است آورده كه جمله زنان كه بجنت آرند بدين سن سازند، او زن سال خورده هم بدين سن (۳۳) گرداند، واگر در دنيا شوهر

نداشته باشد جوان باشد خواه سال خورده ببعض اهل بهشت دهند و اگر در دنیا شوهر داشت اما شوهرش جهنمی باشد کامرئة فرعون، اورا بیکی از بهشتیان دهند، و اگر زوجش بهشتی بود باز باو ارزانی نماید و اگر زن چند شوهر داشته باشد و همه بهشتی باشند بزوج آخرین نامزد مینمایند انتهی.

**درویش وايي:** چي احوال د جنت او د هغه د مېوو او د هغه د حورو او غلمانو عدد يې تر عقل لوړ دی، وقد ورد في الجنة ان فيها ما لا عين رئت ولا اذن سمعت ولا خطر على قلب بشر، په ليدلو پوري اړه لري، اللهم اجعلنا من اهل الجنة بلا عذاب في النار واحشرنا في زمرة الابرار بفضل العزيز الغفار آمين يا رب العالمين.

لِّأَصْحَٰبِ ٱلْيَمِينِ

حرف جر متعلق دی بانشانا او جعلنا يا صفت دی او يا خبر د مبتداء محذوفي دی اعني هن.

ثُلَّةٌ مِّنَ ٱلْأَوَّلِينَ ۝ وَثُلَّةٌ مِّنَ ٱلْءَاخِرِينَ

خبر د مبتداء محذوفي دی ای هم كثيرون من الاولين من هذه الامة وكثيرون من الآخرين من هذه الامة كذا قال ابو العالية ومجاهد وعطاء بن ابي رباح والضحاك، وروی البغوي بسنده عن سعيد بن جبير عن ابن عباس في هذه الآية ثلثة من الاولين وثلثة من الآخرين، قال ابن عباس قال رسول اللهﷺ جميعا عن امتي وهكذا في مسند الطبراني وابن مردوية من حديث ابي بكر عن النبيﷺ.

**فائده:** مقتضی د دې حديثو داده چي امة د عليه الصلوة والسلام په هيڅ زمانه کي د اصحاب اليمين څخه خالي نه دی. روی الشيخان ای البخاري ومسلم في كتابيهما عن معاوية قال سمعت رسول اللهﷺ يقول لا يزال (همېشه به وي) من امتي قائمة بامر الله (چي ثابت قدمه به وي پ امر د خدای) لا يضرهم من خذلهم (دوی تاوان نه کوي که څوک د دوی سره کومک نه کوي) ولا من خالفهم (چي له دوی څخه مخالف وي) حتى يأتي امر الله وهم على ذالک (مراد له امر الله څخه نفخة الصور الاولی ده)

وَاَصْحٰبُ الشِّمَالِ ۙ مَاۤ اَصْحٰبُ الشِّمَالِ ؕ

درویش وايي: چي د دې اعراب لکه د اصحاب اليمين آه و قدمر آنفا

فِىْ سَمُوْمٍ وَّحَمِيْمٍ ۙ

"سموم" هغه تود باد ته وايي چي د سرې د وېښتانو په ېخو ننوځي، والتنوين للتعظيم، دا باد له دوږخه راوځي "حميم" نهايته تودې اوبه چي دوی تږي سي څښبني يې.

وَّظِلٍّ مِّنْ يَّحْمُوْمٍ ۙ

او پر دوی سايه وي د د خان چي سخت تور وي، او ابن كيسان وايي چي يحموم نوم دی له نومانو څخه د دوږخ، الضحاک وايي چي اور د دوږخ په حال حاضر کي تور دی او اهل به يې تور وي بل کل شيئ فيها اسود.

لَّا بَارِدٍ وَّلَا كَرِيْمٍ ۞ اِنَّهُمْ كَانُوْا قَبْلَ ذٰلِكَ مُتْرَفِيْنَ ۚۖ

چي نه خونک وي لکه د درختي وغيره سايه "ولاکريم" ای لانافع بوجه (ما په دې عبارت سره هغه توهم دفع کړی دی چي د ظل څخه يې توهم کېدی) په تحقيق دوی وه د مخه تر دې يعني په دنيا کي، دا علت دی د تعذيب د دوی په ماذکر من العذاب "مترفين" په نعمتو کي د دنيا وه او ډوب وه په شهواتو کي لايتبعون في الطاعات.

وَكَانُوْا يُصِرُّوْنَ عَلَى الْحِنْثِ الْعَظِيْمِ ۚ

دوی وه په دنيا کي د پر ټينګ پر لوی ګناه چي شرک ؤ او انکار ؤ علی البعث بعد الموت وغير ذالک من کبائر المعاصي.

وَكَانُوْا يَقُوْلُوْنَ ۙ اَئِذَا مِتْنَا وَكُنَّا تُرَابًا وَّعِظَامًا ءَاِنَّا لَمَبْعُوْثُوْنَ ۙ

او په دنيا کي دوی دا هم ويل، انکاراً عن البعث بعد الموت (همزه لپاره د انکار دی) آيا چي موږ مړه سو او وګرځو موږ خاوري (يعني غوښي مو خاوري وګرځي) او هډوکي (يعني يوازي هډوکي مو پاته وي متفرق بې پيوندہ، آيا موږ به ازسر نو ژوندي کېږو (نو هل د استفهام انکاري دا دی)

أَوَ آبَاؤُنَا الْأَوَّلُونَ ﴿٤٨﴾

يا به بعث كبري زمونږ پلرونه چي د مخه مړه دي.

**يوه سه:** چي همزه لپاره د انكار دى او واو لپاره د عطف دى پر محل د اسم د ان په انا كي، يا پر ضمير مستتر په مبعوثون كي.

**سوال:** عطف پر ضمير مستتر خو بېله تاكيده په ضمير منفصل سره يا په وجود د فصل په مابين كي د معطوف عليه او معطوف نه دى روا؟

**ځواب:** په دې عبارت كي خو فصل موجود دى چي همزه دى كه څه هم حرف واحد دى كذا قال الرضي في شرح الكافية.

قُلْ إِنَّ الْأَوَّلِينَ وَالْآخِرِينَ ﴿٤٩﴾ لَمَجْمُوعُونَ إِلَىٰ مِيقَاتِ يَوْمٍ مَّعْلُومٍ ﴿٥٠﴾

ته ورته ووايه يا محمد (ﷺ) چي ټول انسانان كه اول دي او كه اخير دي من لدن آدم ﷺ الى نفخة الصور "لمجمعون" سره جمع به سي (بالبعث بعد الموت، لپاره د حساب او د جزاء د اعمالو بالجنة او النار) هغه وخت ته چي په دنيا كي دوى ته وعده وركړل سوې ده د ورځي معلومي چي يوم القيامة ده.

**يوه سه:** چي اضافت د ميقات و يوم معلوم ته لكه اضافت د خاتم فضة ده فتدبر.

ثُمَّ إِنَّكُمْ أَيُّهَا الضَّالُّونَ الْمُكَذِّبُونَ ﴿٥١﴾ لَآكِلُونَ مِن شَجَرٍ مِّن زَقُّومٍ ﴿٥٢﴾

"ثم انكم" عطف على ان الاولين والمخاطب به اهل مكة وامثالهم، او ثم يا د تراخي زماني لپاره دى يا د رتبي، او دا جمله داخله ده يعني لاندي ده تر قل "ايها الضالون" اى ګمراهانو د حق او هدايت څخه چي تكذيب مو كاوه له بعث بعد الموت څخه، خوركه به كوئ يعني بعد البعث و دخول جهنم له يوې درختي څخه چي نوم يې زقوم دى.

**يوه سه:** چي اول "من" لپاره د ابتداء دى او ثاني لپاره د بيان دى، روى الترمذي وصححه (يعني قال حديث صحيح) والنسائي و الحاكم عن ابن عباس ؓ لو ان قطرة (كه يو څاڅكى د زقوم) قطرت في بحار الدنيا لفسدت على اهل الارض معاشهم فكيف من يكون طعامه، اهل لغت وايي چي زقوم كريه المنظر بدبويه نهايته ترخه مېوه ده، په روح البيان كي وايي چي اهل حقيقت وايي چي د سدرة المنتهى بناخونه

نعمتونه دي د اهل الجنة لپاره او ريښې يې زقوم دي د اهل النار لپاره فهي (اى سدرة المنتهى) منشاء د لطف او د قهر ده والجمال والجلال.

**درويش وايي:** چي كه څه هم دا خبره و قدرت ته د خداى عزوجل نادره خبره نه ده لكن كاشكي دا خبره په يو حديث كي كه څه هم ضعيف وي راغلې واى لكن لم يوجد او زه نه پوهېږم چي د اهل حقيقة څخه دده څوک مراد وي والله اعلم.

فَمَالِـُٔونَ مِنْهَا ٱلْبُطُونَ ﴿٥٣﴾

دوى ډكه وي، د منها ضمير راجع دى و شجر ته نظر و معنى ته لانه بمعنى الشجرة.

**سوال:** چي دو مره زقوم تريخ بدبويه وي كمامر، نو دوى يې ولي په ډک نس خوري؟

**ځواب:** لغاية غلبة الجوع عليهم.

فَشَٰرِبُونَ عَلَيْهِ مِنَ ٱلْحَمِيمِ ﴿٥٤﴾

لغلبة العطش عليهم "عليه" ضمير راجع دى و شجر ته په اعتبار د لفظ يا راجع دى و زقوم ته "الحميم" يعني د تودو اوبو څخه.

فَشَٰرِبُونَ شُرْبَ ٱلْهِيمِ ﴿٥٥﴾

دوى څښېږي لكه څښل د اوښ چي په مرض د هيم مبتلاء وي، نقل بسند صحيح عن ابن عباس رضی الله عنه نو جمع يې همان د نر لپاره او همنى د انثى لپاره لكه عطشان وعطشى، بعض مفسرين وايي چي هغه اوښان چي په مرض د هيام مبتلى وي په اوبو نه اوبېږي ولايزال يشرب حتى يهلک لكه ورته مرض په انسانانو كي د استسقاء مرض دى، كذا اخرج البيهقي عن مجاهد رحمه الله وذكر البغوي عن عكرمة وقتادة رحمه الله وقال الضحاک رحمه الله وابن عيينة رحمه الله الهيم الارض ذات الرمل (يعني هر څو اوبه چي ورځي رېګ يې جزبوي) وكذا قال البيضاوي رحمه الله.

**درويش وايي:** چي دا ترجمه په دوېځيانو كي بناء پر تشبيه ده فافهم.

هَٰذَا نُزُلُهُمْ يَوْمَ ٱلدِّينِ ﴿٥٦﴾

دا د دوى مهماني ده، په دې عبارت كي تهكم په كي دى ولي نزل خو مهمانى ته وايي په مهمانى كي خو ښه خوركي وي فهو كقوله تعالى فبشرهم بعذاب اليم، ولي چي بشارت خو خبري ته د خوشحالى وايي، عذاب اليم خو داسي نه دى نو

هغه ايت هم تهكم بهم "يوم الدين" په ورځ د جزاء، فما ظنك بما يصيبهم بعد ما استقروا في جهنم.

نَحْنُ خَلَقْنٰكُمْ فَلَوْلَا تُصَدِّقُوْنَ ﴿۵۷﴾

موږ تاسي پيدا كړي ياست بعد مالم تكونوا شيئًا.

**درويش وايي:** چي په دې سره دوی هم اقرار كوي چي له دوی څخه به پوښتنه وسوه من خلقكم؟ قالوا الله "فلولا تصدقون" نه ولي تصديق نه كوئ پر بعث بعد الموت، ولي چي قادر پر ابداء وي قادر پر اعاده هم دی بلكې نظر و قدرة البشر ته اعادة اهون وي تر ابتداء وان لم يكن في قدرة الله عزوجل فرق بين الابداء والاعادة.

**فائده جليله:** خدای عزوجل خپل له ځانه اخبار په جمع سره وكړی لكه په دې ايت كي نحن خلقناكم اشاره و ذات او صفاتو ته ده، نحو قوله تعالى انا نزلنا الذكر وانا له لحافظون، او چي اخبار يې له ځان څخه په لفظ مفرد وكړی مراد يې ذات مطلقه دی كما في قوله تعالى انا الله رب العالمين، او موږ چي خطاب و خدای عزوجل ته كوو په لفظ مفرد به يې كوو نحو يا الله يا رب العالمين، داسي خطاب موږ نه سو كولای "انتم" ولي چي په دې خطاب ابهام د شرك سته يعني چي خدايان خو ډېر دي، فاحفظ هذه الفائدة..... ابيات:

آنكه ما را از خلوت نابود ..... مى كشد تا بجلوه گاه وجود
بار ديگر كه سموم هلاك ..... روئ پوشيم زير پرده خاك
هم تو اند كه بامر كن فيكون ..... كه از راز گوشه لحد بيرون

اَفَرَءَيْتُمْ مَّا تُمْنُوْنَ ﴿۵۸﴾

تاسي خبر راكړئ چي تاسي نطفه غورځوئ په ارحامو كي د مايينو.

ءَاَنْتُمْ تَخْلُقُوْنَهٗٓ اَمْ نَحْنُ الْخٰلِقُوْنَ ﴿۵۹﴾

(يعني تجعلونه بشرًا سوی الاعضاء وعلى ما يليق بالبشرية) كه د خلق انساني جامي موږ په اغوندو.

**پوه سه:** چي رؤيت علمي دی موصول سره د صله يې مفعول اول دی، او دا جمله استفهاميه ده مفعول ثاني د كذا دی في روح المعاني.

نَحْنُ قَدَّرْنَا بَيْنَكُمُ الْمَوْتَ وَمَا نَحْنُ بِمَسْبُوقِينَ ﴿٦٠﴾

يعني موږ تقسيم کړی دی پر تاسي باندي مرګ، لکه وېشلي چي مو دي پر تاسي رزقونه ستاسي يعني لکه چي رزق په تقسيم دی بعض خلګ مو فقرا ګرځولي دي على حسب تفاوت فقرهم او بعض مو اغنياء ګرځولي دي على حسب تفاوت درجاتهم في الغناء، داغه رنګه مو عمرونه ستاسي وېشلي دي بعض طويل العمر وي على حسب تفاوت الطول او بعض قصير العمر مو ګرځولي دي او بعض متوسط العمر، دا ټوله په اراده سره زموږ دي في الازل. يا معنی داده چي موږ موقت کړی دی موت د هر انسان په وقت معين پوري لايستأخرون منه ولا يستقدمون منه.

**پوه سه:** چي ابن کثير ''قدرنا'' په تخفيف د دال وايي او باقي قراء يې په تشديد د دال وايي، دوه لغته دي معنی يې يوه ده.

**فائده:** من علم المعاني تقديم د مسند اليه چي نحن دی پر مسند فعلي چي قدرنا دی لپاره د ارادة التخصيص دی يعني تقدير او وقت ورته معينه کول خاص په موږ پوري اړه لري لکه خلق د ټولو چي مختص په موږ پوري دی.

''وما نحن بمسبوقين'' دا جمله حال ده له فاعل څخه د قدرنا، نو معنی يې داده حال کوتنا غير مسبوقين يعني تر موږ دمخه تقدير د اعمارو او د موت د هيڅ چا نه دی کړی، داده ي حال کوتنا غير مغلوبين چي څوک موږ مغلوب او عاجزه وګرځوي.

عرب وايي: سبقته على كذا اذا غلبته عليه او دی به دي عاجز کړي. وحاصل المعنى چي موږ څوک نسي عاجزه او مغلوبه کولای چي يا دي له مرګه وتښتي يا دې په وخت کي تغير او تبديل راولي.

عَلَىٰٓ أَن نُّبَدِّلَ أَمْثَٰلَكُمْ وَنُنشِئَكُمْ فِى مَا لَا تَعْلَمُونَ ﴿٦١﴾

متعلق دی په مسبوقين پوري يعني موږ څوک نسي مغلوبه او عاجزه کولای له دې څخه چي ستاسي په ځای کي نور خلګ پيدا کړو يعني تاسي د عدم و کندي ته وغورځوو، او مظهري وايي متعلق دی په محذوف پوري حال دی له فاعل څخه د قدرنا تقديره بينكم الموت قادرين على ان نبدل منكم امثالكم.

**درويش وايي:** چي بېله حذفه د قرآن مبارک ممکنه وي نو محذوفاتو ته څه

ضرورت ستہ ويرحم الله السيد محمود البغدادي" حيث قال وما نحن بمسبوقين اى لايغلبنا احد على نبدل امثالكم، مطلب چي روح المعاني ببله تقديره او حذف ترجمه د ايت كړې ده، او مظهري قرآن مبارك د خپلو توجيهاتو ځاى ګرځولى دى چنانچه اول يې د حذف معنى څرګنډه كمامر بيا وايي وجاز انيكون آه، وروسته بيا وايي وجاز انيكون آه والله اعلم.

"وننشئكم" يعني موږ قادر يو چي وروسته تر مرګ تاسي بعث كوو، په داسي احوال او صفاتو كي يعني د بعض مخان يې سپين وي او د بعض دا به تور وي او د بعض ځاى به په دار الثواب جنت كي وي او د بعض دا به دار البوار دوږخ كي وي چي تاسي نه په پوهېږئ و "ننشئكم" عطف دى على ان نبدل.

وَلَقَدْ عَلِمْتُمُ النَّشْأَةَ الْأُولَىٰ فَلَوْلَا تَذَكَّرُونَ ﴿٦٢﴾

"ولقد علمتم" عطف دى على قوله افرئيتم ما تمنون "النشأة الاولى" يعني چي انسان د نطفې له اوبو څخه پيدا دى "فلولا تذكرون" يعني تاسي حال د نشئاة الاولى وپېژندى نو ولي پند نه اخلئ چي قادر پر نشأة اولى قادر دى پر نشأة اخرى يعني په ورځ د قيامت، پند دا ؤ چي تاسي پر بعث بعد الموت ومايكون بعد البعث من الثواب والعقاب والجنة والنار به ايمان راوړى واى حسب ما اخبركم المخبر الصادق.

أَفَرَأَيْتُم مَّا تَحْرُثُونَ ﴿٦٣﴾

تاسي خبر راكړئ د هغه شي چي تاسي يې كښت كوئ يعني تخمونه يا د غنمو يا د جوارو الى غير ذالك په مځكو كي پاشئ.

أَأَنتُمْ تَزْرَعُونَهُ أَمْ نَحْنُ الزَّارِعُونَ ﴿٦٤﴾

آيا تاسي راشنه كوئ دغه ما تحرثون كه يې موږ راشنه كوو، الاستفهام للتقرير اى حملهم على الاقرار يعني شنه كونكى خداى دى كما هم مقرون بذالك.

لَوْ نَشَاءُ لَجَعَلْنَاهُ حُطَامًا فَظَلْتُمْ تَفَكَّهُونَ ﴿٦٥﴾

"لونشاء" مفعول يې د وروسته څخه فهمېږي اى جعله حطامًا "لجعلناه" اى الزرع "حطامًا" عطاءً وايي چي خالي پروړ به وای دانې به نه وای پكښې، او

بعض وايي خالي وږي به واى چي نه د انسانانو د خوړک شی به پکښي واى او نه غذاء. "فظلتم" تاسي به گرځېدلي واى اصل يې ظللتم وُ يو لام يې حذف كړى لپاره د تخفيف "تفكهون" تعجب به مو كولاى بما نزل بزرعكم وهو قول عطاء" والكلبي" ومقاتل"، او بعض وايي چي تاسي به پښېمان پر خپلو خواريو چي دديې كښت په اوبو خوره دراندي تېر سو يا پر تخم چي ضائع سو، وهو قول يمان البلخي". او الحسن" وايي چي پښېمان به پر هغه معصيت چي تاسي ته يې دا مصيبت پېش كړى، او عكرمه" تلاموں خانو ته به ملامت كولاى پر دې كښت باندي او ابن كيسان وايي تحزنون (تاسي به غمجن واى)

## إِنَّا لَمُغْرَمُونَ ﴿٦٦﴾ بَلْ نَحْنُ مَحْرُومُونَ ﴿٦٧﴾

دا جمله حال ده په تقدير د قول د فاعل ځخه د تفكهون، والتقدير فظلتم تفكهون قائلون انا لمغرمون والمغرم الذي ذهب ماله بغير عوض چي معنى يې دلته داده چي هغه تخم چي په مځكه كي پاشلى وُ راباندي تاوان سو، ولي چي حاصل يې نه وكړه.

"بل نحن محرومون" اضراب دى عن الاول ولي تاوان د مال اسانه دى تر محروميت د رزق چي مفضي وهلاک ته گرځي، قرطبي" په خپل تفسير كي وايي چي مستحب ده كښته گرلره چي وروسته تر اعوذ بالله الخ او تر تلاوت ددې ايت داسي وايي انا الزارع والمنبت هو الله اللهم صل على محمد وارزقنا ثمره وجنبنا ضرره واجعلنا لانعمك من الشاكرين، بعض علماء وايي چي تجربه كړه سوې ده لپاره د دفع دافاتو د كښت كلها او نتيجه يې وركړې ده، كذا في روح البيان او روح المعاني.

## أَفَرَءَيْتُمُ الْمَاءَ الَّذِي تَشْرَبُونَ ﴿٦٨﴾

تاسي خبر راكړئ د هغو اوبو يعني خوږې بقرينة مابعده چي تاسي يې څښئ والعائد الى الموصول محذوف اى تشربونه.

## ءَأَنتُمْ أَنزَلْتُمُوهُ مِنَ الْمُزْنِ أَمْ نَحْنُ الْمُنزِلُونَ ﴿٦٩﴾

آيا تاسي را اورولي دي له وريځي ځخه (او بعض مفسران وايي چي مزن سپيني وريځي ته وايي چي اوبه يې ډېري خوږې وي) يا موږ نازلي كړي دي.

لَوۡ نَشَآءُ جَعَلۡنٰهُ اُجَاجًا فَلَوۡلَا تَشۡكُرُوۡنَ ﴿۷۰﴾

که زمونږ مرضي وای ګرځولي به مو وای دا اوبه (مفعول د نشاء له جواب څخه د لو فهمېږي) "اجاجًا" تروې يا ترخې، کذا في القاموس چي په اسانی نسي څيښل کېدلای "فلولا تشکرون" ولې تاسي د خوږو اوبو چي نازلوي رب جل وعلا شکر نه وایاست د امثالو د دغو جليلو نعمتو چي له ضروریاتو څخه د ژوند دي، ابن ابی حاتم د ابی جعفر څخه روايت کړی دی چي نبي کريم ﷺ به کله اوبه څيښلې داسي به يې ويل: الحمد لله سقانا عذبًا (خوږې اوبه) فراتًا (تنده ماتونکي) برحمته ولم يجعله ملحًا اجاجًا بذنوبنا (زمونږ په ګنهو سره)

**پوه سه:** چي سره د عصمته رسول کريم ﷺ نسبت و ځان ته کوي هضمًا لنفسه وتعليمًا لامته.

اَفَرَءَيۡتُمُ النَّارَ الَّتِيۡ تُوۡرُوۡنَ ﴿۷۱﴾

تاسي خبر راکړئ له هغه اور څخه چي تاسي يې راباسئ له زناد څخه (زناد په پښتو اوورتک بولي).

**پوه سه:** چي په قديمه زمانه کي چي دا موجوده سهوليات د اور بلولو نه وه عربو به يا وسپنه پر ډبره په زوره ووهله د هغه څخه به بڅرکي د اور راوتل لاندي به يې وچ وابنه يا پنبه وغيره ورته ايښي وه چي دا بڅرکي به په هغو کي ولوېده هغو به اور واخستی باره به يې نور بوټي پر واچول اور به يې بل کړی يا دوه ی يا کتنځ به يې پر پخاوه، دې ته دوی زناد وايه جمع يې زند ده، او د خدای عزوجل په قدرت دوې درختي وې يوې ته يې مرخ او بلې ته يې عفار وايه چي ددې درختي د پرې کولو په وخت کي به اوبه تر څڅېدلې دا مرخ چي به پر عفار و موږی اور به ځني راوتی، بيا به يې نور وچ لرګي پر واچول اور به يې بل کړی، نو خدای پاک د دغو دوو درختو په باره کي وايي.

ءَاَنۡتُمۡ اَنۡشَاۡتُمۡ شَجَرَتَهَاۤ اَمۡ نَحۡنُ الۡمُنۡشِـُٔوۡنَ ﴿۷۲﴾

آيا تاسي پيدا کړې ده درخته ددې اور، چي عبارت د مرخ او عفار څخه دي، او که مونږ پيدا کړې ده دا درخته د اور، يعني خالق يې زه يم.

**پوه سه:** چي ضمير مؤنث د شجرتها راجع دی او ورته چي د مرخ او عفار څخه پيدا کېږي، ترتيب د اور را ايستلو يې داد ی چي مرخ پر عفار وموږي او ر څني پيدا کېږي.

**فائده:** عرب هغه ته چي لوړ دی يعني مرخ زند وايي او کښته ته زندة په تانيث وايي قياسوي يې پر منده د او ښانو او پر طروقة چي او ښه ده چي د هغو له جماع څخه جونګی پيدا کېږي.

نَحْنُ جَعَلْنٰهَا تَذْكِرَةً وَّمَتَاعًا لِّلْمُقْوِيْنَ ۝

موږ ګرځولی دی اور د زناد (ضمير مؤنث ورته راجع دی) پند او دليل پر بعث بعد الموت باندي، په داسي دول چي هغه ذات قادر متعال چي اور د شجر اخضر څخه را وباسي سره د دې چي شجر اخضر کي خو او به سته چي ضد د اور دی قادر دی پر اعادة د روح په عظام او په هډو کو کي چي تضاد هم نه سره لري، يا تذکره د لاري په تاريکه کي "ومطاعًا" ای منفعة "للمقوين" ای للمسافرين النازلين بالقوا.

**فائده:** قوا هغي ځمکي ته وايي چي له ابادی څخه لېري وي چي قضر يې هم بولي، تخصيص د مقوين چي يې وکړی ولي چي د دوی نفع اخستل له اور څخه ډېره ده تر مقيمينو، ولي چي دوی چي اور بل کړي د شپې درندګانه څني تښتي او لار څني ورکه وه لار ورته معلومېږي او څانونه هم په تودوي که يخ ؤ، او شی هم پر پخولای سي الی غير ذالک من المنافع، وهذا قول اکثر المفسرين".

فَسَبِّحْ بِاسْمِ رَبِّكَ الْعَظِيْمِ ۝

کلمه د فاء لپاره د سببيت ده يعني چي تا دا بدائع او عجائب د قدرت د رب جليل وا وريده نو ته تنزيه وکړه د هغه ذات جليل عما يقولون الکافرون المنکرون لوحدانية الکافرون لنعمه المتوالية "باسم ربک" قال المظهري الباء زائدة ولفظ الاسم ايضًا، فالمعنی سبح ربک وهذا ليس بشيئ عند الفقير، بلکي دا معنی ډېره زېبا ده فسبح بذکر اسمه تعالی "العظيم" صفت دی د ربک.

فَلَآ أُقْسِمُ بِمَوٰقِعِ النُّجُوْمِ ۝

بعض مفسرين وايي چي زه قسم نه اخلم ولي چي بې قسمه امر ظاهر دی، پښتانه وايي چي زما دي قسم نه وي يعني قسم ته ضرورت نسته بې قسمه فلانی.

خبره ومنه، او بعض مفسرين وايي چي لام زائد دی لپاره د تاکيد کما في قوله تعالى لئلا يعلم اهل الکتاب آه ای ليعلم، نو معنی د ايت داده چي زه قسم اخلم بکذا، او بعض مفسرين وايي چي کلمه د لا رد دی لما قال الکفار في القرآن انه سحر او شعر او کهانة فالمعنى ليس الامر کذالک ای کما يقولون زما دي قسم وي بمواقع آه، او بعض مفسرين وايي چي اصل يې فلا انا اقسم محذوف المبتداء دی ای انا و اشبع فتحة لام الابتداء نو الف ځني پيدا سو، ويدل عليه قرائة عيسی بن عمر فلا اقسم و اورد روح المعاني ههنا کلامًا طويلاً.

**پوه سه:** چي له نجوم څخه مراد په نېز د ابن عباس نجوم د قرآن کريم دي ای آياته وسوره او د مواقع څخه يې مراد اوقات د نزول دي ولې چي نزول د آياتو د قرآن پر عليه الصلوة والسلام په اوقاتو متفرقه ؤ د نبوت د عليه الصلوة والسلام سوی دی. او بعض مفسرين وايي چي مراد د مواقع النجوم څخه غروب د دوی دی.

**فائده:** تخصيص د مغاربو چي يې وکړی په ذکر سره له دې سببه چي غروب د دوی زوال د اثر د دوی دی چي قوي دليل دی پر امکان د دوی او پر حدوث د دوی او پر دې چي يو مؤثر خالق سته چي هغه زوال نه لري، له هم دې سببه ابراهيم خليل الرحمن ختل او لوېدل د ستورو او د سپوږمۍ او لمر دليل وګرځاوه چي دا د معبوديت لائق نه دي، وقال لا احب الآفلين، او عطاء بن ابی رباح وايي چي مراد له مواقع څخه منازل د ستورو دي او ځايونه د حرکاتو د دوی دي، او يا له دې سببه يې تخصيص وکړی چي دا وخت د بيداری دی د متجهدينو يعني لصلوة التهجد او د هغو کسانو دی چي زاری او خواستونه و خدای عزوجل ته کوي، او د وخت د نزول د رحمت او رضوان د ارحم الراحمين دی، وفي البخاري ومسلم عن ابی هريرة مرفوعًا ينزل ربنا کل ليلة الى سماء الدنيا (هذا من المتشابهات الحديثية) حين يبقى الثلث الآخير من الليل فيقول او خدای عزوجل وايي چي څوک چي ماته خواست وکړي او زه يې قبول کړم او څوک دی چي زما څخه سوال وکړم زه يې مسؤل ورکړم او څوک دی چي زما څخه بخښنه وغواړي فاغفرله.

وَإِنَّهُۥ لَقَسَمٌ لَّوْ تَعْلَمُونَ عَظِيمٌ ۝

او دا قسم دی ("انه لقسم" دا جمله معترضه ده بين القسم وجوابه) که تاسي

په وپوهیږئ، دا بیا جمله معترضه ده په مابین کي د موصوف چي قسم دی او د صفت چي عظیم دی، په دې سبب لوی قسم دی چي مقسم به چي په مواقع النجوم کي دلالت دی پر لوی قدرت د خدای او پر کمال حکمت د خدای دی او لوی رحمت د خدای لکه د مخه عنقریب چي بیان یې تېر سو.

اِنَّهٗ لَقُرۡاٰنٌ كَرِيۡمٌۙ

په تحقیق دغه یعني مایتلوه محمد ﷺ "لقرآن" یعني د خدای له خوا نازل دی ده له ځانه نه دی جوړ کړی لکه کفارو د مکې چي به ویل "کریم" ای مکرم لانه کلام الله عزوجل وفضل کلامه تعالی علی سائر الکلام کفضل الله تعالی علی خلقه، رواه الترمذي، یا معنی د کریم داده چي کثیر الخیر والنفع دی، ولې قرآن مبارک مشتمل دی پر مهماتو د علومو شرعیهؤ چي په هغو کي اصلاح د معاد او د معاش بیان سوې ده یا معنی داده حسن مرضي په خپل جنس کي چي نور کتب الهیه دي المنزلة علی الانبیاء السابقین علیهم السلام کفضل رسول الله ﷺ.

فِىۡ كِتٰبٍ مَّكۡنُوۡنٍۙ لَّا يَمَسُّهٗۤ اِلَّا الۡمُطَهَّرُوۡنَؕ

"مکنون" ای محفوظ چي مراد ځني لوح محفوظ دی، چي نه یې مسح کوي مگر نه پاک کرده شده کسان، ضمیر راجع دی و قرآن ته والمعنی لایمس القرآن الا المطهرون من الاحداث فیکون الاخبار بمعنی النهي، والمراد بالقرآن المصحف.

**سوال:** مصحف خو په زمانه کي د نزول د دې ایت وجود ته نهؤ راغلی کما لایخفی؟

**ځواب:** دا مجاز دی په اعتبار د مایؤل الیه یعني چي په اخیر کي مصحف ځني جوړ سي او دا اخبار بالغیب دی.

**پوه سه:** چي اجماع پر دې منعقده ده چي نه دی روا مس د مصحف جنب او نفساء او حائض والمحدث ته، البته محدث تلاوت د قرآن چي بعض سورتونه یې په یاد وي بېله مس کولای سي، او جنب، نفساء او حائض هغه هم نسي کولای.

**درویش وایي:** چي روح المعاني وایي چي کتاب مکنون وصف آخر دی د قرآن ای کائن في کتاب محفوظ من غیر الملائکة المقربین علیهم السلام ولایطلع علیه من سواهم. فالمراد به اللوح المحفوظ کما روی عن ربیع بن انس وغیره انتهی،

مظهري" دا خبره په سختی سره رد کړې ده او دليل يې هم پر ويلی دی، فارجع اليه، او عبد بن حميد" او ابن جرير" د عكرمه" نه روايت كړی دی چي له مكنون نه تورات او انجيل مراد دي، وحكى ذالک في البحر وروسته بحر والا ويلي دي چي دا شرف د قرآن مذكور دی په تورات او انجيل كي، فالمعنى على هذا الاستشهاد بالكتب المنزلة انتهى.

## تَنْزِيْلٌ مِّنْ رَّبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۝

ثلورم صفت دی د قرآن والتنزيل مصدر په معنی د منزل دی كالخلق بمعنی المخلوق وهو مجاز شائع في العربية.

## اَفَبِهٰذَا الْحَدِيْثِ اَنْتُمْ مُّدْهِنُوْنَ ۝

همزه لپاره د انكار د وقوع دی لا انكار الواقع والفاء للعطف على مقدر ای اتعرضون فبهذا الحديث، والمراد به القرآن الكريم الذي ذكرت نعوته الجليلة چي بايد دده تعظيم سوی وای او اكرام يې سوی وای.

**فائده:** حديث يې وباله لان فيه حوادث الامور يعني نوي كارونه پكښي كيږي من الامور الشرعية كما في كشف الاسرار "انتم" تاسي ای اهل مكه "مدهنون" الادهان والتدهين بمعنی واحد يعني غوړه مالي چي په عربي كي مدارات وترک الجد (چي كوشش نه پكښي كوي) والمعنى متهاونين مستحقرين له قال ابن عباس" يكذبون، قال البغوي" من الادهان وهو الجرى في الظاهر على خلاف الباطن ثم قيل للكاذب مدهن.

## وَتَجْعَلُوْنَ رِزْقَكُمْ اَنَّكُمْ تُكَذِّبُوْنَ ۝

او تاسي يا اهل مكه گرځوئ شكر د رزق (بتقدير المضاف ليصح المعنى، رزق په اصل كي مصدر دی سمی به المرزوق والمراد به نعمة القرآن) په تحقيق تاسي تكذيب د دې نعمة القرآن كوئ، الحسن" د دې ايت په متعلق كي وايي خسر عبد لا يكون حظه من القرآن الا التكذيب، وقال جماعة من المفسرين و تجعلون شكركم انكم تكذبون كذا اخرج احمد والترمذي عن علي رضي الله عنه.

فَلَوْلَآ إِذَا بَلَغَتِ الْحُلْقُوْمَ ﴿٨٣﴾

حرف تحضيض دى، وبالفارسية پس چرا "اذا بلغت" چي ورسېږي.

**پوه سه:** چي ضمير مرفوع يعني چي فاعل د بلغت راجع و غير مذكور ته لفظًا لانه معلوم حكما يقينًا چي راجع ونفس ته دى اى نفس احدكم په وخت كي د زكندن "الحلقوم" بعض مفسرين وايي چي حلقوم مجرى د طعام ده چي په پښتو يې سره غاړه بولي، او نورو مفسرينو دا خبره رد كړې ده چي مجرى الطعام بلعوم بولي او حلقوم مجرى د تنفس ده چي په پښتو يې كرنكه بولي.

وَأَنْتُمْ حِيْنَئِذٍ تَنْظُرُوْنَ ﴿٨٤﴾

او تاسي اى هغه كسانو چي مرګي حاله سئ (چي په عربي يې محتضر بولي) نو په دغه وخت كي د زكندن ګورئ او وينئ چي پر دغه سختي، او بېقرارى، په وتلو كي د روح، او دا ستاسي چي قريب مو دى يا پلار يا زوى يا ورور وغيرهم هيڅ مرسته او كومك مو نه ور رسېږي.

**پوه سه:** چي جمله د وانتم آه حال ده له فاعل څخه د بلغت.

وَنَحْنُ أَقْرَبُ إِلَيْهِ مِنْكُمْ وَلٰكِنْ لَّا تُبْصِرُوْنَ ﴿٨٥﴾

قال البيضاوي معناه نعلم لان القرب من اسباب العلم "اليه" اى الى المحتضر "منكم" يعني اقارب المحتضر، قال البغوي" اى بالعلم والقدرة والرؤية وقيل ان رسلنا لقبض روحه اقرب منكم.

**درويش وايي:** چي ټوله مفسرين ورته تفسيرونه كوي لكه روح المعاني، روح البيان، البيضاوي، قرطبي وغيرهم الا المظهري" فانه فسر ذالك القرب بكونه غير متكيف يعني چي كيفيت يې نه دى معلوم، نو رد كړي وه دا قرب ته چي مجهول الحال دى والله اعلم.

"ولكن لاتبصرون" لكن تاسي نه وينئ قربي اليه بالعلم والقدرة منكم او يا لاتبصرون قرب رسلنا لقبض روحه اليه منكم.

فَلَوْلَآ إِنْ كُنْتُمْ غَيْرَ مَدِيْنِيْنَ ﴿٨٦﴾

اى فهلا دا تاكيد دى د حرف تحضيض سابق "غير مدينين" اى غير مجرمين

(مجرم یعني کافران نه وای) غیر محاسبین بالبعث یوم القیامة (او ستاسي سره حساب نه کېدای په ورځ د قیامت ولي تاسي د بعث بعد الموت څخه منکر یاست) او یا معنی داده چي تاسي مملوک د خدای عزوجل نه وای او تحت الحکم د خدای نه وای (مشتق دی من دانة اذا اذله و استعبده)

تَرْجِعُوْنَهَآ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ۝

تاسي به دا نفس د محتضر راګرځولي وای خپل ځای ته یعني چي نه به مړه کېدلای "ان کنتم صادقین" ای فیما زعمتم شرط دی مستغن عن الجواب بما سبق وهو في المعنی تاکید للشرط السابق، والحاصل چي که تاسي صادق وای په هغه قول کي غیر مدینین او په تذکیب د آیاتو د خدای، نو ولي تاسي نه سئ راګرځولای نفس د محتضر خپل ځای ته اذا بلغت الحلقوم وانتم حینئذ تنظرون، نو دا معلومه سوه چي تاسي مغلوب د حکم د خدای عزوجل یاست، موت او حیات د هیڅ چا په قدرت کي نه دی بیله خدایه.

**درویش وایي:** چي د متوفی عند الموت بیان چي وپای ته ورسېدی او س شروع د بیان د حال د متوفی بعد الموت او رجوع ده و حال ته د هغو درو ډلو چي په اول کي د سورة ذکر سوي وې.

فَاَمَّآ اِنْ كَانَ مِنَ الْمُقَرَّبِيْنَ ۝

نو که چېري وُ (ای المتوفی چي له ماقبل څخه وفهمېدی) د مقربین څخه چي د مخه په عنوان د سابقون کي یې راوړی وُ دلته یې په اشرف د صنف تعبیر ځني وکړی ای المقربین.

فَرَوْحٌ وَّرَيْحَانٌ ۙ وَّجَنَّتُ نَعِيْمٍ ۝

"روح" مبتدا ء ده خبر یې محذوف دی ای الجار والمجرور ای فله روح لکن خبر به یې مقدم وي لان روح نکرة، او بعض مفسرین وایي چي روح خبر د مبتداء محذوف دی ای فجزائه روح وعلی کل تقدیر معنی د روح استراحة ده والفاء واقعة في جواب اما "وریحان" بعض مفسرین وایي چي ریحان معنی رزق حسن طیب کذا قال مجاهد وسعید بن جبیر ومقاتل، او بعض وایي چي مراد ځني ګل

ریحان دی چي خلګ يې بويوي، او ابوبکر وايي چي روح نجات دی له اوره څخه او ريحان دخول د دار القرار جنت دی، او ابو العالية وايي چي يو له مقربين څخه د دنيا نه وځي ای بالموت حتى چي ملائكه ريحان د جنت ورته راوړي او دی يې بوی کړي بيا يې روح قبض کړي "وجنت نعيم" او جنت دی چي ځای د نعمتو دی مما لا عين رئت ولا اذن سمعت ولا خطر على قلب بشر.

وَأَمَّآ إِن كَانَ مِنْ أَصْحَٰبِ ٱلْيَمِينِ ﴿٩٠﴾

او که چېري ؤ المتوفی د اصحاب څخه د يمين وي.

**درویش وايي:** چي په اجمال د اصحاب اليمين مو ږ بيان کړی دی مع الاختلاف.

**فائده:** اصحاب اليمين دوهم د اصحاب د اصناف ثلثة ؤ دی، له دوی څخه يې په عنوان سابق تعبير وکړی لانه لم يذكر لهم فيما سبق وصف ينبئ عن شانهم سواه كما للفريقين الآخيرين.

فَسَلَٰمٌ لَّكَ مِنْ أَصْحَٰبِ ٱلْيَمِينِ ﴿٩١﴾

نو سلام دي وي تا لره (ای علیک) د اخوانو د خوا چي په اصحاب اليمين کي درسره شريکان دي يعني هغه پر تا سلام وايي، او البغوي وايي سلام منهم يا محمد (ﷺ) چي ته د دوی غم مه کوه لانهم في امن من عذاب الله او ته به و وينې په دوی کي ماتحب من السلامة او ته به راضي سې، او فراء وايي سلام لک يا محمد (ﷺ) انهم من اصحاب اليمين، او يا صاحب اليمين ته ملكي وايي سلام عليک انک من اصحاب اليمين.

وَأَمَّآ إِن كَانَ مِنَ ٱلْمُكَذِّبِينَ ٱلضَّآلِّينَ ﴿٩٢﴾

او که چېري ؤ (ای المتوفی) له مكذبينو څخه ای بالقرآن والرسول ﷺ "الضآلين" چي ګمراهان وه د لاري څخه د هدايت الى الايمان.

**پوه سه:** چي دا اصحاب الشمال والمشئمة دي، دريم قسم د اقسامو ثلثة ؤ څخه لكن دلته يې تعبير د دوی په اعمالو سره وکړی تنبيهًا على ان الموجب للعذاب الآتي اعمالهم.

فَنُزُلٌ مِّنۡ حَمِیۡمٍ ﴿۹۳﴾ وَّتَصۡلِیَةُ جَحِیۡمٍ ﴿۹۴﴾

د ایشولو اوبو څخه د جهنم والنزل مایعد للضیف عبر به تهکما بهم، او ادخال دی و عظیم اور ته.

اِنَّ هٰذَا لَهُوَ حَقُّ الۡیَقِیۡنِ ﴿۹۵﴾

دا چي ذکر سول په احوالو کي د محتضرینو "لهو حق القیقین" ای حق الخبر الیقین فهو من قبیل اضافة الموصوف الی الصفة، روح البیان.

فَسَبِّحۡ بِاسۡمِ رَبِّكَ الۡعَظِیۡمِ ﴿۹۶﴾

بعض مفسرین وایي چي ذکر جزء دی مراد ځني کل دی ای فصلِّ یعني لمونځ کوه په امر د خدای عزوجل، او یا مراد دا دی تنزیه د خدای عزوجل کوه په ذکر د داسي الفاظو سره چي لائق د عظمت سره د خدای عزوجل به وي او نزه ربک فلفظ الاسم مفهم زائد دی.

**فائده:** کلمه د فاء چي په اخیر کي یې راوړه لپاره د تنزیه د اسم د خدای یاد خدای عزوجل د مالایلیق بشانه مما ینسبه الکفرة الیه من الشریک و الولد وغیرهما فان حقیة د مامر په دې سورة کي مما یوجب تنزیهه تعالی مما ینسبه الکفرة الیه تعالی عن ذالک علواً کبیراً، واخرج الامام احمد وابو داؤد وابن ماجة وابن حبان والحاکم وغیرهم رحمهم الله عن عقبة بن عامر الجهني رضی الله عنه قال نزلت علی رسول الله ﷺ باسم ربک العظیم قال ﷺ اجعلوها في رکوعکم یعني سبحان ربي العظیم ولما نزلت سبحان سبح اسم ربک الاعلی قال ﷺ اجعلوها في سجودکم یعني سبحان ربی الاعلی، عن ابن مسعود رضی الله عنه قال سمعت رسول الله ﷺ یقول من قرء سورة الواقعة کل لیلة لم یصبه الفاقة (ای المسکنة) ابداً، رواه البغوي رحمه الله في مسنده.

**درویش وایي:** چي تفسیر د سورة الواقعة د ماپښین په وخت کي د صفر الخیر پر ۱۷ تاریخ سنه (۱۴۳۳) هجري قمري پای ته ورسېدی، ولله الحمد والمنة والصلوة والسلام علی سید البریة وآله وصحبه البررة.

سُورَةُ الحَدِيدِ مَدَنِيَّةٌ وَهِيَ تِسعٌ وَعِشرُونَ آيَةً وَفِيهَا أَربَعُ رُكُوعَاتٍ بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

سَبَّحَ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ ۚ وَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ①

**پوه سه:** چي تسبيح على المشهور پاكي د خداى عزوجل بيانول دي قولاً واعتقاداً و عملاً د هر هغه حال او صفت څخه چي لائق د جناب سره د رب ﷻ نه وي لكه شريک خداى ﷻ ته ويل په وجوب الوجود كي لكه ثنويه چي عالم لره دوه خدايان واجب الوجود وايي چي يو يې فائده مند شيان پيدا كوي لكه غنم، وريجي، پسونه او نور خوراكي شيان، دوى دې خداى ته يزدان وايي، او بل خداى ضررمند شيان او حيوانات پيدا كوي لكه لېوان، خوزان وغيرها دوى هغه ته اهرمن وايي، كذبوا لعنهم الله وهو مذهب المجوس، او په استحقاق د عبادة كي لكه مشركان چي وايي او نسبة الولد اليه الى غير ذالک كما بين في القرآن العزيز والآحاديث النبوية وكتب العقائد لاهل السنة والجماعة.

**فائده جليله:** شروع كړې ده خداى عزوجل په سورة الحديد يعني هذه السورة وسورة الحشر وسورة الصّفّ، له دې سببه چي ماضي اسبق ده د دوو زمانو د ثم بالمستقبل في سورة الجمعة والتغابن ثم بالامر في سورة الاعلى يعني سبح اسم ربک الاعلى الى اخيرها لپاره د استيعاب ددې كلمة من جميع جهاتها، نو په دې كي خداى عزوجل خپلو بندګانو ته تعليم ددې وكړى چي ستاسي سره دي استمرار د تسبيح په ټولو ازمنهٔ كي والاوقات موجود وي لعدم ترجيح البعض على البعض، او په حديث صحيح كي راغلي دي چي روايت يې بخاري او مسلم كړى دى چي افضل الكلام اربع سبحان الله، والحمد لله، ولآ اله الا الله، والله اكبر، لايضرک بما يهن بدئت.

"ما في السمٰوات والارض" هغه شيان چي په اسمانو كي دي او په مځكه كي دي چي شامل ذوى العقول وغيرهم ته دي لان كلمة ما عامة في اصطلاح القران العزيز نحو لله ما في السمٰوات والارض، او نحاتو هم تصريح كړې ده چي من خاص دى په اولوا العلم پوري او ما عام دى نحو والسماء وما بناها الى اخير الآية، وقيل المراد ما يصح منه التسبيح يعني القولي من الانس والجن والملائكة، وقيل المراد من التسبيح من الجمادات ونحوها التسبيح الحالي يعني دلالة د حال د دوى من

الامكان والحدوث على تنزه صانعها عن السوء، والحق عند الصوفية ان شيئا من الموجودات خالي نه دي له يوې نوع څخه د حيوة مع الله، كريمه: وان من شيئ الا يسبح بحمده ولكن لاتفقهون تسبيحهم، نو له دې تسبيح څخه تسبيح قولي مراد ده لان التسبيح الحالي يعرفه كل احد، كريمه: وان منها لما يهبط من خشية الله الاية وجه الاستدلال انه ليس بين الخشية من الله والتسبيح القولي فرق فافهم.

"وهو العزيز الحكيم" خداى غالب دى چې د ما ارادہ يې څوک مانع نشي كېداى او په هر شي او فعل كي حكمت لري.

**بوه سه:** چې دا جمله حاليه ده چې دليل د تسبيح ويلو د هر شي ده كه څه هم جماد وي.

لَهُۥ مُلْكُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ يُحْىِۦ وَيُمِيتُ

**بوه سه:** چې ملک السموات والارض مبتداء ده او له يې خبر مقدم دى، تقديم يې لپاره د حصر دى د ملک السموات والارض څخه وما فيهما من الموجودات التي لايعلمها الا الله الخبير العليم په خداى كي، ومعنى الاية خداى لره دى تصرف من كل الوجوه يعني من حيث الايجاد والاعدام وسائر التصرفات مما نعلم ومالم نعلم "يحيي ويميت" اى يفعل الاحياء والاماتة.

**فائده:** دا جمله مستأنفه ده چې بيان د بعض احكامو د ملک د خداى كوي يا خبر د مبتداء محذوفي دى اى هو يحيي ويميت، مظهري" وايي چې دا جمله حال ده له ضمير مجرور څخه د له، علامه بغدادي" په روح المعاني كي دا خبره رد كړې ده حيث قال وجعله حالاً من الضمير المجرور في له يوهم تقييد اختصاص الملك بهذا الحال، انتهى فتدبر والله اعلم.

وَهُوَ عَلَىٰ كُلِّ شَىْءٍ قَدِيرٌ ۝

او خداى عزوجل پر هر شي د احياء والاماتة وغيرهما تام القدرة دى.

**بوه سه:** چې قدير صيغه د مبالغې ده ولهذا فسره جميع المفسرين بتام القدرة.

هُوَ ٱلْأَوَّلُ وَٱلْءَاخِرُ وَٱلظَّٰهِرُ وَٱلْبَاطِنُ

خداى عزوجل د مخه دى تر ټولو موجوداتو، فهو سبحانه موجود تر هر شي د مخه حتى الزمان لانه جل وعلا پيدا كوونكى د ټولو موجوداتو دى "والآخر" او

باقي دی تر فناء د ټولو ممكناتو يا حقيقةً (يعني ظاهراً فاني سي لکه انس او جن او حيوانات چي ټول مړه سي) يا نظراً وذات ته د دوی قطع نظر د خدای د ابقاء څخه دوی فانية دي، لان جميع الموجودات الممكنة مع قطع النظر عن علتها فانية ولي چي ذوات د دوی مقتضي د وجود نه دي، نو ځکه ابو علي سينا وايي الممكن في حد ذاته ليس (ای معدوم) وهو عن علية، ايس (ای موجود)

**سوال:** بعض ممكنات خو نه فاني کېږي لکه جنت او دوږخ او هغه څوک چي په دې دوو ځايو کي وي لکه چي ددې بيان په آياتو او احاديثو کي مثبت راغلي دي؟

**ځواب:** فناء حقيقي که نه لري کمام لكن فناء نظر و ذات ته د دوی له دوی څخه نه جلا کېږي كذا في روح المعاني "والظاهر" خدای بالا دی تر هر شي په ظهور کي څوک چي عقل لري، ولي چي منشاء د ظهور وجود دی ولا ظهور للمعدوم.... بيت:

برگ درختان سبز درنظر هوشيار ...... هر ورقی دفتريست معرفت کردگار

**پوښتنه:** که خدای پاک دومره ظاهر وايي بايد هر سړي په سترګو ليدلای؟

**ځواب:** دا قصور په ظهور کي د رب جل وعلا نه دی بلکې قصور د سترګو د دنيا والو دی ځکه چي په جنت کي چي د دنيا والو د سترګو قصور دفع سي په قدرت د رب جل وعلا ليدل د خدای عزوجل ثابت بالادلة المتواترة دی، مثال ددې دا دی چي په موجوده زمانه کي لمر اظهر د محسوساتو دی لکن شوپرک چي په عربي يې خفاش بولي نسي ورته کتلای لقصور بصره.... بيت:

الشمس شمس وان لم يرها عين الفرير ..... والعسل عسل وان لم يجد طعمه فاه المرير

(۱) يعني چي پر لمر يې سترګي برېښي لکه خفاش (۲) يعني عسل خو خواږه دي که څه هم په خوله د مرير کي يعني صفراوي ته يې خوږ والی نه معلومېږي)

"والباطن" او پټ دی خدای عزوجل په حقيقت کي ای کنه ذاته حتى عجز عن ادراک کنه ذاته اولوا الابصار من النبيين والصديقين والاخيار.

البغوي وايي چي يو چا له عمر رضي الله عنه څخه ددې ايت په باره کي پوښتنه وکړه، فقال عمر رضي الله عنه معناها ان علمه بالاول كعلمه بالاخير، وعلمه بالظاهر (ای للناس) كعلمه بالباطن (ای بما في صدور الناس) والله اعلم.

وَهُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ

او خداى ﷻ په ظاهر او خفي پر دواړو كامل علم لري.

**درويش وايي:** چه خوش گفته سعدى شيرازى چي مخاطب يې خداى ﷻ دى.

اى برتـــر از قـيـاس و گـمـان و وهـم
و از هر چه گفته اند شنيديم وخـوانده ايم
مجلس تمام گـشت وبه پايان رسيد عـمر
مـاهم چـنـان دراول وصف تومـانده ايم

هُوَ الَّذِىْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ فِىْ سِتَّةِ اَيَّامٍ ثُمَّ اسْتَوٰى عَلَى الْعَرْشِ

اى في مقدار ستة ايام الذي في علم الله سبحانه اذ لايوم ولا ليلة وقت خلق السمٰوات والارض، اول يې يوم الاحد وه او اخير يې يوم الجمعة وه.

**پوه سه:** چي مراد له ايام څخه د دنيا ايام دي او هغه څوک چي مقدار د ايام د اخرة دى چي ورځ يې خمسون الف سنة ده فليس بصحيح.

**درويش وايي:** چي اكثره مفسرين وايي چي لفظ استوى له متشابهاتو څخه دى نو اسلم وجه يې داده چي تفويض د علم يې و خداى ﷻ ته وكړى والايمان بما اراد الله، او دا مذهب دى د سلف صالحينو او متأخرين يې تأويل كوي بان المراد بالاستواء القصد المصمم، يا په معنى د استولى ده اى غلب على خلق العرش، والله اعلم بمراده في كتابه.

يَعْلَمُ مَا يَلِجُ فِى الْاَرْضِ وَمَا يَخْرُجُ مِنْهَا وَمَا يَنْزِلُ مِنَ السَّمَآءِ

خداى عزوجل خبر دى په هغه شيانو چي په مځكه كي داخلېږي من الماء، او تخمونه د نباتاتو يا اموات في القبور يا د فاتن د مځكي چي خزانې يې بولي، او په هغه شيانو چي له مځكي څخه راوزي (لكه كښتونه والمعادن و الاموات يوم القيامة او بخارات د مځكي الى غير ذالك) او چي له اسمانه نازلېږي لكه بارانونه او ملائكه والاحكام الهية والبركات.

وَمَا يَعْرُجُ فِيهَا ۚ وَهُوَ مَعَكُمْ أَيْنَ مَا كُنتُمْ ۚ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ۝

او چي اسمان ته پورته کېږي (من ارواح المؤمنين وقت الموت يا ملائکه واعمال العباد) "وهو معكم" بالنصر والعون، او المراد المعية الغير المتكيفة "اينما كنتم" هر ځای چي تاسي یاست، ولي چي نسبت د امکنة و خدای ته برابر دی، او خدای ستاسي په عملو خبر دی يعني فتجازيكم يوم القيامة ان خيرًا فخير وان شرًا فشر.

لَّهُ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ۚ وَإِلَى اللَّهِ تُرْجَعُ الْأُمُورُ ۝

**پوښتنه:** دا ایت خو د مخه تېر سو نو په اعاده کي يې څه فائده ده؟

**ځواب:** فائده يې تاكيد د ماسبق دی او تمهيد دی لقوله سبحانه چي مشعر دی په اعاده بعد الموت.

"والى الله ترجع الامور" يعني الى الله خاصةً لا الى غيره سبحانه لا استقلالاً ولا اشتراكًا.

**فائده:** الحسن او ابن اسحق او الاعرج دا لفظ ترجع بفتح التاء مبني للفاعل وايي من رجع رجوعًا، او جمهور د قاريانو يې ترجع بضم التاء مبني للمفعول وايي چي مشتق من رجع رجعًا. حاصل د دواړو صيغو يو دی وهو اختصاص به سبحانه من غير اشتراک كما مر.

يُولِجُ اللَّيْلَ فِي النَّهَارِ وَيُولِجُ النَّهَارَ فِي اللَّيْلِ ۚ وَهُوَ عَلِيمٌ بِذَاتِ الصُّدُورِ ۝

داخلوي خدای عزوجل ساعات د شپې په ورځ کي يعني ورځ اوږده کوي لکه په دوبي کي، او داخلوي ساعات د ورځي په شپه کي لکه په ژمي کي.

او خدای ښه خبر دی په هغه شي چي صدور يعني په زړو کي د خلکو وي، امام جلال الدين السيوطي په جمع الجوامع کي د علي ﷺ څخه يې روايت کړی دی په باره کي د دعاء لقضاء الحوائج چي دعاء کونکي دي د اول څخه د سورة الحديد تر دې آيت پوري وهو عليم بذات الصدور، او درې ايته دي له اخير څخه د سورة الحشر دي هم ووايي وروسته دي ووايي يامن كذالك وليس غيره احد كذالك اقضى حاجتي كذالك (ويذكر حاجته)

اٰمِنُوْا بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ وَاَنْفِقُوْا مِمَّا جَعَلَكُمْ مُّسْتَخْلَفِيْنَ فِيْهِ

خطاب عام دی و ټولو کافرانو ته "بالله" ایمان راوړي پر هغه خدای چي تاسي په سورة الحدید کي صفات دده واورېدل "ورسوله" یعني محمد ﷺ ولي چي ایمان پر خدای اعتبار نه لري بېله ایمانه پر رسول یعني په هره زمانه کي "وانفقوا" تاسي مصرف وکړئ یعني في سبیل الله "مما" اصل یې من ما ؤ نون یې په میم کي مدغم کړی او من لپاره د تبعیض دی ای بعض اموالکم "جعلناکم" ګرځولي یاست موږ "مستخلفین فیه" د فیه ضمیر و ما ته راجع دی، ددې کلمې معنی یا دا ده چي خدای تاسي خلفاء ګرځولي یاست في التصرف فیها سره ددې چي هغه مال مخلوق د خدای دی او مملوک هم د خدای دی. او یا یې معنی داده چي تاسي یې خلیفه ګان د من قبلکم ګرځولي یاست (یعني ستاسي به بیا نور خلیفه ګان وي)

**فائده:** په دې عنوان ذکر کولو کي یعني مستخلفین باعثه کول دي د خلګو پر انفاق باندي، او پر ځان دي انفاق في سبیل الله سپک وګرځوي.

فَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مِنْكُمْ وَاَنْفَقُوْا لَهُمْ اَجْرٌ كَبِيْرٌ ۝

نو هغه کسان چي ایمان یې راوړی دی (پر وحدانیت د خدای او پر رسالت د رسول) او انفاق في سبیل الله یې هم کړی وي هغه لره ثواب او اجر دی لوی، روح المعاني وایي چي په دې ایت کي څو مبالغې دي (۱) جعل الجملة اسمیة، ظاهره خو دا وه چي جمله فعلیه یې راوړې وای په جواب کي د امر بان یقال مثلاً آمنوا بالله ورسوله وانفقوا تعطوا اجراً کبیراً (۲) ذکر د ایمان او انفاق یې مکرر راوړی داسي یې نه وویل فمن یفعل ذالک فله اجر کبیر (۳) اجر یې نکره راوړی لپاره د تفخیم (۴) وصف الاجر بالکبیر، وفي الحدیث الصحیح یقول ابن آدم مالي مالي وهل لک من مالک الا ما اکلت فافنیت او لبست فابلیت او تصدقت فامضیت، یو اعرابي ته چا وویل دا اوښان د چا دي؟ ده ورته وویل د خدای دي عندي، قال الشاعر العربي:

وما المال والاهلون الا ودائع ..... ولابد یوماً ان ترد الودائع

وَمَا لَكُمْ لَا تُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ ۚ وَالرَّسُوْلُ يَدْعُوْكُمْ لِتُؤْمِنُوْا بِرَبِّكُمْ

**پوه سه:** چي جمله د لایؤمنون حال ده من الضمیر في لکم والعامل فیه معنی د

مالکم دی یعني الفعل المفهوم منه ای اي شيئ ثبت لکم وحصل لکم غیر مؤمنین بالله والاستفهام لنفي وانکار سبب عدم الایمان.

"والرسول یدعوکم لتؤمنوا" او حال دادی چي رسول یعني محمد ﷺ تاسي ته دعوت درکوي چي تاسي ایمان راوړئ پر رب ستاسي، فالجلمة حال من فاعل لتؤمنوا، والحاصل ای عذر لکم في ترک الایمان والحال ان الرسول دعوت درکوي تاسي ته وایمان ته، او حجج بینات او معجزات ورسره دي، او ایات قرآنیه من عند الله هم ورسره موجود دي.

وَقَدْ أَخَذَ مِيثَاقَكُمْ إِنْ كُنْتُمْ مُؤْمِنِينَ ۝

او حال دادی چي خدای له تاسي څخه ټینګه وعده اخستې ده بالایمان قبل ذالک، بعض مفسرین وایي حین اخرجکم من ظهر آدم ؑ وقال الست بربکم قالوا بلٰی شهدنا علی انفسنا الی اخیر الآیة، او بعض مفسران وایي چي له میثاق څخه مراد هغه وعده ده چي په لسان د انبیا علیهم السلام ستاسي څخه اخستل سوې ده، وفیما سبق من الکتب المنزلة (یعني اذا جائکم رسول مصدق لما معکم لتؤمنن به ولتنصرنه) الآیة.

**درویش وایي:** چي دا وعده په تورات کي له یهودیانو څخه او په انجیل کي له نصارٰی وُ څخه اخستل سوې وه وهذا الوعد یصدق علی محمد ﷺ لکن لعنهم الله کتموه حسدًا وعنادًا وخوفًا علی ریاستهم علی العوام.

"ان کنتم مؤمنین" که تاسي یاست مؤمنان پر اخذ المیثاق کذا في عین المعاني، وفي فتح الرحمن ان دمتم (که تاسي دوام وکړئ) علی ما بدأتم به (چي ابتداءً هغه کار کړی دی) او الواحدي وایي ان کنتم مؤمنین په دلیل عقلي او نقلي فقد بان وظهر لکم علی یدي محمد ﷺ، او بعض مفسران وایي ان کنتم مؤمنین بموسٰی وعیسٰی علیهما السلام فآمنوا بمحمد ﷺ، ولي چي تورات او انجیل دواړو په نبوت سره د علیه الصلوة والسلام وصیت کړی دی، وقیل غیر ذالک.

هُوَ الَّذِي يُنَزِّلُ عَلَىٰ عَبْدِهِ آيَاتٍ بَيِّنَاتٍ لِيُخْرِجَكُمْ مِنَ الظُّلُمَاتِ إِلَى النُّورِ

الله هغه ذات دی چي نازل کړي يې دي پر خپل بنده یعني محمد ﷺ "بینات" ای القرآن او غیر ذالک من المعجزات الباهرة "لیخرجکم" چي تاسي وباسي له

تاريکو څخه د جهل او د انواع د کفر (من المجوسية والدهرية واليهودية والنصرانية وغيرها، چونکه انواع د کفر ډېر دي نو ځکه ظلمات يې جمع راوړی) و رڼا ته د ايمان وهو دين محمد ﷺ فقط، نور ټوله اديان منسوخه سو ه، له دې سببه يې نور مفرد راوړی.

**پوهه:** چې مراد د ظلمة او نور څخه معنوي دي چې صفت د قلب دی لا الحسي.

وَاِنَّ اللّٰهَ بِكُمْ لَرَءُوْفٌ رَّحِيْمٌ۝

او په تحقيق خدای عزوجل پر تاسي هر آئينه ډېر مهربان دی (نو رؤف صيغه د مبالغې ده او رحيم يې تاکيد دی) ووجه ذالک ان الله قد ارسل اليکم رسولاً وانزل الله عليه القرآن او احکام د دين د اسلام من الحلال والحرام يې تاسي ته بيان کړه او د تېرو سوو امتو قصې يې په قرآن کې ستاسي لپاره تاسي ته وکړې الی غير ذالک من الوحي الغير المتلو يعني الاحاديث النبوية ﷺ.

وَمَا لَكُمْ اَلَّا تُنْفِقُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَلِلّٰهِ مِيْرَاثُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ

څه فائده ده تاسي ته په عدم انفاق (استفهام لپاره د انکار دی، ای لا فائدة لکم في عدم الانفاق) په لاره کې د خدای يعني هغه انفاق چې سبب د قرب ګرځي تاسي لره، نو دا ايت ټولو اقسامو لره د اتفاق شامل دی.

"ولله ميراث السموات والارض" الواو للحال، او حال دا دی چې خدای لره دي ټوله د اموالو ستاسي يعني تاسي به په مرګ ځئ او ميراث به مو خدای ته پاتېږي ولايبقی لاحد مال.

**سوال:** ميراث د مړي خو د قريبانو د مړي دی فما معنی هذه الآية؟

**ځواب:** هغه ميراث د اقرباؤ خو په حکم د خدای دی فکان الله ورثه ماترکه الميث، والحاصل چې حال دغسي دی، نو انفاق في سبيل الله اولی او افضل دی، ولې چې عوض يې اخرت ته پاتېږي وجمع الاموال وترکه للورثة لاينفعم اصلاً.

بيت:.... تو باخود ببر نوشتۀ خويشتن .... که شفقت نيايد ز فرزند وزن

ترمذي په خپل سند روايت کړی دی د ام الامة سيدتنا عائشة رض چې په ورځ د لوی اختر عليه الصلوة والسلام پسه حلال کړی او تقسيم د غوښو يعني مساکينو

ته او يو څه کور ته را اګر ځول بي عائشة ته وسپاره، عليه الصلوة والسلام چي بيرته راغلی پوښتنه يې وکړه د تقسیم او د کور د غوښو عائشة ورته وويل چي يو ولی پاته سو نوري ټولي غوښي ولاړي، عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي يو ولی ولاړی نوري ټولي غوښي پاته سوې، يعني ليوم القيامة ثوابها. وروى البخاري والنسائي عن ابن مسعود چي رسول الله ﷺ له خلکو څخه پوښتنه وکړه چي چا ته مال د وارث احب دی تر خپل مال، قالوا ما منا احد الا ماله احب اليه من مال وارثه، عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي مال د سړي هغه چي د مخه واستاوه يعني في سبيل الله يې مصرف کړي او مال د وارث چي پرېږدي يې ښو وارث ته.

لَا يَسْتَوِي مِنْكُمْ مَنْ أَنْفَقَ مِنْ قَبْلِ الْفَتْحِ وَقَاتَلَ ۚ

(اى فتح مكة في قول اكثر المفسرين وقال الشعبي هو صلح الحديبية كمامر تفصيلها) "وقاتل" (اى قبله) نه دی سره برابر په مرتبه کي د قرب الی الله عزوجل هغه کسان د تاسي مؤمنانو څخه هغه څوک چي انفاق د مال يې کړی وي اى في سبيل الله د مخه تر فتح مكة يا تر صلح د الحديبية (يعني د هغو کسانو سره چي انفاق يې بعد الفتح کړی وي او قتال يې هم بعد الفتح کړی وي)

أُولَٰئِكَ أَعْظَمُ دَرَجَةً مِنَ الَّذِينَ أَنْفَقُوا مِنْ بَعْدُ وَقَاتَلُوا ۚ

اى الذين انفقوا وقاتلوا قبل ذالک "اعظم درجة" اى ثوابا وقربا الى الله "من بعد" اى بعد الفتح "وقاتلوا" اى بعد الفتح، البغوي په معالم التنزيل کي وايي روى محمد بن الفضل عن الكلبي چي دا ايت په شان کي د ابوبكر نازل سو دی فانه اول من اسلم واول من انفق في سبيل الله.

**پوهسه:** چي ظاهر د دې ايت (يعني صيغې د جمعي پکښي راغلي دي) دلالت کوي پر فضيلت د سابقينو اولينو من المهاجرين والانصار ﷺ على من آمن بعد الفتح وانفق په دغه وخت کي، او مفهوم د دې ايت دلالت کوي پر افضليت د ابوبكر ﷺ على سائر الصحابة ﷺ وافضلية الصحابة على سائر المؤمنين دليل يې دادی چي علت د دې فضل سبقت دی و اسلام او انفاق او جهاد لاعلاء كلمة الله دی كما يدل عليه الحديث المشهور عن رسول الله ﷺ من سن (يعني في الاسلام)

سنة حسنة فله اجرها واجر من عمل بها (الی یوم القیامة) من غیر ان ینقص من اجورهم شیئ (ای اجور العارفین بعد الواضعین للطریقة الحسنة) هیڅ شی الی اخیر الحدیث، او اجماع د علماء د امت پر دې ده چي ابوبکرؓ اول سړی دی چي ایمان یې راوړی دی واظهر اسلامه عند اشراف قریش و اول من انفق الاموال العظام في سبیل الله او برداشت کړي یې دي شدائد د کفارو پر ځان، په حدیث کي د ابو هریرةؓ چي روایت یې کړی دی الترمذي چي رسول اللهﷺ وویل مالاحد عندنا یده الا وقد کافیناه (نسته هیڅ چا لره زموږ په نېز یو نعمت مګر نه موږ یې عوض ور کړی دی) ما خلا ابی بکر (ماسوی له ابوبکر څخه) فان له عندنا ید یکافیه الله یوم القیامة (یعني د ابوبکرؓ زموږ په نېز نعمت سته چي ما یې عوض نه دی ورکړی، خدای ۓ به یې عوض ورکوي په ورځ د قیامت) وما نفعني مال احد ما نفعني مال ابی ابکرؓ، عن ابی الزبیر عن ابیه قال کان لابی بکرؓ حین اسلم اربعون الف درهمًا انفق کلها علی رسول الله وفي سبیل الله، رواه ابو عمرو، وروی ابو عمرو في الاستیعاب چي ابوبکرؓ ازاد کړه اووه مریان چي ایمان به یې راوړی ؤ او مالکانو به دوی ته سخت ضرب او کوب ورکاوه، ابوبکرؓ به د مالک څخه رانیول ازاد به یې کړل، منهم بلالؓ وعامر بن فهیرةؓ او پنځه نور، او ابو اسحاقؒ وایي چي ابوبکرؓ په قریشو کي (یعني قبل اسلامه) یو مقبول شخصیت ؤ او نرم مزاج سړی ؤ ده به هغو کسانو ته چي ده به باور پر درلودی دعوت ورکاوه الی الایمان بالله ورسوله، نو دده په دعوت سره عثمان بن عفانؓ چي رئیس د قوم د بني عبد الشمس ؤ او الزبیر بن العوامؓ چي رئیس د قوم د بني اسد ؤ او سعد بن ابی وقاصؓ او عبد الرحمن چي دواړه رئیسان د قوم د بني زهرة وه، او طلحة بن عبد اللهؓ چي رئیس د قوم د بني تمیم ؤ، نو دا کسان په یوه وار ابوبکرؓ و علیه الصلوة والسلام ته راوستل او بیعت پر اسلام یې د علیه الصلوة والسلام سره وکړی.

**درویش وایي:** چي د دې رئیسانو په ایمان راوړلو سره شوکت د قبائلو د قریشو ډېر کمزوری سو.

**مسئله:** الشیخ ابو الحسن الاشعريؒ وایي چي تفضیل د ابوبکرؓ پر ټولو نورو صحابه ؤؓ قطعي دی، مظهري وایي قد اجمع علیه السلف آه، ومن مناقبة ثباته

على الايمان في قصة المعراج (۲) او ده به جواب ورکاوه چې د معراج نبوي قصه به يې درواغ بلل (۳) ثم هجرته مع رسول اللهﷺ (۴) وترک عياله واطفاله في مکة وکان رفيقه في الغار (۵) وکمال حزنه وقت وفاتهﷺ (۶) او خطبه يې وويل او خلکو ته يې د تسکين او ارام دپاره کېږنه ورکړه (۷) او ده خطبه وويل چې صحابه رضي الله عنهم دي په اجماع خليفة المسلمين وټاکی (۸) او بعض کسان چې وروسته د عليه الصلوة والسلام تر وفات مرتد سوه د هغو سره يې سخت جنګ وکړی (۹) او عراق او شام ته يې لښکرونه واستول چې هغه دوه ولايته يې فتح کړه الى غيرها من مناقبه العالية او اخير د مناقبو يې دا ؤ چې خلافت يې و عمر بن الخطابؓ ته وسپاره په خپل ژوند کې چې مريض ؤ.

## وَكُلًّا وَعَدَ اللَّهُ الْحُسْنَىٰ

"وکلا" التنوين عوض من المضاف اليه ای کل واحد من الفريقين لا الاولين فقط، روح المعاني "وعد الله الحسنٰی" يعني المثوبة الحسنٰی يعني ښه ثواب چې جنت دی کما روی عن مجاهد وقتادة لکن احتمال ددې هم سته چې مراد دې عام تر جنت وي چې نصر پر اعداء الله والغنيمة دی.

**پوه سه:** چې ابن عامر او عبد الوارث کل په رفع سره وايي نو ظاهره دا ده چې کل مبتداء ده والجملة بعده خبره او عائد و مبتداء محذوف ته دی ای وعده.

**سوال:** کل خو نکرة دی هو څرنګه يې ابتدائيت صحيح دی؟

**ځواب:** قد مر آنفًا ان تنوينه عوض من المضاف اليه فافهم.

**سوال:** نحات د بصرة حذف د عائد له خبر څخه د مبتداء روا نه بولي ويقولون لايجوز الا في الشعر لان الشعر مکان الضرورة البته په جمله کي د صفت يې روا بولي؟

**ځواب:** د قرائة د کل په رفع پر دوی دليل دی چې روا دی لانه لا يمکن جعل الجملة خبرًا الا بحذف العائد.

## وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ ﴿١٠﴾

يعني پر ظاهر ستاسي او پر باطن ستاسي نو مطابق د هغه سره به تاسي ته جزاء درکوي، نو دا ايت هم وعد او هم وعيد دی.

مَنْ ذَا الَّذِي يُقْرِضُ اللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا فَيُضٰعِفَهٗ لَهٗ وَلَهٗۤ اَجْرٌ كَرِيْمٌ ﴿۱۱﴾

څوک دی هغه سړی چي خدای ته قرض ورکړي، د ایت معنی یا دا ده یقرض عباد الله بحذف المضاف وفيه حث للاغنياء على اعطاء القرض للمحتاجين من عباد الله حيث عبر سبحانه وتعالى قرضهم قرضًا عليه تعالى، یا معنی دا ده چي انفاق في سبيل الله يي وکړی په امید ددې چي ما ته به خدای عزوجل عوض راکړي. نو دا نفاق في سبيل الله نو دا نفاق خدای عزوجل پر ځان وبالی مجازًا ليدل على التزام الجزاء "قرضًا حسنًا" يعني په کامل اخلاص سره او ښه د اموالو او په ښه جهاتو کي "فيضاعفه له" يعني دوه چنده عوض به وکړي من عشرة الى سبعمائة ضعف الى ما شاء الله تعالى "وله اجر كريم" دا جمله حال ده من الضمير المنصوب في يضاعفه يعني د اجر چي د اضعاف هم ورسره دی پر ښه اجر دی في نفسه ينبغي ان يتنافس فيه المتنافسون.

يَوْمَ تَرَى الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنٰتِ يَسْعٰى نُوْرُهُمْ

**پوه سه:** چي اظهر او مطرد نصب د یوم په اذکر مقدر سره دی په دې کي تفخیم دی او تعظیم دی د ورځي، او رؤية بصري دی او مخاطب په "ترى" سره كل من يتأتى منه الرؤية، يا سيد المخاطبين ﷺ "يسعى نورهم" اى نور التوحيد والطاعات. دا نور د دوی ورسره پر صراط بلكه اينما كانوا او دا نور دليل دی د دوی و جنت ته.

**فائده:** دا نور مختلف دی په سبب د اعمالو او طاعاتو د دوی يعني په مسافت او تېز والي کي.

بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ وَبِاَيْمَانِهِمْ

په دمخه خوا کي د دوی او پر راسته خوا د دوی، بعض مفسرين وايي چي مراد ټوله جوانب د دوی دي فعبر عن الكل بالجزء اخرج ابن ابى شيبة وابن جرير وابن المنذر وابن ابى حاتم والحاكم وصححه. وابن مردوية عن ابن مسعود رضي الله عنه انه قال چي دوی ته يعني مؤمنين او مؤمنات ته على قدر اعمالهم چي دوی پر پل صراط تېرېږي د بعض نور لکه جبل د بعض نور لکه د خورما درخته وادناهم نورًا من نوره على ابهامه يطفئ مرة ويقد اخرى (چي يو وار مړ سي او بيا بل سي)

**پوهه:** چي دديې حديث ظاهرپر دې دلالت کوي چي دا نور فقط پر صراط ورسره وي، لکن الحق ان النور کان قبل ذالک ويستمرر معهم اذا علی مروا علی الصراط کمامر من قبل.

**فائده:** تخصيص ددې دوو جهتو چي يې وکړی لان السعداء ای المؤمنين والمؤمنات يؤتون صحائف اعمالهم (عمل نامې ددوی) د دغو دوو جهتو څخه کما ان الاشقياء يعني الکفار دوی ته ورکول کېږي عمل نامې د دوی په چپه لاس يا د شاه له خوا څخه.

بُشْرٰىكُمُ الْيَوْمَ جَنّٰتٌ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ؕ ذٰلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ۚ

زېری کوم پر تاسي د جنتو. قائل ددې قول ملکي دي کماهو الاظهر. بهېږي لاندي تر درختو د جنت او تر بنګلو د دوی څخلو ويالې (اوبه، شيدې، عسل او شراب) تاسي به ابد الاباد ياست په دغو جنتو کي بلا موت ولا هرم ولا غم ولا حزن، دغه نور او بشرٰی بالجنة المخلدة، دا کاميابي ده لويه.

**پوهه:** چي اليوم ظرف دی د بشرکم.

يَوْمَ يَقُوْلُ الْمُنٰفِقُوْنَ وَالْمُنٰفِقٰتُ لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوا انْظُرُوْنَا نَقْتَبِسْ مِنْ نُّوْرِكُمْ ۚ

هغه ورځ چي وايي به منافقان او منافقات وهغو کسانو ته چي په دنيا کي يې د زړه له اخلاصه ايمان راوړی ؤ، موږ ته انتظار وکړئ چي موږ درپسي درورسېږو چي موږ استفاده ستاسي څخه وکړو يعني ستاسي په نور کي موږ هم روان سو، ولم يکن للمنافقين نوريوم القيامة لانه لم يکن لهم نور الايمان الخالص.

**پوښتنه:** دا سوال د انظرونا يوازي منافقان ولي کوي نور کافران يې ولي نه کوي؟

**ځواب:** منافقانو خو په دنيا کي ځايونه نفاقانه د مؤمنانو د جماعت څخه بلل.

قِيْلَ ارْجِعُوْا وَرَآءَكُمْ فَالْتَمِسُوْا نُوْرًا ؕ

وبه ويل سي (په روايت کي د ابن عباس رض دا قائلين مؤمنان دي او په روايت د مقاتل رح دا قائلين ملکي دي) تاسي ترشا ولاړ سئ (ابن عباس رض وايي ای من حيث جئتم من الظلمة او الی المکان الذي قسم فيه النور کما صح عن ابی امامة رض) دوی طلب د نور وکړي، وقيل ارجعوا الی الدنيا.

**درويش وايي:** چې دا امر د تعجيز دی.

**پوښتنه:** مؤمنان يا ملکي ولي دا ورته وايي او سره دده چې مؤمنان يا ملکي خو په دې پوهيږي چې دا کار نه کيدونکی دی؟

**ځواب:** مقاتل وايي وهذا استهزاء بهم لکه دوی يعني منافقانو به په دنيا کي په مؤمنانو سره پسخند واهه حيث قالوا آمنا وماهم بمؤمنين، او په دنيا کي به چې د دوی رئيسانو يعني مجاهر کافرانو به دوی ته وويل چې تاسي ولي د مسلمانانو سره په لمونځو وغيره کي ګډون کوئ دوی به ورته ويل انما نستهزء بهم، کريمه: الله يستهزء بهم يعني حين يقال لهم ارجعوا ورائکم الآية، ابو امامة وايي چې دوی ته چې دا وويل سي ارجعوا ورائکم نو دوی ولاړسي و هغه ځای ته چې تقسيم د نور پکښې دی هيڅ شی د نور نه کړي پيدا بيرته چې دوی رجوع و مؤمنانو ته کوي په منځ کي حجاب پيدا سي کما يأتي في الآية الآتية، نو دا جزاء د خدای ده دوی ته چې په دنيا کي د مؤمنانو سره دوی کاوه، کريمه: يخادعون الله وهو خادعهم، وقد مر تفصيله في تفسير سورة البقرة.

## فَضُرِبَ بَيْنَهُمْ بِسُوْرٍ لَّهٗ بَابٌ ط

"فضرب بينهم" ای بين المؤمنين والمنافقين "بسور" يو ديوال بين شق الجنة وشق النار (بعض علماء وايي چې دا سور بين الجنة واهل النار چې پر هغو اهل اعراف چې اهل جنت هم ويني او اهل النار هم ويني، کريمه: وعلى الاعراف رجال الآية) هغه دروازه لري (يدخل فيه المؤمنون)

## بَاطِنُهٗ فِيْهِ الرَّحْمَةُ وَظَاهِرُهٗ مِنْ قِبَلِهِ الْعَذَابُ ﴿١٣﴾

(ای باطن او الباب) "فيه الرحمة" لانه يلى الجنة "والظاهره" ای خارج السور "من قبله" ای من جهته الظاهرة العذاب لانه يلى النار.

**درويش وايي:** چې البغوي وايي په روايت د ابن عمر چې دغه سور چې په قرآن کي خدای ذکر کړی دی بسور له باب هو سور بيت المقدس، الشرقي باطنه فيه المسجد وظاهره من قبله العذاب، يوه شيله ده چې وادي جهنم يې بولي، وقال ابن شريح وکان کعب يقول مثل ذالک، وقال ابن عطية هو بعيد جدًا ورد عليه صاحب روح البيان.

**درویش وایي:** چي د دې سور په باره کي اقوال مختلفه دي نو زه نه غوارم چي متعلمين د تفسير په تشويش کي واچوم، روح المعاني او روح البيان يې علمي تحقيق کړی دی، روح المعاني په اخير کي وايي چي په باره کي د سور د بيت المقدس احاديث وارده صحيح سي فلا بد من الايمان به لعدم خروج من دائرة الامکان انتهی، فقير وايي: چي الله اعلم بمراده في کتابه.

يُنَادُوْنَهُمْ اَلَمْ نَكُنْ مَّعَكُمْ

ناري وهي منافقين و مؤمنانو ته چي سور د دوی تر مابين حائل وګرځي (او دوی د ظلمت په څاه کي پاته سوه) آيا موږ ستاسي سره نه ؤ په دنيا کي نصلي ونصوم معکم.

قَالُوْا بَلٰی وَلٰكِنَّكُمْ فَتَنْتُمْ اَنْفُسَكُمْ وَتَرَبَّصْتُمْ وَارْتَبْتُمْ وَغَرَّتْكُمُ الْاَمَانِيُّ

مسلمانان ورته وايي چي هو هغه خو واست يعني في الظاهر، لکن تاسي په فتنه کي يعني په هلاک کي اچولي خپل ځانونه بالنفاق والکفر باطنًا او شهوات او نور معاصي مو پر کار اچولي وه چي هغه همه وهمه فتني وې "وتربصتم" او تاسي انتظار کاوه چي پر مؤمنانو د زمانې حوادث مسلط سي، او يا بمحمد ﷺ د موت حادثه راسي فنستريخ منه "وغرتکم الاماني" او تاسي غولولي واست امانيو، جمع د امنية يعني بې ځايه اميد من نزول الدوائر علی محمد ﷺ والمؤمنين.

حَتّٰی جَآءَ اَمْرُ اللّٰهِ وَغَرَّكُمْ بِاللّٰهِ الْغَرُوْرُ ﴿۱۴﴾

تر هغه وخته پوري چي امر د خدای پر تاسي راغلی يعني الموت، او تاسي خطايستلي واست پر امهال د خدای شيطان، يا د دنيا جاه و جلال، شيطان به دوی ته په وسوسه اطمنان ورکاوه بان الله کريم لا يعذبکم، يا به يې ورته ويل لا بعث ولا نشور.

فَالْيَوْمَ لَا يُؤْخَذُ مِنْكُمْ فِدْيَةٌ وَّلَا مِنَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ؕ

نن ورځ يعني د قيامت په ورځ ستاسي څخه نه غوښتل کېږي بدل او عوض د نفاق او کفر ستاسي.

**پوښتنه:** فاعل د لايؤخذ خو فديه دی او هغه مؤنث دی نو ولي يؤخذ په مذکر صيغه ذکر سو؟

**ځواب:** اول خو فديه مؤنث غير حقيقي دی، په نحو کي قانون دی چي مؤنث غير حقيقي تذکير او تانيث دواړه روا دی، او بل جواب دا دی چي د فعل او فاعل تر مابين فصل موجود دی يعني په منکم سره چي په دې سبب هم تذکير او تانيث دواړه په فعل مسند کي روا دي "ولا من الذين کفروا" او نه فديه غوښتل کېږي د کافرانو څخه يعني جهارًا وعلانية.

مَأْوٰىكُمُ النَّارُ ۖ هِيَ مَوْلٰىكُمْ ۖ وَبِئْسَ الْمَصِيرُ ۝

او ستاسي ټولو ځای د قرار اور دی، دا اور چي دی ستاسي بادار دی تهکمانه يعني د پسخنده دا ورته وويل سي يا معنی داده اولی تاسي لره اور دی لوجود سببه فيکم، او بد ځای دی د ورتلو يعني النار وهي المخصوص بالذم المحذوف دی، ابن ابی شيبة په خپل کتاب کي د ابن ابی حاتمؒ څخه او هغه د مقاتل بن حبانؒ څخه روايت کړی دی په اصحابو کي د عليه الصلوة والسلام خندا او مسخرې بعض اوقات نمايان سوې، فنزلت.

اَلَمْ يَأْنِ لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَنْ تَخْشَعَ قُلُوْبُهُمْ لِذِكْرِ اللّٰهِ وَمَا نَزَلَ مِنَ الْحَقِّ ۙ

آيا نه دی رسېدلی وخت وهغو کسانو ته چي ايمان يې راوړی وي.

**پوهه سه:** چي يأذن مشتق د آن څخه دی چي معنی يې وخت دی "ان تخشع" چي وېرېږي او نرم سي او عجز وکړي زړونه د دوی لاجل ذکر الله يعني القرآن، او يا د ذکر څخه مراد ذکر لساني او قلبي دی چي هغه سبب د خشوع د زړو دی.

**درويش وايي:** چي دا توجيه ظاهره ده من عطف قوله تعالی "وما نزل من الحق" ولي چي د ما انزل څخه خو يقينًا قرآن مراد دی.

**سوال:** پر اوله ترجمه د ذکر الله چي مراد ځني قرآن سي عطف د شي پر ځان نه لازمېږي او که څرنګه؟

**ځواب:** عطف د شي پر ځان په تغاير د عنوان روا دی بالاتفاق يعني قرآن مبارک هم ذکر الله دی په اعتبار د افادهٔ د خشوع او امتثال لاوامره والانتهاء عن مناهيه او هم ما نزل من الحق دی، البغويؒ وايي چي عبد الله بن مسعودؓ وويل ما کان بين اسلامنا وبين ما بينا الله بهذه الآية الا اربع سنين، او ابن عباسؓ وايي

چي دا عتاب الهى په دې ايت کې (١٣) کاله تر نزول د قرآن وروسته وُ، په فضائلو کې ددې آيت عبدالله بن المبارک رحمه الله وايي چي زه د ځوانۍ په وخت کې په يو باغ کې روان وم او يو انديوال هم راسره وُ فاكلنا و شربنا (دودۍ مو وخوړل او شراب مو وڅښل) وکنت مولعًا (زه حريص وم) يضرب العود (پر وهلو د رباب) نو مي راواخستی رباب د شپې چي وه يې وهم فنطق العود په ځاى کې د غزلو دا ايت ووايه الم يأذن للذين امنوا الخ. رباب مې پر ځمکه مات کړی او ټوله هغه کارونه چي زه يې له خدايه مشغولولم توبه مي ځني وکښل. سعدي رح ميگويد:

سر از جيب غفلت بر آور کنون ..... که فردا نماند بحسرت نگون

کنون بايد اى خفته بيدار بود ..... چو مرگ اندر آرد زخوابت چه سود

زهجران طفلى که در خاک رفت ..... چه نالی که پاک آمد وپاک رفت

تو پاک امدی بر حذر باش وپاک ..... که ننگست ناپاک رفتن بخاک

يو بل شاعر خپل ځان ته نصيحت کوي بلکې هر چاته

ياد دارى زروز زادن تو ..... خلق خندان بودند وتو گريان

همچنان زى که روز مردن تو ..... خلق گريان باشند وتو خندان

(يعني چي پيدا سوې مور او پلار او نورو اقرباوُ دي خندل چي خداى زوی راکړی، او تا ژړل چي د مور ځخه دي پيوند په چاره پرې سو، نو ته داسي ژوند وکړه چي په ورځ د مرگ ستا خلک ژاړي يعني ستا مور، پلار او اقرباء چي ځوان زوی مي وفات سو، او ته خاندې يعني خوشحاله يې ولې ملک الملک درته ويلي وي، يا ايتها النفس المطمئنة ارجعي الى ربک راضية مرضية.

وَلَا يَكُونُوا كَالَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ مِن قَبْلُ فَطَالَ عَلَيْهِمُ الْأَمَدُ

"ولايكونوا" اى الذين آمنوا، منصوب دى محلاً عطف دى پر تخشع واقع تران لاندي دى، لکه هغه کسان چي دوی ته کتاب ورکړه سوی وُ دمخه يعني اليهود والنصارى.

**پوهه:** چي قبل مبني بر ضمه دى جبرًا عن حذف المضاف اليه دى قبلكم كما بين في النحو "فطال عليهم الامد" معطوف دى اوتوا، نو اوږده سوه زمانه پر دوی يعني د دوی او نبيانو تر منځ، يا مراد دادئ چي اوږده سوه زمانه د عمر د دوی په كفر او گنهو کې او هغه بيره چي دوی ته د تورات او انجيل د خوا وه له زړو ځخه يې ووتل.

فَقَسَتْ قُلُوبُهُمْ وَكَثِيرٌ مِّنْهُمْ فٰسِقُوْنَ ﴿۱۶﴾

نو سخت سوه زړونه د دوی (والقسوة غلظ القلب چې د متابعت د شهواتو پیدا کېږي فهي كالحجارة او اشد قسوة) او ډېر د دوی له دین څخه خارج او مافي كتابهم یې پرې ایښي دي بالكلية د ډېر قسوة له کبله.

اِعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ يُحْيِ الْاَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا ۚ

پوه سئ چې خدای عزوجل ژوندی کوي مځکه په نباتاتو سره وروسته تر مرګ د دوی یعنې چې نباتات یې په سبب د ژمي قطع سوي وه.

**فائده:** دا يو مثال خدای پاک وایي چې احیاء د قلوبو قاسيه ؤ داسي ده لکه چې مړه مځکه په باران سره ژوندی کېږي، نو زړونه په ذکر او تلاوت سره ژوندي کېږي او لاحياء الاموات يوم القيامة ترغيبًا الخشوع وترک القسوة.

قَدْ بَيَّنَّا لَكُمُ الْاٰيٰتِ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ ﴿۱۷﴾

په تحقیق موږ بیان کړه آیات قرآنیه لپاره د دې چې ستاسي کمال ته د عقل ورسېږي نو تاسي به فوز پیدا کړئ پر سعادت د دنيا او آخرت کې.

اِنَّ الْمُصَّدِّقِيْنَ وَالْمُصَّدِّقٰتِ وَاَقْرَضُوا اللّٰهَ قَرْضًا حَسَنًا

**پوه سه:** چې ابن کثیرؒ او ابو بکرؒ له عاصمؒ څخه په روایت په تخفیف د صاد یې وایي په دواړو لفظو کي چې مشتق د تصديق څخه دی یعني المؤمنين والمؤمنات، او جمهور قراء یې په تشدید د صاد وایي چې تا یې په صاد کي مدغمه کړې ده چې معنی یې صدقه ورکونکي نر او ښځه ده، یعني چې خدایﷻ ته قرض ورکړي قرض حسن یعني په طیب النفس والاخلاص، عطف دی پر معنی د فعل په ماقبل کي لان المعنى هنالک الذين صدقوا او تصدقوا.

**فائده:** د قرض حسن پر تصدق ددې سببه دی چې معتبر په تصديق کي اخلاص دی یعني دون النفاق او دغه رنګه معتبر په تصدق کي اخلاص دی یعني دون الرياء والسمعة.

يُضٰعَفُ لَهُمْ وَلَهُمْ اَجْرٌ كَرِيْمٌ ﴿۱۸﴾

خدایﷻ به مضاعف ثواب ورکړي دوی ته بعشرة الامثال الى سبعمائة الى

ماشاء الله، او دوی لره به ثواب دی یعني زائد پر تضعيف الاجر، ولعل هو رؤيته تعالى في الجنة.

**پوه سه**: چي په ضمير کي د هم تغليب دی د مذکر پر مؤنث فافهم.

وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِاللّٰهِ وَرُسُلِهٖٓ اُولٰٓئِكَ هُمُ الصِّدِّيْقُوْنَ ۖ

او هغه کسان چي ايمان يې راوړی دی پر خدای (بالتوحيد) او پر تولو رسولانو د خدای، هم دغه کسان دي (هم ضمير فصل دی للحصر) مبالغ دي في الصدق کي يا په تصديق کي بجميع ماجاء به الله في القرآن ورسولهﷺ.

**فائده**: ددې ايت څخه دا معلومه سوه چي روا دی اطلاق د صديق پر هر مؤمن باندې نو ځکه مجاهد وايي كل من آمن بالله ورسوله فهو صديق، كذا قال عمرو بن ميمونؒ، او الصديق تر دې خاص معنی هم سته وهو من اکتسب کمالات النبوة بالوارثة والتبعية او هم دغه خاص معنی مراد ده في قوله تعالى فاؤلئک مع الذين انعم الله عليهم من النبيّن والصديقين والشهدآء والصالحين.

وَالشُّهَدَآءُ عِنْدَ رَبِّهِمْ ۖ لَهُمْ اَجْرُهُمْ وَنُوْرُهُمْ ۖ

يا شاهدان دي د انبياء سابقين پر امتو د هغو چي هغه امتونه له تبليغ څخه د انبياء منکر سي "عند ربهم" وهو قول ابن عباسؓ وجماعة، وقال مقاتل بن سليمانؒ هم الذين استشهدوا في سبيل الله يعني في الجهاد مع الكفرة "لهم اجرهم ونورهم" اى الثواب الموعود والنور الموعود لهم من جانب الله.

وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَكَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَآ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ الْجَحِيْمِ ۟

او هغه کسان چي کافران وي او تکذيب د اياتو زموږ کوي يعني القرآن دغه کسان دي مصاحبان د دوږخ يعني خالدين فيها فان الصحبة تدل على الملازمة في عرف العربية كما قالوا في اصحاب رسول اللهﷺ الملازمين له.

اِعْلَمُوْٓا اَنَّمَا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا لَعِبٌ وَّلَهْوٌ وَّزِيْنَةٌ وَّتَفَاخُرٌۢ بَيْنَكُمْ

پوه سئ چي ژوند د دنيا، مراد له ژوند څخه د دنيا هغه شيان دي چي د خلکو رغبت ورته کېږي من الاموال والاولاد والجاه والجلال، يعني چي توصل نه په

کبړي و منافع ته د آخرت کالطاعات والذکر والتسبیح والتهلیل الی غیر ذالک "لعب" ساتېرې دی۔

**پوهه:** چي لعب سره د ما عطف علیه خبر د الحیوة الدنیا دی، والمعنی لا فائدة فیها، ولي چي نفع يې لږه ده نظرًا الی مایفید في الاخرة سریعة الزوال ولذالک سمي لعبًا لکه کوچنیان چي په خاورو کي سات تېروي "ولهو" اللهو ما یمنع الناس عن امر مهم من امور الآخرة "وزینة" یو ښائست دی کالملبوسات الفاخرة والمراکب لکه په اوسنی زمانه کي قسم قسم لوړ قیمته موټران او بنګلې لوړي لوړي۔

"وتفاخر بینکم" او یو پر بل فخر کول په موجوده شیانو کي چي په نېز د خدای عزوجل په هیڅ نه ارزي لانها فانیة.

وَتَكَاثُرٌ فِي الْأَمْوَالِ وَالْأَوْلَادِ كَمَثَلِ غَيْثٍ أَعْجَبَ الْكُفَّارَ

او ډېرتوب په اموالو او اولادو کي یعني یو پر بل مباهات کول دي (یعني الفخر).

**پوهه:** چي جمله د انما الحیوة الدنیا الخ قائم مقام د مفعول د اعلموا ده.

بازیچه ایست طفل فریب این متاع دهر
بی عقل مرد آنکه بدو مبتلا شود

وفي الحدیث الصحیح مالي وللدنیا انما مثلي ومثل الدنیا کمثل راکب قام في ظل شجرة في یوم صائف (د دوبي ورځ) ثم راح وترکها (ماپښین ځني راهي سو درخته يې پرېښوول)

جهان ای پسر ملک جاوید نیست ...... زدنیا وفاداری امید نیست

قال علي لعمار ﷺ: غم مه کوه پر دنیا یعني چي دنیا نه لرم، ولي چي دنیا شپږ شیان دي: مطعوم، مشروب، ملبوس، مشموم، (د بویدو شی) و مرکوب (د سپرتیا شی) ومنکوح (ماینه ده) فاکبر طعام الدنیا العسل، وهو ریقة ذبابة (تاري دي د مچ مچی) واکبر شرابها الماء ویتسوي فیه جمیع الحیوانات، واکبر الملبوس الدیباج (وریښم دي) وهو نسج دودة (ودل دي د چنجیانو) چي دودة القزيې په عربي بولي، واکبر المشموم المسک وهو دم ظبیة (وینه د هوسی ده) واکبر المرکوب (یعني في سابق الزمان) الفرس وعلیها یقتل الرجال، واکبر المنکوح النساء وهو مبال في مبال (یو د بولو ځای د نر دی بل د بولو ځای د ښځي

دی یعني في حالة الجماع "کمثل غیث" په شان د باران "غیث" بل خبر دی د مبتداء سابقي یعني الحیوة الدنیا.

**بوه سه:** چي کمثل یا په محل کي د رفع دی چي خبر د مبتداء محذوفي دی ای هي ای الامور المذکورة یا په محل کي د نصب دی حال دی له ضمیر څخه د في لعب.

**سوال:** لعب خو اسم جامد دی نو ضمیر څرنګه پکښې دی؟

**ځواب:** په لعب کي معنی د وصفیت سته ای کائن في لعب، روح البیان.

**فائده:** غیث هغه باران ته وایي چي محتاج الیه وي چي استغاثه خلګ کوي د نه اوریدو په سبب د جدب (خشک سالی) عند قلة الماء في العیون (په چینو کي) والبحار (په رودو کي) والقنوات (په کاریزو کي) والآبار (په څاهانو کي) فالغیث المطر النافع بخلا المطر فانه یعم النافع والضار "اعجب الکفار" په قاموس کي وایي چي کافر زارع (کښته ګر ته وایي) لان معنی الکفر الستر والزارع یستر البذر (تخم) په مځکه کي او کفار مبالغه د کافر په معنی د زارع، او هم په دې معنی کافر مصطلح ته کافر وایي ولي دی هم حق په باطل سره پټوي، والکافر قبر ته هم وایي لانه یستر المیت، کما جاء في الحدیث اهل الکفور اهل القبور، او شپې ته هم کافر وایي لانه یستر الاشیاء بظلمته، او مظهري د مفسرینو څخه مخالفه معنی د کفار کړې ده، یعني کفار یې جمع د کافر بللې ده بالمعنی المصطلح فارجع الیه، په هر حال دا تمثیل دی د امور د دنیا في سرعة زوالها

**نَبَاتُهُ ثُمَّ يَهِيجُ فَتَرَاهُ مُصْفَرًّا ثُمَّ يَكُونُ حُطَامًا ۖ وَفِي الْآخِرَةِ عَذَابٌ شَدِيدٌ**

نو نبات د هغه غیث چي ښه ښه کښتونه یې راشنه کړه "ثم یهیج" وروسته بیا وچ سي دا کښت سرسبز چي وخت یې پوره سي "مصفرًا" ژړ ووي ته وینې (ای مخاطب غیر معینه) بیا وروسته یې مات کړي چي لوی یې کړي، کذا في القاموس، او په قیامت کي سخت عذاب دی یعني کافرانو لره چي عمرونه د دنیا په لهو او لعب وغیرهما کي تېر کړی ؤ، او د آخرت لپاره یې هیڅ کار نه ؤ کړی چي د آخرت د کار رئیس اعظم الایمان بالله ورسوله وکتابه دي.

**وَمَغْفِرَةٌ مِّنَ اللَّهِ وَرِضْوَانٌ ۚ وَمَا الْحَيَاةُ الدُّنْيَا إِلَّا مَتَاعُ الْغُرُورِ**

او بخښنه د ګنهو له جانبه څخه د خدای عزوجل او رضا ده د خدای، ولي چي

دوی له دار الغرور څخه ده وکړه او د دار الخلود لپاره يې سرمايه برابره کړي يعني الايمان والطاعات والاذکار وغيرها، او نه دی ژوند د دنيا مګر سبب د غوليدو د شيطان دی يعني د هغه چا لپاره چي د دنيا په ژوند کي يې طلب د آخرت نه وي کړی کالکفرة الفجرة، واما المؤمنون فحيوة الدنيا لهم بلاغ الى ماهو خير منها وهو جنت النعيم دار الخلود.

سَابِقُوٓا۟ إِلَىٰ مَغْفِرَةٍ مِّن رَّبِّكُمْ وَجَنَّةٍ عَرْضُهَا كَعَرْضِ ٱلسَّمَآءِ وَٱلْأَرْضِ

سبقت وکړئ.

**درويش وايي:** چي لفظ "سابقوا" مستعار دی له مسابقي څخه د خلکو يو تر بل په اسپ دواني کي، يا د سيکلانو په چلولو کي الى غير ذالک من المسابقات المروجة في الازمان والرجال، والمعنى سارعوا وبادروا "الى مغفرة" ولويي بخښني ته د خدای (فالتنوين والتنكير للتعظيم) "من ربكم" اى كائنة من ربكم يعني واسبابو ته د عظيم مغفرة بالاستغفار والتسبيح والتهليل وسائر الاعمال الصالحة القلبية من الخشوع والخوف والرجاء والاعمال بالدنية كالصلوة المفروضة والسنن والنوافل والمالية كالزكوة المفروضة وصلة الرحم واعطاء اليتامى والفقراء وغير ذالک "وجنة" او جنت (اسم جنس دی) او پسور د هغه جنت لکه پسور د اوو اسمانو او د اوو مځکو دی چي ټول له سره متصل کړل سي. واذا كان العرض كذالک فطولها اكثر منه كما هو المعتاد كذا قال السدي يعني ان اللام في السماء والارض للاستغراق.

أُعِدَّتْ لِلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ بِٱللَّهِ وَرُسُلِهِۦ

چي آراسته او جوړ سوی دغه جنت لپاره د هغه کسانو (يعني المؤمنين والمؤمنات) چي ايمان يې راوړی وي پر خدای يعني بالتوحيد وسائر صفات الجلال والجمال، او پر رسولانو د خدای يعني پر ټولو لا کاليهود حيث آمنوا بموسىٰ فقط لا بعيسى ولا بمحمد ﷺ وکالنصارى حيث آمنوا بعيسىٰ فقط لا بموسىٰ ولا بمحمد عليهم السلام.

فوائد هذه الآية: له دې څخه دا معلومه سوه چي جنتونه اوس هم مخلوق دي بقرينة صيغة الماضي اعني اعدت وان الايمان وحده يعني بالله ورسوله كاف في

استحقاقها وان الايمان بالله لايفيد مالم يؤمن برسله وهذا ثابت باجماع اهل السنة والجماعة.

ذٰلِكَ فَضْلُ اللّٰهِ يُؤْتِيْهِ مَنْ يَّشَآءُ

دغه موعود فضل د رب جل وعلا دی (يعني واجب پر خدای نه دی كما هو المذهب المعتزلة) ورکوي يې هغه چاته چي اراده يې ورته وسي.

**پوه سه:** چي معتزله وايي چي ثواب د مطيع او عذاب د عاصي پر خدای واجب دي، خذلهم الله

**پوه سه:** چي د اهل السنة په نيز دخول د جنت په صرف فضل د خدای دی او درجات يې په عملو پوري اړه لري، كما روى هناد في الزهد عن ابن مسعود تجوزون الصراط بقدرة الله وتدخلون الجنة برحمة الله، وتقيمون في المنازل باعمالكم.

وَاللّٰهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيْمِ ﴿٢١﴾

او خدای عزوجل د لوی فضل څښتن دی.

مصرع: باكريمان كارها دشوار نيست

چو روی بخدمت نهی بر زمين ..... خدا را ثناگوی وخود را مبين

اميدی كه داری بفضل خدا است ..... كه بر سعی خود تكيه كرده خطا است

مَاۤ اَصَابَ مِنْ مُّصِيْبَةٍ فِي الْاَرْضِ وَلَا فِيْۤ اَنْفُسِكُمْ اِلَّا فِيْ كِتٰبٍ

نه رسيږي يو مصيبت په ځمكه كي (چي باران نه وي د كښت او د كرهڼې امكانات كم وي) او نه ستاسي په ځانو كي (لكه مريضي يا موت الاحباب، صفت دی د مصيبة) مگر نه چي په كتاب كي ای مكتوب في كتاب وهو اللوح المحفوظ.

مِّنْ قَبْلِ اَنْ نَّبْرَاَهَا ۚ اِنَّ ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ يَسِيْرٌ ﴿٢٢﴾

د مخه تر دې چي موږ يې خلق كوو د هغه مصيبت (ضمير مؤنث راجع يا مصيبت ته دی يا ارض ته يا انفس ته كذا قال المظهري، والظاهر الارجاع الى المصيبة فيشمل ما في الارض وما في الارض فافهم) په تحقيق دا نوشته د ټولو شيانو من العاهات والآفات وغير ذالک پر خدای اسانه ده، كريمه انما امره اذا اراد شيئًا ان يقول له كن فيكون.

لِكَيْلَا تَأْسَوْا عَلٰى مَا فَاتَكُمْ وَلَا تَفْرَحُوْا بِمَآ اٰتٰكُمْ

ددې لپاره دا نوشته په لوح محفوظ کې ده چې تاسې غمجن نه سئ پر هغه شي چې ستاسې څخه فوت سو (يعني نه دروررسېد يعني من نعيم الدنيا) او خوشحالي ونه کړئ په هغه شي چې تاسې ته درکړه سو من نعيم الدنيا.

**پوښتنه:** غم کول پر فائت او خوشحالي کول پر نعمتو د دنيا خو طبعي کار دی نو په نوشته د لوح محفوظ به دا غم او خوشحالي چې ضدين دي څرنګه به دفع سي؟

**ځواب:** د سړي چې دا تصديق چې دا غم او ښاري ټولي مقدر دي من الله عزوجل او په هغو کې تغيير او تبديل نسي کېدای نو غم في الجملة ورته اسانه کېږي او خوشحالي نسبت کمېږي لان العواري ای الامانات لايأسوا بعدمها ولايفرح لوجودها ارباب العقول کما لايخفی.

وَاللّٰهُ لَا يُحِبُّ كُلَّ مُخْتَالٍ فَخُوْرِ

او د خدای تعالی نه دي خوښ چې خيال او تکبر کوي په نعمتو د دنيا "فخور" چې فخر کوي پر خلکو، عکرمه رح وايي ليس احد الا يفرح (يعني بالنعمة) ويحزن (يعني بعدمها) ولکن اجعلوا الفرح شکرًا، والحزن صبرًا، د جعفر الصادق رح څخه روايت دی يا ابن آدم مالک تأسف علی مفقود ولا يرده اليک الفوت، ومالک تفرح بموجود ولا يترکه في يدک الموت.

الَّذِيْنَ يَبْخَلُوْنَ وَيَاْمُرُوْنَ النَّاسَ بِالْبُخْلِ

"الذين الخ" بدل دی له مختال څخه، ولي هغه سړی چې په مال سره خيال او تکبر په مال سره کوي خامخا بخل کوي په مال سره چې خيال او تکبر يې پر ځای پاته سي او خلک هم په بخل سره امر کوي تاچې ملګري يې ډېر سي.

وَمَنْ يَّتَوَلَّ فَاِنَّ اللّٰهَ هُوَ الْغَنِيُّ الْحَمِيْدُ

که چا مخ واړوی ای يعرض عن الانفاق في سبيل الله په تحقيق خدای تعالی غني دی دده له انفاق څخه، ولي چې خدای تعالی دده له اعراض څخه بې پرواه دی (لانه لايضره خدای تعالی ته يې ضرر نه رسېږي دده په اعراض، او دغه خدای تعالی ته فائده نه

رسېږي دده په شکر پر نعمت د خدای." "الحميد" فعيل په معنی د مفعول دی يعني خدای عزوجل محمود في ذاته دی حمده وشکره اولا.

لَقَدْ اَرْسَلْنَا رُسُلَنَا بِالْبَيِّنٰتِ وَاَنْزَلْنَا مَعَهُمُ الْكِتٰبَ وَالْمِيْزَانَ

موږ را استولي رسولان زموږ چي ملکي دي و انبياء ﷺ او د هغو په واسطه و امتو ته د هغو "بالبينات" په دلائلو او معجزاتو سره، او موږ نازل کړي دي سره د هغو رسولانو سره کتاب.

**درويش وايي:** چي په کتابو کي د عقائدو وايي چي رسول هغه چاته وايي چي کتاب پر نازل سوی وي او نبي عام دی که کتاب پر نازل وي او که په کتاب سابق سره عامل او حاکم وي.

**پوښتنه:** په احاديثو شريفه وُ سره ثابته ده چي رسولان (۳۱۳) دي او کتابونه يو سل او څلور دي، فکيف يصح اشتراط الکتاب في الرسول؟

**ځواب:** بعض کتابونه دي مکرر نازل سوي وي کما جاء في الحديث ان سورة الفاتحة نزلت مرتين وان قال البيضاوي ان الاصح انها مکية يعني فقط، او يا دي په بعض کتابونو څه زيادت د احکامو سوی وي يا دي نسخ د بعض احکامو سوی وي وان کانت الزيادة او النسخ جزويا فهذا الاعتبار صار کانه کتاب آخر فافهم والله اعلم.

**پوه سه:** چي حکمت په انزال د کتابو جلا کول دي د حق له باطل څخه او حلال له حرام څخه او عمل صحيح له فاسد څخه.

**پوه سه:** چي ميزان خو ترازو ته وايي بعض مفسران وايي چي مراد دلته عدل دی لان الميزان اللغوي آلة العدل، او مقاتل بن سليمان" وايي چي مراد هو الميزان اللغوي دی، والمراد بانزاله انزال الامر باستعماله تاچي تسويه د حقوقو يې وسي او بعض مفسرين" وايي چي جبرئيل ﷺ ترازو و نوح ﷺ ته راوړي، وقال مر قومک يسوی به الحقوق الدائرة بينهم والله اعلم

لِيَقُوْمَ النَّاسُ بِالْقِسْطِ ۚ وَاَنْزَلْنَا الْحَدِيْدَ فِيْهِ بَاْسٌ شَدِيْدٌ

"ليقوم الناس بالقسط" تاچي خلک پر انصاف او عدل باندي قائم اوسي، ولايظلم بعضهم بعضا په هره معنی چي ميزان واخلې، او موږ نازله کړې ده اوسپنه

(كما في حديث المرفوع عن ابن عمرؓ چي خدایؒ څلور برکاته له اسمانو څخه نازل کړي دي: الحديد، والنار، والملح والماء نو پر دې تقدير انزال پر خپل معنی حقيقي دی، او بعض محققين وايي چي معنی د انزلنا الحديد انشأنا واحدثنا موږ پيدا کړې اوسپنه په خپلو معادنو کي او دوی ته مي ښوولي دي فوائد د اوسپني يا په وحي سره کما قال الله في شان داوٗد ﷺ وعلمناه صنعة لبوس لكن الآية. يعني د زغري چي يو پخواني د جنګ قميص وٗ، او په الهام سره في قلوب بعض الناس ثم وثم الى ان بلغت فوائد الحديد الى ما نراها في الزمان الحاضر "فيه بأس" په اوسپنه کي جنګ دی (يعني آلات د جنګ دي، ولي چي په ټولو آلاتو کي د جنګ اوسپنه لويه برخه لري "شديد" سخت جنګ چي توپونه کلاشنکوفونه حتی جنګي طياري او جنګي آلات اوسپنه يې معظم جزء دی.

**وَمَنَافِعُ لِلنَّاسِ وَلِيَعْلَمَ اللَّهُ مَنْ يَنْصُرُهُ وَرُسُلَهُ بِالْغَيْبِ إِنَّ اللَّهَ قَوِيٌّ عَزِيزٌ ﴿٢٥﴾**

او فائدې د خلکو چي تبر، تېشه، کلنګ، بېلچه، سندان، آره وغيرها له اوسپني څخه جوړيږي "وليعلم الله" عطف دی پر محذوف ای لتقاتلوا في سبيل الله (په دغو آلاتو کي چي د اوسپني څخه جوړيږي) وليعلم الله چي خدای پاک په علم امتيازي سره معلوم کي والا فان الله يعلم الله جميع الاشياء بالعلم الازلي.

"من ينصره ورسله" څوک مرسته او کومک کوي د خدایؒ (ای دينه تعالى) او د رسولانو د خدایؒ "بالغيب" يعني په غيب سره چي خدایؒ يې نه دی ليدلی (حال من الضمير في ينصره) په تحقيق خدایؒ قوي دی يعني په خپل قدرت سره د هر چا هلاک چي وغواړي کولای يې سي، او خدایؒ غالب دی چي مانع د مشيت دده څوک نسي کېدلای.

**وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا نُوحًا وَإِبْرَاهِيمَ وَجَعَلْنَا فِي ذُرِّيَّتِهِمَا النُّبُوَّةَ وَالْكِتَابَ**

لام موطئه د قسم محذوف دی په تحقيق موږ رسولان کړځولي دي نوحؑ او ابراهيم عليهما السلام، بيان او تفسير دی لما سبق من قوله تعالى ولقد ارسلنا رسلنا آه.

**فائده:** دا دوه رسولان چي يې خاص کړه په ذکر سره لفضلهما وکثرة ذريتهما کما يدل عليه مابعد هذه الآية "وجعلنا في ذريتهما النبوة والكتاب" په اولادو کي د دوی نبوت او کتاب (مراد ځني جنس کتاب دی) يعني سبب د تفصيل دا دی

چي موږ ګرځولي په اولادو کي د دواړو نبوت او کتاب، چنانچه څلور کتابونه تورات د موسیٰ ؑ او انجيل د عيسیٰ ؑ او زبور د داؤد ؑ او فرقان د محمد ﷺ انزلت في ذرية ابراهيم وهو من ذرية نوح عليه السلام، په مدارک کي راغلي دي چي مراد له کتاب څخه کتابت بالقلم دی کما روی عن ابن عباس ؓ.

فَمِنْهُم مُّهْتَدٍ وَكَثِيرٌ مِّنْهُمْ فَاسِقُونَ ﴿٢٦﴾

بعض له دوی څخه ای من الذرية او من المرسل اليهم کما يدل عليهم الارسال "مهتد" ای من الذرية، او ډېر له ذرية څخه د دوی فاسقان دي يعني کافران.

ثُمَّ قَفَّيْنَا عَلَىٰ آثَارِهِم بِرُسُلِنَا وَقَفَّيْنَا بِعِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ وَآتَيْنَاهُ الْإِنجِيلَ

ای آثار نوح و ابراهيم ومن ارسل اليهم ولايجوز ارجاع الضمير الى الذرية لان الرسل المقفى بهم کانوا من ذريتهما "رسلنا" زموږ رسولان "وقفينا" موږ وروسته راواستاوه تر هغو رسولانو وروسته قبل محمد ﷺ.

**پوه سه:** چي عيسیٰ ؑ اخير نبي د بني اسرائيلو د نبيانو دی، وروسته زمانه د فترت د رسولانو وه تخمينًا شپږ سوه کاله حتی ارسل الله محمدًا ﷺ من العرب خاتم النبيّن "وآتيناه الانجيل" موږ ورکړی ده ته کتاب په نامه د انجيل.

وَجَعَلْنَا فِي قُلُوبِ الَّذِينَ اتَّبَعُوهُ رَأْفَةً وَرَحْمَةً

موږ وګرځاوه په زړو کي د هغو کسانو چي د عيسیٰ ؑ متابعت يې کاوه "رأفة" محبت او نرمي "ورحمة" مهرباني پر خپلو ورونو نصاریٰ ؤ بلکې پر مؤمنانو د امت د عليه الصلوة والسلام کما کان انموذج تلک الرحمة، رحمة النجاشي چي په دين نصاریٰ ؤ پر مهاجرينو د مؤمنانو چي دده په مملکت کي مهاجر وه چي مشر يې جعفر بن ابی طالب ؓ ؤ، کريمه: لتجدن اقربهم مودة للذين آمنوا الذين قالوا انا نصاریٰ، کريمه: في حال المؤمنين رحماء بينهم.

**درويش وايي:** چي حال د يهودانو قسوة القلب دی يعني چي هيڅ رحمة پر مؤمنانو نه لري.

وَرَهْبَانِيَّةً ابْتَدَعُوهَا

**پوه سه:** چي رهبانية مبالغة ده په عبادت او په رياضة کي! د خلکو سره

ګڼ وي نه کول، او شهوات ټوله پرېښول حتی المباحة فيها كالاكل د ورځي (يعني روژه به یې وه) والنوم بالليل والنكاح وغيرها، منسوب دي و رهبان ته چي پر وزن د فعلان من رهب الى شيئ اى رغب وخشي كخشيان من حشي معطوف دی پر رأفة اى جعلنا في قلوبهم رهبانية "ابتدعوها" چي دوی اختراع کړی وُ دا رهبانيت من قبل انفسهم صفت د رهبانية دی.

**سوال:** چي په اعتبار د عطف د رهبانية پر رأفة خو دا معنی ورکوي وجعلنا في قلوبهم رهبانية، نو ابتداع به د جعل سره د خدای مناقي نه وي؟

**ځواب:** نسبت و خدای ته خو په اعتبار د خلق د خدای په زړو کي د دوی ميل الى الرهبانية حاصل دا چي خدای خالق د رهبانية دی او دوی یې کاسبان دي كما هو المذهب عندنا في جميع افعال العباد.

مَا كَتَبْنٰهَا عَلَيْهِمْ اِلَّا ابْتِغَآءَ رِضْوَانِ اللّٰهِ فَمَا رَعَوْهَا حَقَّ رِعَايَتِهَا

**درویش وایي:** چي که تفسير د آية داسي وکړل سي ما كتبنا شيئًا من خصال الرهبانية پر دوی مگر طلب د رضوان الله نو استثناء متصل ده، ولي طلب د رضوان الله خو په خصال کي د رهبانية داخل دی، او روح البيان وايي چي استثناء منقطع ده لعدم دخول ابتغاء مرضات الله في الرهبانية، ولي چي رهبانية خو د دوی مبتدع کار وُ، فالمعنى ولكن كتبنا عليهم طلب مرضات الله "فما رعوها" دوی رعايت د مرعات د الله ونه کړی يعني ټولو على طريق سلب العموم، دا یې معنی نه ده چي هيڅ چا له دوی څخه مراعات د رهبانية نه دی کړی على طريق السلب الكلي په بل تعبير عموم السلب دی "حق رعايتها" حق يعني کامل مراعات د رهبانية چي دوی پر لازم کړی وُ بلکي بعض هغه مراعات یې پرېښو يعني رياء او سمعه یې په ګډه کړه او ميل یې و دنيا ته وُ، يا عيسیٰ ابن الله بلل يا ثالث ثلاثة خدای یې بولی واخيرها الكفر بمحمد ﷺ مع شهادة الانجيل بنبوته وغيرها من القبائح.

**فائده:** معنى السلب الكلي يا عموم السلب په پښتو دا ده چي فلانی کار هيڅ چا نه دی کړی، د معنی سلب العموم سره منافي نه ده چي ټولو دا کار نه دی کړی، او د سلب جزي سره منافي ده اى السلب الكلي. فتدبر هداک الله.

فَاٰتَيْنَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مِنْهُمْ اَجْرَهُمْ ۚ وَكَثِيْرٌ مِّنْهُمْ فٰسِقُوْنَ ﴿٢٧﴾

نو مونږ ورکړی هغه کسانو ته چې ایمان یې راوړی وي یعني ایمانًا صحیحًا او مراعات د حقوقو د رهبانیة یې په اتم وجه سره کړی وي حتی آمنوا بمحمد ﷺ کما وصی بها عیسی علیه السلام "منهم" ددې ډلي څخه د رهبانیانو "اجرهم" ثواب موعود د دوی پر کمال مراعات د رهبانیت چې دوی پر ځان لازم کړی ؤ، او ډېر د دوی فاسقان دي یعني خارج د اتباع څخه د عیسیٰ ع دی چې قائل بالتثلیث دی او یا باتخاذ الله الولد والصاحبة او یا په دین کې د بادشاهانو فاسقانو داخل سوه، د انس رض څخه روایت دی قال النبي ﷺ لکل امة رهبانیة ورهبانیة امتي الجهاد في سبیل الله دی وفي روایة عن ابن مسعود رض في حدیث طویل قال رسول الله ﷺ رهبانیة امتي الهجرة والجهاد والصلوة والصوم والحج والعمرة الی اخیر الحدیث.

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ وَاٰمِنُوْا بِرَسُوْلِهٖ يُؤْتِكُمْ كِفْلَيْنِ مِنْ رَّحْمَتِهٖ

ای هغه کسانو چې ایمان مو راوړی دی (بالرسل المتقدمة) لکه اصحاب د نجاشي چې نصاری وه او ایمان پر عیسیٰ علیه السلام ؤ، د خدای څخه وېرېږئ او ایمان راوړئ د هغه پر رسول (یعني محمد ﷺ) باندې "یؤتکم" مجزوم جواب د امر دی وکذا مابعده (یعني ویجعل) تاسې ته به خدای درکړي "کفلین" دوې برخې "من رحمته" د خدای له رحمت څخه یعني له ثواب څخه چې یو پر ایمان پر نبي سابق وه او بله برخه پر ایمان بمحمد ﷺ ده.

**پوه سه:** چې مخاطب که نصاری د نجران وي نو دوې برخې د ثواب یوه یې د ایمان پر عیسیٰ ع او پر انجیل ده او بله برخه یې پر ایمان بمحمد ﷺ والقرآن، او البغوي رح وایي چې اکثره مفسرین پر دې دي چې دا خطاب واهل الکتابین (ای التوراة والانجیل) من الیهود والنصاری. فمعنی الآیة یا ایها الذین آمنوا برسوله محمد ﷺ یؤتیکم کفلین من رحمته یعني اجرین، یعني کفل علی الایمان بموسیٰ وکتابه وعیسیٰ وکتابه وکفل علی الایمان بمحمد ﷺ.

وَيَجْعَلْ لَّكُمْ نُوْرًا تَمْشُوْنَ بِهٖ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ۗ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ۙ

او تاسې لره به وګرځوي خدای یو نور چې تاسې به تګ پکښې کړئ یعني په

ورځ د قيامت لکه په دمخه آيتو کي چي ذکر سوه، کريمه: يسعى نورهم بين ايديهم وبايمانهم فهو الضياء الذي تمشون به على الصراط الى ان تصلوا الى الجنة، وعن ابن عباسؓ ان النور هو القرآن وقال مجاهدؒ هو الهدي اي يجعل لكم سبيلاً واضحًا في الدين چي تاسي به لار پيدا کړئ الى جناب القدس وجنات الفردوس "ويغفرلكم" او خدای به دروبخښي ما سبق من ذنوبكم، او خدای بخښونکی دی يعني د ګنهو او علاوه پر هغه مهربان دی پر بندګانو.

**پوه سه:** چي ابن جرير له قتادةؒ څخه روايت کوي قال بلغنا انه لما نزلت يؤتكم كفلين من رحمته حسد اهل الكتاب المسلمين عليها.

**درويش وايي:** چي دا روايت چي قتادهؒ په بلغنا سره راوړی دی او مبلغ يې نه دی معلوم کړی منافي دی د ما ذکرنا سره چي سابق آيتونه په مؤمنينو کي د اهل کتاب نازل سوي دي يعني يؤتكم كفلين من رحمته، او د قتادةؒ له روايت څخه خو صراحةً دا فهمېږي چي سابق آيتونه په مؤمنانو کي د غير اهل کتاب نازل سوي دي والله اعلم، فقير خپل دمخه بيان موافق د روح البيان سره څېړي.

لِّئَلَّا يَعْلَمَ اَهْلُ الْكِتٰبِ اَلَّا يَقْدِرُوْنَ عَلٰى شَيْءٍ مِّنْ فَضْلِ اللّٰهِ

**پوه سه:** چي روح البيان وايي چي لا زائد دی كما في قوله تعالى لابليس (ما منعک ان لا تسجد) که لا زائده نه سي په دې ايت کي نو خو مضمون يې داسي ګرځي چي ابليسه ته څه شي منع کړې د عدم سجدې څخه، منع د عدم سجدې څخه خو سجده ده وهو خلاف الواقع، ويدل على زيادة لا في هذه الآية قرائة ليعلم وقرائة لكي يعلم، فالمعنى ههنا على تقدير زيادة لا تا چي پوه سي هغه اهل الكتاب چي ايمان يې نه وي راوړی پر عليه الصلوة والسلام كما مر في قوله تعالى: اتقوا الله وآمنوا برسوله الخ.

**پوه سه:** چي ان مخفف د مثقل څخه دی واسمها الذي هو ضمير الشان دی محذوف دی، والجملة بعده منصوب محلاً على انها مفعول يعلم ده، وحاصل معنى الآية ليعلمون (اى اهل الكتاب الذين لم يؤمنوا برسوله) چي دوی قدرت نه لري پر يو شي له فضل څخه د خدای من الكفلين من الاجر والنور ومغفرة الذنوب ولي چي دوی يې شرط نه دی پر ځای کړی وهو الايمان برسوله محمد ﷺ.

وَأَنَّ الْفَضْلَ بِيَدِ اللَّهِ يُؤْتِيهِ مَن يَشَاءُ ۚ وَاللَّهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيمِ

او په دې هم پوه سئ چې فضل په قدرت کې د خداى عزوجل دى (دا جمله عطف ده على ان يقدرون) ورکوي هغه چا ته چې د خداى ورته اراده سي، او خداى د لوى فضل مالک او څښتن دى ..... ابيات:

فيض کرم رساندهٔ از شرق تا بغرب ..... خوان نعم نهادهٔ ازقات تا بقات
هستند بهرمند بيش و کم از نوال تو ...... دارند نيک وبد بعطاء تو اعتراف

**درويش وايي:** چې دا احتمال هم مفسرانو تجويز کړى دى چې امر په تقوى او په ايمان دى غير اهل اکتابو ته وي، يعني المؤمنين برسوله فالمعنى اتقوا الله واثبتوا على ايمانكم برسول الله ﷺ يؤتيكم ما وعد الله من آمن من اهل الكتاب من الكفلين من الاجر، في قوله تعالى اؤلئک يؤتون اجرهم مرتين چې معنى د کفلين وه او تر هغو مو نه کموي.

**پوښتنه:** مؤمنان د اهل کتاب خو پر دوو نبيانو ايمان راوړى ؤ نو نور مؤمنان څرنګه د دوى سره برابر کېداى سي؟

**ځواب:** دا نور مؤمنان خو هم دوه ايمانه لري يعني لايفرقون بين احد من رسله نو پر دې تقدير هغه چې په يو روايت کې راغلي دي چې مؤمنانو د اهل الکتابين به فخر کاوه پر نورو مؤمنانو چې موږ ته اجر مرتين راکړه کېږي وادعوا الفضل عنهم، نو دا ايت د مؤمنانو د غير د اهل الکتابين نازل سو کمامر، نو هغه افختار دفعه سو، په صحيح حديث کې راغلي دي چې رسول الله ﷺ به تلاوت کاوه د مسبحاتو سورتو د شپې دمخه تر خوب او دا به يې ويل چې په دغو سورتو کې يو ايت سته چې افضل دى تر زر ايته، والمسبحات هي هذه السور سورة الحديد، سورة الحشر، سورة الصف، سورة الجمعة و سورة التغابن.

**پوښتنه:** رسول کريم ﷺ هغه معين نه کړى او پټ يې وساتى؟

**ځواب:** ددې لپاره چې امتيان کوشش وکړي د ټولو سورتو، لکه چې په ورځ کې د جمعې ساعت د اجابت د دعاء پټ ساتل سوى دى او داغه رنګه ليلة القدر، شيخ سعدي قدس سره وايي:

چـو هر گوشهٔ تیر نیاز افگنی ..... امید است که ناگه صید زنی
همه سنگها پـاس دار ای پسر ..... که لعل از میانش نباشد بدر
غـم جمله خور درهوای یکی ..... مراعات صد کن بـرای یکی

**درویش وایي:** الحمد لله والصلوة والسلام علی رسوله واصحابه چي د تفسير ځخه د (۲۷) جزء د قرآن عزيز په توفيق د الله عزوجل په ورځ د يکشنبي ساعت يوه بجه تخميناً د ماپښين وخت په اخيره ورځ کي د صفر الخير سنه (۱۴۳۳) هـ ق پای ته ورسېدی، د اته ويشتم جزء تفسير به ان شاء الله تعالی ژر شروع سي.

مصرع: ما نیز حاضر میشوم تفسیر قرآن در بغل

الهی عبدک العاصي اتاکا ........ مقر بالذنوب وقد دعاکا
فان ترحم فانت لذالک اهل ........ وان تطرد فمن ترحم سواکا

که ثناء د خدایٔ وایمه شرمېږم
کي نه وایمه د خدایٔ ځخه ېېرېږم
---
نعمتونه د خدای پاک پر ماعاصي
دومره ډېر دي چي په حساب يې نه رسېږم
---
هر نعمت چي زما د شانه وي لائق
خدای راکړی دی ماته زه پوهېږم
---
ددې دومره نعمتو شکر په خوله زما
نه کېدونکی دی او نه زه پسي رسېږم
---
د ثناء ويل نعمت هم د خدای پاک دی
پر ثناء ثناء ويل د چا طاقت دی
---
دا زما دا جزوی ثناء دي خدای منظور کړي
د کريم په لوی دربار کي مقبول کړي

مصرع: با کریمان کارها دشوار نیست

# سورة المجادلة مدنية وهي اثنتان وعشرون اية وثلث ركوعات

بسم الله الرحمن الرحيم

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ وَالصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلٰى خَاتَمِ النَّبِيِّيْنَ وَعَلٰى اٰلِهٖ وَاَصْحَابِهٖ اِلٰى يَوْمِ الدِّيْنِ.

**پوهه:** چي دا سورة سورة المجادلة بولي بفتح الدال وكسرها، او دوهم يې مشهور دی او سورة قد سمع الله يې هم بولي، او په مصحف کي د ابي ؓ سورة الظهار ويل سوی دی او دا سورة په روايت سره د ابن عباس ؓ سيد المفسرين او د ابن الزبير ؓ مدني دی، وهو المشهور في المصاحف وقيل غير ذالک.

## قَدْ سَمِعَ اللّٰهُ قَوْلَ الَّتِيْ تُجَادِلُكَ فِيْ زَوْجِهَا وَتَشْتَكِيْٓ اِلَى اللّٰهِ

په تحقيق واورېدی خدای، کلام د هغې ښځي "تجادلک" ای تراجعک الکلام په شان کي د مېړه چي هغه دې ته لفظ د ظهار استعمال کړی ؤ چي په جاهليت کي طلاق بائن ؤ د ابد لپاره، يعني داسي يې ورته وويل: اَنْتِ عَلَيَّ كَظَهْرِ اُمِّيْ.

**فائده:** د دې ښځي نوم خوله بنت ثعلبة ؤ او د مېړه نوم يې اوس بن بن الصامت ؤ او دا ښځه يعني خوله ډېره ښائسته ښځه وه، د دې مېړه يې له دې څخه خواهش د مېړه او مابيني تر مابين د کار يعني جماع کړی ؤ، دې منع ورته کړې وه، نو مېړه يې ورته وويل انت علي کظهر امي، مېړه يې پر خپله خبره دستي پښېمانه سوی ؤ خوله ته يې وويل: ما ظنک الا قد حرمت علي (ستا څه ګمان دی چي ته پر ما حرامه سوې) مايني يې ورته وويل: والله ما ذاک طلاق (دا خو طلاق نه دی) نو خوله و عليه الصلوة والسلام ته ورغله چي عائشي ؓ د ده مبارک سر وربرېولی، فقالت يا رسول الله ان زوجي اوس بن الصامت تزوجني وانا شابة (زه خو ځوانه وم) مالداره وم او قريبان مي هم درلوده، نو زما مېړه زما څخه مال وخوړی او زما ځواني يې هم تېره کړه او زما قريبان سره متفرق سوه او زه سپين سري سوم، زما مېړه ما ته د ظهار



Scanned by CamScanner

لفظ استعمال كړى او دستي پښېمانه سو، نو اوس بېرته يو داسي لار سته چي ما و دى بېرته سره كورا او كهول سو، يعني لكه پخوا چي وُ؟ عليه الصلوة والسلام ورته وويل حرمت عليه، فقالت اشكو الي الله فاقتي و وحدتي، زه شكايت كوم خداى ته، تعني سوال كوم چي زه فقيره سوم او يوازي سوم، قد طالت صحبتي (زما او دده تر منځ ډېر صحبت وُ) او زما نس دده د عيال ځاى وُ مراد يې جماع وه، فقال رسول اللهﷺ ما اراک الا حرمت عليه ومالم اومر في شانک بشيئ (زه نه يم امر سوى ستا په باره كي په يو شي) بيا به دې عليه الصلوة والسلام ته وويل يا رسول اللهﷺ اشكوا اليک فاقتي وشرة حالي وان لي صبية، زه كوچني عيالونه لرم كه يې زه مېړه ته وسپارم يعني زما او دده تر مابين جدا والى راسي زما عيال "ضاعوا" ضائع كېږي ولي چي نر خو د كوچنيانو تربيه نسي كولاى، او كه يې د ځان سره وساتم "جاعوا" وږي كېږي، ولي چي زه مال نه لرم چي په دوى يې مصرف كړم، او هر وار چي به عليه الصلوة والسلام دې ته وويل ما اظن الا حرمت عليه دې به سر د اسمان و خوا ته پورته كړى او داسي به يې ويل اللهم اني اشكوا اليک زه تا ته شكايت كوم يعني خواست كوم، اللهم فانزل على لسان نبيک، تعني زما په باره كي وحي نازلي كړې چي زه بېرته د مېړه سره يو ځاى سم.

**بوه سه:** چي دا اول ظهار وُ په اسلام كي، نو عائشهﷺ چي د عليه الصلوة والسلام د سر مبارک هغه بل طرفته د پرېولو لپاره ولاړه سوه، خوله ورته وويل چي انظر في شاني جعلني فداک يا رسول الله، فقالت عائشهﷺ يعني خوله ته اقصري حديثک ومجادلتک، بس كړه خپلي خبري او مجادله، اما ترين وجه رسول اللهﷺ ته نه ګورې مخ ته د عليه الصلوة والسلام، ولي پر عليه الصلوة والسلام چي به وحي نازلېدلې رنګ به يې نهايت تغير سو لكه سړى چي څوک خپه كړي، فلما قضى الوحي چي وحي پاى ته ورسېدلې، دا ايتونه نازل سوه.

وَاللّٰهُ يَسْمَعُ تَحَاوُرَكُمَا ۚ اِنَّ اللّٰهَ سَمِيْعٌۢ بَصِيْرٌ ①

او الله اوري خبري ستاسي يو د بل سره (يعني هغه جريان د خبرو چي د عليه الصلوة والسلام او د خوله تر مابين به جاري وې كما مر بيانه) په تحقيق خداى اورېدونكى او ليدونكى دى بالاحوال يعني عالم بالمسموعات والمبصرات.

**درویش وایي:** چي مشکل د خوله په ډېر تضرع ددې و خدای ته حل سو.

چـون فـرود آید بلا بی دافعی ..... جز تضرع نبود دیگر دافعی

یا من یرٰی مافي الضمیر ویسمع .... انت المـعـد لکل مایتوقع

یا مـن یـرجـی للشدائد کلها .... یا من الیه المشتکی و المفزع

مالي سوی قـرعی لبابک حیلة .... ولـئن رددت فای باب اقـرع

حاشا للطفک ان تقنط عـاصیًا .... الفضل اجزل و المواهب اوسع

**درویش وایي:** چي په تاریخ کي د عمر بن الخطابؓ راغلي دي چي دی یو وخت په زمانه کي دده د خلافت پر خره سپور ؤ او خلک هم ورسره وه، یوې سپین سرې ښځي دی ودراوه ډېره زمانه او داسي یې ورته وویل چي ته څو زمانه عمیرًا بلل کېدلې یعني په تصغیر سره بیا په عمر مسمٰی سوې. بیا په امیر المؤمنین سره ملقب سوې، فاتق الله یا عمر فانه من ایقن الموت خاف الفوت ومن ایقن الحساب خـاف العـذاب، عمرؓ ورتـه ولاړ ؤ او ددې خبرو تـه یې غـوږ نیولی ؤ، یـو چا عمرؓ ته وویل یا امیر المؤمنین ته ولي ولاړ یې دې سپین سري ښځي ته هذا الوقوف الطویل، عمرؓ ورته وویل والله لو حسبتني که زه دې را اګر څولی وای له اول څخه د ورځي تر اخیره پوري د ورځي زه به له خره څخه نه وای کښته سوی مګر نه لپاره د فرضي لمانځه، اتدرون من هذه العجوز؟ تاسي خبر یاست چي دا سپین سرې څوک ده؟ هي خولـة بنت ثعلب لقد سمع الله قولها مـن فـوق سبع سمٰوات (یعني هغه د مخه ایت کي تېره سوه) ایسمع رب العالمین قولها ولا یسمعه عمر.

**پوښتنه:** له دې خبري څخه د عمرؓ خدای عزوجل لره جهت نه ثابتېږي؟

**ځواب:** لا لانه تعالی هو العالي و المتعال.

**فائده:** علماء وایي من اکبر الذنوب ان یقول الرجل لاخیه (ای المؤمن) اتق الله فیقول في جوابه علیک نفسک (ته خپل ځان بنه کړه) انت تأمرني بهذا. دلیل ددې خبري دادی لانه اذا ذکر اسم الله یعني اتق الله یلزم التعظیم له سواء صدر من مسلم او کافر. علماء وایي چي اعلم الناس لا یستغني عن تنبیه و ایقاظ.

بګوی آنچه داني سخن سود مند .... وګر هیچ کس را نیاید پسند

الَّذِيْنَ يُظٰهِرُوْنَ مِنْكُمْ مِّنْ نِّسَآئِهِمْ مَّا هُنَّ اُمَّهٰتِهِمْ ؕ

هغه خلک چي ظهار وکړي يو ستاسي ښځه (يعني المؤمنين) د خپلو مايندو ښځه.

**پوهه:** چي د "منكم" فائده داده چي ظهار د اهل ذمه نه دی صحيح، وبه قال ابو حنيفة ومالک خلافًا للشافعي، او د "نسائهم" په قيد سره دا معلومه سوه چي د مينځي سره ظهار نسته که مالک يې وطي کوي که نه، وهو المذهب الحنفية.

**پوهه:** چي ظهار دې ته وايي چي سړی و ماينې ته ووايي: انت علي كظهر امي وكان ذالک طلاقًا في الجاهلية مثبتًا للحرمة الابدية. شرع شريفي دا لفظ نقل کړی و حرمت ته چي منتهي په کفاره سره ګرځي.

**درويش وايي:** چي متعارف خو دغه لفظ وُ چي ذکر سو لکن فقهاؤ په دې لفظ پوري ملحق ګرځولی چي سړی تشبيه د ماينې وکړي په هغه جزء پوري د مور چي نظر او کتل يې و هغه جزء ته د مور نه وي روا لکه چي ماينې ته ووايي چي ته پر ما داسي يې لکه ورون د مور يا لکه فرج د مور.

"ماهن امهٰتهم" دوی يعني دغه ماينې ميندې د دوی حقيقةً نه ګرځي حتی چي دا زوجات و دوی ته حرامي سي ابدًا لکه ميندې.

اِنْ اُمَّهٰتُهُمْ اِلَّا الّٰٓـِٔيْ وَلَدْنَهُمْ ؕ وَاِنَّهُمْ لَيَقُوْلُوْنَ مُنْكَرًا مِّنَ الْقَوْلِ وَزُوْرًا ؕ

نه دي ميندې د دوی مګر هغه ښځي چي دوی يې زېږولي وي، او دوی هرآئينه وايي نا روا في الشرع د خبري، ولي چي شرع شريفي انکار پر کړی دی "و زورًا" او درواغ.

**سوال:** زور خو درواغو ته وايي چي صيغه له قسم ځخه د خبر دی او ظهار خو انشاء د تحريم ده لايحتمل الصدق والكذب؟

**ځواب:** ظهار که څه هم انشاء د تحريم دی لکن په اصل کي اخبارؤ لزعم اهل الجاهلية چي دا لفظ حرمت ابديه دی.

وَاِنَّ اللّٰهَ لَعَفُوٌّ غَفُوْرٌ ۝۲

په تحقيق خدای عفو کوونکی دی او بخښونکی دی لقولكم المذكور او لمطلق المعاصي چي سړی توبه ځني وکاږي.

وَالَّذِيْنَ يُظٰهِرُوْنَ مِنْ نِّسَآئِهِمْ ثُمَّ يَعُوْدُوْنَ لِمَا قَالُوْا فَتَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ

او هغه كسان چي ظهار وكړي د مـاينو سره خپل وروسته عود او رجوع وكړي و هغه خبري ته چي ده ويلې وه (يعني لفظ د ظهار د ماينې سره) يعني پښېمانه سي.

**پوه سه:** چي دا ترجمه د ايت لفظي وه، او دا بيان دی د حكم د ظهار بعد بيان كونه منكرًا من القول و زورًا.

**پوه سه:** چي موصول (يعني الذين مبتداء ده و تحرير رقبة يعني قوله تعالى "فتحرير رقبة" ازادول د مريي دي. دا بله مبتداء ده او خبر يې محذوف دی ای عليهم (دا خبر مقدر دی) تحرير رقبة. يا فاعل د فعل مقدر دی يعني فيلزمهم تحرير آه، او يا خبر د مبتداء مقدر دی ای فالواجب عليهم (تحرير) پر درې سره تقديرو جمله خبر د موصول ده (يعني الذين)

**پوښتنه:** پر خبر يې ولي فاء داخله كړه؟

**ځواب:** لتضمن المبتداء معنى الشرط. او كلمه د ما (ای لما قالوا) موصولة يا مصدرية ده، او لام (يعني په لما قالوا) كي متعلق دی په يعودون پوري.

**فائده:** عود لما قالوا على المشهور عند الحنفية "العزم على الوطي كانه حمل العود على التدارک مجازًا، فالمعنى والذين يقولون ذالک القول المنكر ثم يتداركونه بنقضه (يعني دا خپل قول منكر ماتوي په قصد سره د وطي) د ماينې سره.

**درويش وايي:** چي دا معنى د عود موافقه ده د ماقاله رئيس المفسرين عبد الله ابن عباس ﷺ چي العود الندم (پښېماني) ای ندموا په سبب د ما قالوا من الظهار المنكر وارادوا التحليل يعني بيرته د ماينې حل د وطي يعني الحالة الاصلية قبل الظهار.

**پوه سه:** چي د ظهار په رقبة كافرة او مسلمة ذكر او انثى صغيرة او كبيرة سره برابر دي عند الحنفية" ولي په ايت كي رقبه مطلق راغلې ده.

**مسئله:** پر مظاهر حرام دی دواعي د وطي لكه مچه او مسه كول تر كفارې پورې، دليل يې دا دی چي دواعي د وطي باعث و نه ګرځي د حرام چي وطي دي قبل الكفارة.

مِّن قَبْلِ أَن يَتَمَاسَّا ذَٰلِكُمْ تُوعَظُونَ بِهِۦ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ ۝
ضمیر د مثنی راجع دی و مظاهر او دده و ماینې ته.

**پوه سه:** چې مراد له تماس څخه جماع ده.

**فائده:** له دې ایت څخه دا معلومه سوه چې کفاره شرط د حل د جماع ده، او دا هم معلومه سوه چې ظهار یوجب الحرمة "ذالکم" ای الحکم بالکفارة قبل التماس "توعظون به" تاسي ته نصیحت کول کېږي په دغه حکم سره (لزیل به الحرمة الثابتة بالظهار، او یا ددې لپاره چې بیا د ظهار لفظ نه ووایي) او اللهﷻ په عملو ستاسي خبر دی (که ما مصدریه سي او که موصوله سي نو عائد یې موصول ته محذوف دی، والتقدیر بما تعملونه)

فَمَن لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ مِن قَبْلِ أَن يَتَمَاسَّا
که چا رقبه نه کړه پیدا یعني مریی یا مینځه نه وه لکه زموږ په اوسني زمانه کي یا یې قیمت د رانیولو نه درلودی، یا دده روپۍ چې رقبه یې په رانیولې وای مشغول په پور سره وې یعني د خلکو پورونه پر باندي وه یا و ما عنده من النقود ته محتاج و لنفقة عیاله عند ابی حنیفة والشافعي واحمد "خلافا لمالک" دی وايي چې که یې قیمت د رانیولو د رقبې درلودی حتمًا به رقبه ازادوي او شغل بالدین ونفقة العیال دی اعتبار نه ورکوي، ودلیله والجواب عنه مذکور في کتب الفقه "فصیام شهرین" یعني پر ده لازمي دي روژې دوې میاشتې.

**مسئله:** د فرضي روژې میاشت ناحسابه ده، ولي هغه د خدای عزوجل علحده فرض ده نو له کفارو څخه د ظهار نه دربېږي، او د کوچني اختر یا د لوی اختر ورځي او د ایام التشریق روژې هم ناحسابه دي، ولي چې ددې ورځو روژې منهي عنها دي، نو د وجوب کامل چې روژې د ظهار دي غاړه نه وزي.

"متتابعین" پرله پسې، که یې تتابع ونه کړه که په عذر وي او که بې عذره وي بیرته به یې له سره راګرځوي اجماعًا من المذاهب "من قبل ان یتماسا" یعني د مخه تر جماعو به دا روژې نسي.

# فَمَنْ لَّمْ يَسْتَطِعْ فَاِطْعَامُ سِتِّيْنَ مِسْكِيْنًاؕ

نو که یې طاقت نه درلودی د دوو میاشتو روژو (یا په سبب د ناجوړی یا په سبب د کبر سن، یا له دې څخه بیرېدی چې ناجوړی به سم یا یې جماع ته تلوار ؤ) نو طعام به ورکوي شپېتو مسکینانو ته یعني اغنیاء په دې کفاره کې د ظهار اعتبار نه لري، قال العلماءؒ المسکین من لاشیئ له، او له شیئ څخه مراد مایکفیه وعیاله و اسکنه الفقر (یعني یوې خوا او بلې خوا ته سفر نسي کولای)

**مسئله:** که یې یوه مسکین ته شپېته ورځې فدیه ورکړه روا ده او که یې په یوه ورځ یوه مسکین ته په دفعاتو ورکړه لایجوز.

**بوه سه:** چې په نېز د امام اعظمؒ فدیه د کفارې یوه مسکین ته نصف صاع من بر او صاع من تمر او شعیر ده.

**بوه سه:** چې د احنافو په نېز د تملیک او اباحة فرق نسته یعني دواړه روا دي مثلاً که یې شپېته کسه مېلمانه کړه غرمه او ماښام په ماړه نس په ډوډی د غنمو وغیره یا یې دوه ماښامه او دوې غرمې که څه هم هغه مقدار د نصف صاع ته نه ورسېږي، لکن په مېلمستیا کې نان خورش یعني چې ډوډۍ په پوره کوي لازم دی ولې چې د نان خورش سره پوره شبع راځي، لکن دا شرط لازمي دی چې دا شپېته کسه مسکینان د غرمې او د ماښام سره یو وي، که مظاهر داسي وکړه چې شپېته کسه یې د غرمې له خوا ماړه کړه او ماښام یې نور شپېته کسه ماړه کړه نه دی روا، بلکې یو قسم به بیرته راګرځوي فافهم.

**درویش وایي:** چې ټولې مسئلې د کفارة الظهار د فقهي په کتابو کې مطالعه کړه، زه ان شاء الله داسي مفسر نه یم چې له تفسیر څخه د فقهي شریفي کتاب جوړ کړم یعني چې بیان د مذاهبو اربعهؒ او ددې دلائل او جوابات ټول له پکښې درج کړم لکه د بعض مفسرینو چې دا عادت دی.

**پوښتنه:** خدای عزوجل د اطعام سره قبل ان یتماسا نه کړی ذکر سبب یې څه دی؟

**ځواب:** په روژو چې په مابین کې د روژو جماع وکړي استیناف غواړي او په مابین کې د اطعام المساکین چې جماع وکړي استیناف از سر نو نه غواړي لان الله تعالی لم یذکر في کتابه قید قبل یتماسا، هذا عند ابی حنیفةؒ لکن ګناه کار دی

او نور اهل مذهب دا مطلق يعني الاطعام محمول پر مقيد بولي، يعني الصوم والاعتاق يعني چي اطعام به هم قبل المسس وي.

**مسئله**: كه مظاهر جماع وكړي قبل الكفارة بشيئ استغفر الله لوقوعه في الحرام او كفاره دي وروسته وركړي ليحصل له حل الجماع بعد ذالك ويرتفع الحرمة الثابتة بالظهار ولايجب عليه بالجماع قبل الكفارة كفارة اخرى، او بعض علماء وايي چي دوې كفارې به وركوي. والحق ما اختاره الجمهور وابو حنيفة ولي چي په حديث كي د سلمة بن صخر چي جماع قبل الكفارة كړې وه رسول الله ﷺ دى امر كړى په يوه كفاره سره (يعني مع الاستغفار كمامر) وحديث ابن عباس رضي الله عنهما مثل ذالك، وروى الترمذي وابن ماجه حديث سلمة بن صخر مثل مامر.

ذَٰلِكَ لِتُؤْمِنُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ ۚ وَتِلْكَ حُدُودُ اللَّهِ ۗ

دغه رنگه "ذالك" منصوب دى په فعل مقدر سره اى بينا تلك الاحكام، يا ذالك مبتداء ده خبر يې محذوف دى اى ذالك واقع فافهم.

**پوه سه**: چي ايمان بالله چي يې ذكر كړى مراد ځني شرائع د خداى دي كما في قوله تعالى انالله لايضيع ايمانكم اى صلواتكم يعني الى القبلة المنسوخة، والمعنى هـ لتعملوا بشرائع الاسلام او پرېږدئ ما كنتم عليه في الجاهلية مثلاً چي ظهار حرمت ابدي دى "تلك" اى الكفارات منهيات د خداى دي چي مكلف منع كوي له اتيان ځنې د محرماتو كالظهار وغيره.

وَلِلْكَافِرِينَ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿٤﴾

او د كافرانو لپاره (چي احكام د خداى نه قبلوي ولايمتنعون عن المحرمات او تجاوز كوي تر حدود د خداى) عذاب دى درد وركونكى يعني عذاب النار المؤبدة.

**درويش وايي**: چي كه مراد له كافر ځنې هغه سړى وي چي منكر له احكامو ځنې د خداى وي نو اية پر ظاهر حمل كېږي يعني عذاب النار المؤبدة كمامر، او كه مراد له كافر ځنې غير العامل باحكام الله من غير انكار عنها، نو اطلاق د كافر پر ده تغليظاً دى يعني اطلاق د كفر لپاره د تاكيد د واجباتو د خداى دى لتاكيد العمل بها لا انه كافر حقيقة كما زعمه الخوارج چي مرتكب د كبائرو كنهو كافر دى، نو د هغه عذاب اليم ترجمه په عذاب النار المؤبدة كوي.

**پوښتنه:** په بعض اسلامي ممالكو كي په نامه د قانون يو څو مسائل دوی وضع كړي دي، نو ددې حكم څه دی؟

**ځواب:** دا قوانين كه خلاف الشرع او قرآن نه وي صرف ددې لپاره دي چي د خارجي مملكتو سره بايد مونږ څه چارچلند وكړو او يا د بجلي او كاز د نفع اخستلو لپاره مونږ څونه ماليه له دوی څخه وغواړو يا د فوج تعليم و تربيه مونږ څرنګه وكړو، او فوج چي د مملكت ساتندويان دي عند الضرورة څو مره تنخوا د بيت المال څخه وركړو الى غير ذالک من الامور السياسية، فلا جرح فيه لانها وضعها اهل والعقد من المشاورين او نور قوانين چي خلاف القرآن والشرع وي د هغو په باره كي روح المعاني دېر طويل بحث كړی دی او قاضي بيضاوي هم د هغو قوانينو بيان كړی دی فارجع الى روح المعاني والبيضاوي.

**معذرت:** ته ايوبي يې ولي بيان او تفصيل نه كوې؟

**ځواب:** ما اجمالاً اشاره ورته وكړه بقولي يعني و نور قوانين چي خلاف القرآن والشرع وي، نو عاقل سړي لره اشاره كافي ده او د تفصيل كتاب مي هم در وښووی لكن چونكه تفسير د فقير بناء په اختصار د مهما امكن دی له دې سببه د ټولو هغو مسئلو نقل او تفصيل چي يفضي الى التطويل الممل لپاره د مطالعه كونكو د تفسير ايوبي. اللهم اهدنا واهد جميع المسلمين الى صراط مستقيم والى احكام القرآن الكريم والشرع المبين.

## اِنَّ الَّذِيْنَ يُحَآدُّوْنَ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ كُبِتُوْا

په تحقيق هغه كسان چي عداوت كوي د خدای او د رسول سره د خدای او مخالفت كوي من امرهما يعني يضعون حدوداً ای الامر والنهي غير حدود الله ورسوله "كبتوا" په قاموس كي وايي كبته بكبته صرعه واخزاه وصرفه كسره، قتادة وايي رسوا به سي او ابن زيد وايي، او بعض مفسرين وايي چي كبت پرمخي غورځول دي، په تفسير بحر مواج كي وايي نازل سوی دی دا ايت په كفارو كي د قريشو وهذا اشارة الى ماكان يوم الخندق چي د احزاب غزا يې هم بولي، وقيل الى ماكان يوم بدر.

**پوه سه:** چي دا بشارت دی مؤمنانو ته بالنصر على الكفار، وفيه معجزة.

كُبِتُوا كَمَا كُبِتَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ وَقَدْ اَنْزَلْنَآ اٰيٰتٍ بَيِّنٰتٍ ؕ

كما كبت الذين من قبلهم من كفار الامم الماضية چي هغو به هم لكه كفار د قريشو عداوت د خداى عزوجل او د رسولانو عليهم السلام سره كاوه، او په تحقيق موږ نازل كړي دي صاف او واضح ايات "وقد انزلنا آه" جمله حال ده د كبتوا له ضمير څخه، يعني والحال انا انزلنا ايات واضحات چي دلالت يې پر صدق د رسولانو كاوه.

وَلِلْكٰفِرِيْنَ عَذَابٌ مُّهِيْنٌ ۝

"وللكافرين" او د كافرانو (منكرانو) يعني په هغو اياتو سره وبكل مايجب الايمان به عذاب دى اهانت وركونكى چي د دوى عزت او كبر له سره څخه وباسي.

**درويش وايي:** چي حال د فرعون الجبار مع ايات موسٰى او حال د نمرود الظلام د ابرهيم عليه السلام او حال د لوط عليه السلام د قوم وغيرهم تاسي يې مفصلي قصې په قرآن كريم كي اورېدلي دي.

يَوْمَ يَبْعَثُهُمُ اللّٰهُ جَمِيْعًا فَيُنَبِّئُهُمْ بِمَا عَمِلُوْا ؕ

منصوب دى ظرف مستقر دى ضمير راجع دى و كافرانو ته يعني دا عذاب هغه ورځ دى دوى لره چي خداى دوى بعث او ژوندي كړي بعد الموت وهو يوم القيامة او يا يوم منصوب دى په اذكر مقدر سره "جميعًا" تاكيد دى د ضمير منصوب الراجع الى الكفار "فينبئهم بما عملوا" خداى دوى خبر كړي په عملو د دوى په دنيا كي كلمه د ما موصوله ده والعائد الى الموصول محذوف اى بما عملوها.

**فائده:** دا خبرول د دوى به په مجمع عظيم كي د قيامت لپاره د تفظيع (رسوايي د دوى) او تخفيف د دوى دى على رؤس الاشهاد.

اَحْصٰىهُ اللّٰهُ وَنَسُوْهُ ؕ وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ شَهِيْدٌ ۝

احاطه كړې ده خداى په ما عملوا سره (اى علمًا) "ونسوه" او دوى به هېر كړي وي ما عملوا په سبب د نهايت كثرت، يا په سبب د سپكوالي د دوى په عملو سره يعني سپك يې بلل نو حساب يې ورته كاوه دا عادت دى د خلكو چي لوى امر په خزانه كي د قوت حافظه ساتي او سپک شيان د حفظ څخه لېري ساتي ويدل عليه التجربة، او خداى پاک شاهد دى پر هر شي علمًا لايعذب عن علمه شيء.

حاکم زحکم دم نزند گر گواه نیست ... حاکم که خود گواه بود قصه مشکلست
فینبغي للعاقل ان یحضر ذنوبه او پروړاري او خدای ته توبه وکاږي
والتعجیل في التوبة والندم امر محتوم.

توبه بکن امروز توهرگز نگو فردا کنم
شاید بمیری صبحدم فردا نیابی درشمر

من کتاب تحفه نصائح آورده شد.

أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ

(ای المخاطب خصوصًا الکفار الاستفهام للانکار ونفي النفي اثبات ای تعلم، فالرؤیة علمیة) په تحقیق خدای خبر دی په هغه شیانو چي په اسمانو کي دي. من الملائکة الکرام التي لایعلم تعدادها الا الله والشمس والقمر والکواکب التي لایحصیها الا الله او چي په مځکه کي دي علی ظاهرها من الحیوانات والنباتات وغیر ذالک وفي باطنها من المعادن والکنوز والموتی وغیر ذالک.

مَا يَكُونُ مِنْ نَجْوٰى ثَلٰثَةٍ إِلَّا هُوَ رَابِعُهُمْ وَلَا خَمْسَةٍ إِلَّا هُوَ سَادِسُهُمْ

"مایکون" کان تامة دی ای مایوجد ویقع.

**پوه سه:** چي نجوی اسم مصدر دی کذا في القاموس ما خوذ من النجوة وهي ما ارتفع من الارض، ولي چي پټ شیان له مځکي څخه لوړ دي صرف په اذهانو کي دي لاتیسر لکل احد ان یطلع علیها کلمه د ما نافیه ده، والمعنی ههنا مایقع من تناجی ثلثة نفر، پښتو نه پیدا کیږي پټي خبري د درو کسانو "الا هو رابعهم" مگر نه خدای څلورم دی یعني په علم سره "ولا خمسة آه" نه پنځه نجوی سره کوي مگر نه خدای یې شپږم دی ای علمًا کمامر.

**پوه سه:** چي دا استثناء مفرغ ده حال ده من ثلثة یعني في حال من الاحوال الا حال کون الله څلورم د دوی یعني دغه دري کسه چي پټي خبري سره کوي دوی سره خبر دي خدای عزوجل هم په خبر دی.

برو از خلق یک ذره پوشیده نیست ... که پیدا وپنهان بنزدش یکیست
حسین النوري قدس سره وایي الا هو رابعهم علمًا وحکمًا لا ذاتًا.

**درویش وايي:** چي صوفيه كرام دديې معية څخه د خدای تعبير په معيت غير متكفية سره كوي وفي هذه المعية نصح عظيم قال النصر آبادي من شهد وعلم معية الحق معه زجره من كل معصية وارتكاب كل محذور.

**نكته:** پوښتنه: تخصيص د دغو دوو عددو چي دواړه هم فرد دي يعني تاک دي؟

**ځواب:** بعض وايي چي په سبب د خصوص د واقعې لان الآية نزلت في المنافقين د هغو نجوٰی په باره كي د تخريب د اسلام او په باره كي د عليه الصلوة والسلام ګاهي به يې درې كسه سره كښېنسته نجوٰی بې سره كوله ګاهي به پنځه.

**سوال:** منافقان خو ډېر وه نو دومره اقل نجوٰی سره كوله؟

**ځواب:** هو ډېر نجوی وه لكن د افشاء څخه د راز بيديدله، بعض مفسران وايي چي تخصيص د عدد وتريې په دې وكړی لان الله وتر يحب الوتر او درې او لد اوتارو دي چي مشوره پكښي كېدای سي، ولي چي په مشوره كي غالبًا اختلاف راځي، نو دوه كسه چي سره مخالف سي دريم سړی به د يوه د رائي تائيد وكړي، فالمجموع ثلثة، او يا به متنازعين جماعت وي ادنی د جماعت څلور دي يو بې تر مابين اصلاح كونكی وي نو مجموع پنځه سوه.

**فائده:** بعض قراء تكون په تاء فوقانية سره وايي فاعل يې نجوٰی بولي من زائد بولي، نو نجوٰی خو مؤنث دی او چي څوک په ياء تحتانية يې وايي زمخشري وايي چي د نجوٰی تانيث غير حقيقي دی او من هم فاصل دی فيجوز التذكير فيه.

وَلَآ أَدْنٰى مِنْ ذٰلِكَ وَلَآ أَكْثَرَ إِلَّا هُوَ مَعَهُمْ أَيْنَ مَا كَانُوا

او نه هم كم له دغه څخه ای اقل عددًا منه كالاثنين، او نه ډېر تر پنځه لكه شپږ وما فوقها ''الاهو'' ای الله عزو جل ورسره دی بالعلم او معية غير متكيفة ''اين ما كانوا'' يعني كه لېري وي او كه نژدې يعني و خلكو ته، ولي چي د خدای په سبب قرب مكاني نه دی حتی يتفاوت بالقرب والبعد.

ثُمَّ يُنَبِّئُهُمْ بِمَا عَمِلُوا يَوْمَ الْقِيٰمَةِ إِنَّ اللّٰهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ۝

بيا به خبر كړي خدای دوی د دوی په عملو په ورځ د قيامت، په تحقيق خدای جل سلطانه په هر شي ښه خبر دی ''عليم'' صيغه د مبالغې، ده چي معنت د رب ﷻ په

علم سره هر څېزي چي وي په بل تعبير معيت بلا كيف چي سړی ملكه وګرځي هغه به يې د ټولو ګنهو مانع ګرځي ان شاء الله تعالی په دې باب كي يوه قصه صحيحه ده. فاروق اعظم الخليفة الثاني لرسول الله ﷺ يعني ابن الخطاب رضي الله عنه چي د ده په دوره كي د خلافت قبل شرب جام الشهادة يو پسه په كارو ؤ نو د باندي تر بنار د مديني منورې ووتی هورې يوه رمه د پسو ګرځېدله شپانه ورسره ؤ، شپانه ته يې وويل چي يو پسه پر ما خرڅ كړه. شپانه ورته وويل چي زه مريی يم پسونه زما د مالک دي د خرڅولو اجازه يې نه ده راكړې. عمر رضي الله عنه امتحانًا ورته وويل چي پر ما يو پسه خرڅ كړه، نو كه مالک درته وو ايي چي دا فلانی پسه ولي كم دی؟ ته ورته وو ايې چي هغه لېوه راڅخه يوړی، شپانه ورته وويل فاين الله؟ خدای به څېري وي يعني خدای ځو په خبر دی، دا معنی د هغه ايت هو معكم اينما كانوا، عمر رضي الله عنه ته دا لفظ د شپانه دومره خوند وركړی چي رانيول د پسه يې صرف نظر كړه ورغلی و مالک ته د پسو او د مريي يعني شپانه. ورته وه يې ويل چي دا ستا ټوله رمه د پسو سره د مريي شپانه پر ما خرڅ كړه. خير په هر مبلغ چي تراضي د عمر رضي الله عنه او د مالک د پسو سره وسوه پسونه او مريی يې پر خرڅ كړه، نو مريی يې راو غوښتی او ورته وه يې ويل چي ته پر ما آزاد يې يعني حُر يې او دا رمه پسونه هم ستا دي او يوه مينځه عمر رضي الله عنه د رلوده هغه يې ازاده كړه او شپانه ته يې په نكاح وركړه، وروسته چي به په هر ځاى كي عمر رضي الله عنه دی وليدی دا به يې ورته ويل فاين الله. دا وه يوه قصه چي د سابق ايت په تائيد تاسي واورېدل. فصدق الله وهو معهم اينما كانوا. اللهم ارزقنا معيتک معنا اينما كنا برحمتک آمين.

اخرج ابن ابی حاتم عن مقاتل بن حبان رحمه الله ده وويل چي په منځ كي د رسول الله ﷺ او د مديني د يهودانو صلح او قرار داد ؤ يعني چي تاسي به زما د ښمنانو يعني الكفار چي زه جنګ ورسره كوم نه به د دوی سره كومک كوئ ته زما سره، نو يهودانو به داسي چم كاوه چي يو سړی به له اصحابو څخه د رسول الله ﷺ تېرېدي دوی به پټي پټي خبري سره كولې د مسلمان به دا خيال سو چي په ما كي خبري سره كوي يعني چي ما مړ كړي يا يو بل مكروه را ورسوي، البغوي رحمه الله د غه روايت راوړی دی لكن دا يې ورسره زياته كړې ده چي مؤمنانو چي به دوی وليدل چي

پټي خبري به یې کولې دا بې ګمان سو چي مونږ پر دوی ګمان نه کوو مګر ددې چي وقد بلغتهم من اخواننا چي دوی ته رسېدلي الذین خرجوا في السرایا (پوه سه: چي سرایا جمع د سریة ده، او سریه هغه کوچني لښکر ته وایي چي (۲۰۰) یا (۳۰۰) نهایت (۴۰۰) کسه وي، علیه الصلوة والسلام به یو قومندان وروتاکی یوې ناحیې ته به یې و جنګ ته واستول، مأخوذ دی د سر څخه یعني په پټه چي منافقان په خبر نه سي تاچي هغه ناحیه ته د تیارسۍ حال وانه ستوي) بقتل (چي وژل سوي دي) او هزیمة (یا شکست او ماتي ور رسېدلې ده) فیقع ذالک في قلوبهم (یعني د مسلمانانو په زړو کي به دا شک پیدا سو یعني کما مر عنقریب) فیحزنهم (نو مسلمانان به غمجن سوه) چونکه دا عمل د منافقانو طول پیدا کړی نو یې شکایت و علیه الصلوة والسلام ته وکړی، نو علیه الصلوة والسلام منافقان منع کړه له دې کار څخه خو دوی نه منع کېدل. فانزل الله تعالی.

اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ نُهُوْا عَنِ النَّجْوٰى ثُمَّ يَعُوْدُوْنَ

ته نه وینې (یا محمد ﷺ) چي دوی منع کړه سوي وه له نجوی څخه "ثم یعودون" مضارع ده په معنی د ماضي یعني عادوا عطف پر نهوا.

لِمَا نُهُوْا عَنْهُ وَيَتَنٰجَوْنَ بِالْاِثْمِ وَالْعُدْوَانِ وَمَعْصِيَتِ الرَّسُوْلِ

"لما نهوا عنه" یعني منع نه سوه له نجوی څخه "یتناجون بالاثم آه" دا جمله عطف ده پر یعودون، مراد له اثم څخه ګناه ده یعني ګناه ده عند الله، او مراد له عدوان څخه تجاوز دی پر مؤمنانو یعني یو د بله به یې وصیت سره کاوه چي د علیه الصلوة والسلام په قول عمل مه کوئ یا معنی دا ده چي نفس نجوی هم معصیة الرسول وه ولي علیه الصلوة والسلام خو دوی منع کړي وه له نجوی څخه.

روایت کړی دی البزار واحمد بسند جید عن ابن عمر رض ان الیهود قالوا لرسول الله ﷺ سام علیکم یعني په بهانه د سلام علیکم بیا به یې په خپلو کي سره ویل لولا یعذبنا الله بما نقول، مونږ ته ولي خدای عذاب نه راکوي په دغه لفظ سره چي سام علیکم (چي معنی یې ده مرګ پر تا) د دوی غرض دا ؤ چي که دی رسول وای خو باید مونږ ته خدای عذاب راکړی وای.

وَاِذَا جَآءُوۡكَ حَيَّوۡكَ بِمَا لَمۡ يُحَيِّكَ بِهِ اللّٰهُ

چي دوی راسي تاته تحية در کوي يعني سلام در اچوي په هغو الفاظو يعني السام عليکم او دوی به و عليه الصلوة والسلام ته په خيال دا ورکول چي موږ سلام عليکم درته ووېل، په دې الفاظو د دوی خوستا تحية خدای نه ده کړي بلکې ستا د تحية لپاره خدای عزوجل سلام عليکم يا السلام عليکم ښوولی دی، نو مؤمنانو ته قال الله تعالى وسلام على المرسلين.

**پوښتنه:** عليه الصلوة والسلام دا د دوی په غلط سلام پوهېد ی؟

**ځواب:** نعم بدليل ما روی في الحديث الصحيح چي يو يهودي چي داسي ووېل سام عليک عائشة رضي الله عنها په وپوهېدل نو دې داسي ورته ووېل سام عليک واللعنة عليه السلام ورته ووېل عليک بالرفق نرمي کوه عائشې ورته ووېل چي تا نه واورېدل د دوی خبره، عليه الصلوة والسلام ورته ووېل چي ما عليکم بدون الواو زما ښېرا پر دوی قبلېږي د دوی ښېرا پر ما نه قبلېږي.

**درويش وايي:** چي ما ووېل بدون الواو چي د سلام په جواب وعليکم لوی تحقيق لري يعني واو د وعليکم پر څه شي عطف دی، که څوک ګمان کوي چي عطف دی پر السلام عليکم نو دا سوال پر وارد ېږي چي عطف د کلام د يوه قائل پر کلام د بل قائل نه دی روا الا في الدمج کما في شرح الجامي حيث يمدج کلامه بکلام الکافية فلا يرد ما يتوهم، بلکې واو د وعليکم السلام عطف دی پر محذوف، والتقدير علي وعليکم السلام، وبهذا ظهر ان عليه الصلوة والسلام قال في جوابهم عليکم بدون الواو، فالمعنى هلاک دی پر تاسي ځکه په عين المعاني کي وايي چي رد د عليه الصلوة والسلام پر يهودانو په واو سره خطاء انتهى، ووجه ذالک يظهر مما قلنا في جواب السلام الصحيح وعليکم السلام بالعطف فافهم فانه سانح عزيز.

وَيَقُوۡلُوۡنَ فِىۡۤ اَنۡفُسِهِمۡ لَوۡلَا يُعَذِّبُنَا اللّٰهُ بِمَا نَقُوۡلُ

يا يې په زړو کي دا ورو ګرځي يا يو د بله سره وايي اذا خرجوا من عند رسول الله ﷺ تکذيبًا له في دعوى النبوة، ولي موږ ته عذاب نه راکوي خدای په هغه

قول چي موږ ده ته وايو يعني سام عليک مرګ پر تا، غرض د دوی خبثانو دا و چي دی يعني رسول الله ﷺ نبي نه دی ولي که نبي وای نو نبي خو د خدای دوست وي نو ده ته پر بد ويلو به خدای موږ ته عذاب راکړی وای.

حَسۡبُهُمۡ جَهَنَّمُۚ يَصۡلَوۡنَهَاۖ فَبِئۡسَ ٱلۡمَصِيرُ

کافي دی دوی لره جهنم چي دوی ورداخليږي په ورځ د قيامت، يصلونها حال دی من ضمير حسبهم يعني د دې قول قبيح چي تاسي و عليه الصلوة والسلام ته وايه تاسي ته به پر هغه عذاب د جهنم درکړي چي د دنيا تر عذابو عذاب د دوږخ بد ترين دی لکه چي خدای وايي "فبئس" بد ځای د ورتګ دی، مخصوص بالذم يې محذوف دی ای جهنم، له ابن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دی اذا سلم عليکم اليهود فانما يقول احدهم السام عليکم فقل وعليک (قد مر ان الواو سهو) متفق عليه فافهم.

**پوښتنه**: تا په حواله د عين المعاني وويل چي په جواب کي د يهودانو واو راوړه خطاء ده خو سره د واوه دا دی په متفق عليه حديث کي راغلي دي؟

**جواب**: دا واو په جواب کي د سلام د يهودانو راغلی دی مشاکلة للسلام الصحيح يعني چي په مابين کي د مسلمانانو وي يا لفظ د واو مقحم، وهو کثير في القرآن.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ

مقاتل وايي: يا ايها الذين آمنوا بالسنتهم (په صرف خولو او ژبو دون قلوبهم) وهم المنافقون، او عطاء الخراساني وايي: يريد الذين آمنوا بزعمهم.

**درويش وايي**: چي والمآل واحد لکن روح البيان دا خطاب و مخلص مسلمانانو ته بولي حيث قال بالسنتهم وقلوبهم.

مصرع: ببين تفاوت راه هست از کجا بکجا

إِذَا تَنَٰجَيۡتُمۡ فَلَا تَتَنَٰجَوۡاْ بِٱلۡإِثۡمِ وَٱلۡعُدۡوَٰنِ

معنی د دې عبارت د مخه تېره سوه.

وَمَعۡصِيَتِ ٱلرَّسُولِ وَتَنَٰجَوۡاْ بِٱلۡبِرِّ وَٱلتَّقۡوَىٰۖ

او مجلس کوي په برسره باداء الفرائض والطاعات.

**درویش وايي:** چي دا ايت تائيد د تفسير د روح البيان كوي ولي بر او تقولى په منافقانو كي له كومه سته چي دوى يو وبل ته وصيت سره وكړي في النجولى لكه مظهري چي په نقل د مقاتل رح خخه تفسير په كړى ؤ.

وَاتَّقُوا اللّٰهَ الَّذِیْۤ اِلَیْهِ تُحْشَرُوْنَ ۝

"والتقولى" اى الاحتراز عن معصية الرسول د مظهري خپل تفسير په ياد دى، نو د لفظ "بر" په تفسير تر اداء الفرائض وروسته يې دا هم ويلي دي وما يتضمن خير المؤمنين فتدبر لكن مصرع لن يصلح العطار ما افسده الدهر.

اِنَّمَا النَّجْوٰى مِنَ الشَّیْطٰنِ لِیَحْزُنَ الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا

يعني هغه نجولى پر غيض د مؤمنانو وه او د دوى پر حزن به وه لكه د منافقانو نجولى كمامر "من الشيطان" ولي چي شيطان دوى يعني منافقان باعثه كوي پر ورته نجولى "ليحزن الذين آمنوا" يعني يزين الشيطان لهم اى المنافقين، دغه نجوى چي په غم كي واچوي مسلمانان، ولي د مسلمانانو به دا هم گمان كېدى چي دا نجولى زموږ په ضرر كي دوى كوي.

وَلَیْسَ بِضَآرِّهِمْ شَیْـًٔا اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ ؕ وَعَلَى اللّٰهِ فَلْیَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُوْنَ ۝

او نه ده دا نجولى يا شيطان ضرر رسونكي و مؤمنانو ته هيڅ شى اى شيئ من الضرر، مگر نه په قضاء او مشيت د خداى لانه الخالق للنفع والضرر.

"وعلى الله" تقديم د جار او مجرور لپاره د حصر دى يعني خاص پر خداى ج توكل وكړئ يعني تفويض د ټولو امورو او احوالو خپل دي و خداى ج ته وكړي او له خدايه دي ساتنه غواړي او باک دي نه كوي په تناجي د منافقانو ولي چي خداى عزوجل دوى ساتي د شر او د ضرر څخه د دوى د تناجي.

**فائده:** كلمه د فا. دلته جواب ده د اما محذوفه، والتقدير واما على الله فليتوكل المؤمنون ولايبالو بنجواهم، روى البغوي رح بسنده عن ابن عمر رض قال قال رسول الله ﷺ اذا كنتم ثلثة فلا يتناجى الاثنان دون الثالث فانه يحزنه يعني خوابدى كېږي دده خيال دا كېږي چي په ما كي پټي خبري سره كوي، او چي خلک ډېر وي بيا د دوو كسو په تناجي كي پروا نسته چنانچه په حديث كي د ابن

مسعودؓ مرفوعًا الی رسول اللهﷺ حتی یختلطوا بالناس. قال البغوي قال مقاتل بن حبانؒ چي رسول اللهﷺ احترام کاوه د بدر د غازیانو من المهاجرین والانصارؓ فجاء ناس منهم (یو څو کسه د بدریانو) و مجلس ته د رسول اللهﷺ د تبلیغ او وعظ د اوریدو لپاره خلک د مخه راغلي وه ځایونه یې نیولي وه یعني قریب و علیه الصلوة والسلام ته ځای نه ؤ، نو دوی السلام علیکم و علیه الصلوة والسلام ته وو ایه او مخامخ ورته ودریدل، بیا دوی السلام علیکم ناستو خلکو ته وو ایه په امید د دې چي څه سره نژدې سي او موږ ته ځای راکړي، خو هغو جواب د سلام ورته وو ایه لکن ځای یې ورنه کړی دوی یې هغسي پر پښو ولي چي د ناستي ځای نه سو پیدا، نو دا د دوی ولاړه پر علیه الصلوة والسلام سخته پرېوتل، نو علیه الصلوة والسلام په ناستو خلکو څو کسانو ته وویل قم یا فلان وانت یا فلان یعني هر څو چي بدریان وه هغو نه نفر یې له مجلس څخه ولاړ کړل، نو بدریانﷺ په هغو ځایو کي کښېنستل، او پر هغو کسانو چي علیه الصلوة والسلام له خپله ځایه ولاړ کړي وه ډېره سخته پرېوتل حتی نبيﷺ د دوی په مخانو کي کراهت د ولاړولو محسوس کړی، فانزل الله تعالی هذه الآیة.

**يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِذَا قِيلَ لَكُمْ تَفَسَّحُواْ فِى ٱلْمَجَٰلِسِ**

ای هغه کسانو چي ایمان یې راوړی دی چي وویل سي تاسي ته چي فراخي جوړه کړئ د ناستي په ځایو کي یعني سره نژدې سئ او ورله تیول کښېنئ تاچي مجلس فراخه سي نور خلک هم پکښې ځای سي، او ابن ابی حاتمؒ دا سي روایت کړی دی چي ورځ د جمعې وه.

**درویش وایي:** چي د دې معنی دا نه ده چي علیه الصلوة والسلام پر منبر د خطبې وویل له دې سببه چي د خطبې ویلو په وخت کي خو سلام او جواب او خبري ممنوع دي بلکې مراد دا دی چي ورځ د جمعې وه د غسي د علیه الصلوة والسلام سره خلک ناست وه او علیه الصلوة والسلام خبري ورته کولې چي بدریانؓ راغله او دا موضوع پېښه سوه.

**درویش وایي:** چي قرائة د عاصمؒ په صیغه د جمع دی نو مراد مطلق مجالس او مجلس د رسول اللهﷺ په دخول اولی پکښې داخل دی، نور قاریان یې المجلس په

صيغه د مفرد وايي، او مراد له هغه څخه هم يا مطلق مجلس دی بجعل اللام للجنس يا لام لپاره د عهد دی يعني مجلس د رسول الله ﷺ كما يدل شان نزول الآية، وقد مر فان الصحابة رضوان الله عليهم كانوا يتنافسون على القرب من رسول الله ﷺ والتنافس الرغبة او حرص يې كاوه پر او ريدلو د خبرو د عليه الصلوة والسلام.

فَافْسَحُوا يَفْسَحِ اللّٰهُ لَكُمْ

**پوهه**: چي "فافسحوا" مجزوم دی جواب د امر دی، يعني فراخي به خدای جوړه کړي پر تاسي فيما تريدون الوسعة من الدار والرزق والصدر او فراخي به درکړي په جنت کي، البغوي" په سند سره وايي د عبد الله بن عمر رضي الله عنه چي رسول الله ﷺ وويل چي يو سړی دي بل سړی نه ولاړوي له خپل ځايه څخه يعني چي هغه پکښي ناست وي او دی پکښي کښېني لكن وايي دي تفسحوا و توسعوا، فراخي جوړه کړئ يعني نژدې نژدې سره کښېنئ چي ځای فراخه سي، او په روايت کي د الشافعي" له جابر بن عبد الله رضي الله عنه څخه داسي راغلي دي ان النبي ﷺ لايقيمن احدكم اخاه يوم الجمعة ولكن ليقل افسحوا فراخي جوړه کړئ.

وَاِذَا قِيْلَ انْشُزُوْا فَانْشُزُوْا يَرْفَعِ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مِنْكُمْ

او چي وويل سي تاسي ته چي ولاړ سئ له خپلو ځايو څخه يعني تاسي يو وار ولاړ سئ چي ځای فراخه سي بيرته به کښېنئ، وقال البغوي" قال عكرمة والضحاك" چي بعض كسان چي اذان به وسو د جماعت د لمانځه څخه به يې ځان دروند اچاوه يعني على الفور به مسجد ته نه تله، فانزل الله تعالى هذه الآية فالمعنى اذا نودي للصلوة نو ولاړېږئ و لمانځه ته، وقال مجاهد" واكثر المفسرين" چي د ايت معنى داده چي تاسي ته وويل سي چي ولاړ سئ و لمانځه ته يا جهاد ته يا د يو خير كار چي وي ولاړېږئ ځان مه ناچوئ "يرفع الله" جواب د امر دی يعني فانشزوا، پورته کوي خدای هغه كسان چي ايمان يې راوړی وي يعني كومك ورسره كوي او په ذكر حسن سره يې خلک ياد وي او د خلكو په زړو كي هيبت وراچوي الى غير ذالک من عطايا الله دا خو په دنيا او په اخرت کي ځای وركوي په لوړو ځايو کي (چي غرف يې بولي) په جنتو کي.

**سوال**: جواب د امر خو مجزوم وي دلته خو په كسره دی؟

**ځواب:** له جهت څخه د القتاء د دوو ساکنانو چي يو عين بل لام مدغمه د الله د لفظ عين ته کسره لان الساکن اذا حرک حرک بالکسر کما في کتب علم الصرف.

وَالَّذِيْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ دَرَجٰتٍ

او هغو کسانو ته چي خدای ج علم ورکړی وي له مسلمانانو څخه "درجات" پورته کوي ولوړو درجو ته کثيرة جليلة، روح المعاني وايي چي عطف د والذين اوتوا العلم آه، عطف دی خاص پر عام تعظيمًا لهم بعدهم کانهم جبس آخر، ولذا اعيد الموصول يعني الذين في النظم الکريم، احاديث شريفه في فضائل العلماء بالعلوم الشرعية اخرج الترمذي وابو داؤد والدارمي عن ابى الدرداء رضی الله عنه او مرفوعًا فضل العالم على العابد (چي علم يې نه وي عبادت يې ډېر وي تر عالم) کفضل القمر ليلة البدر على سائر الکواکب، واخرج الدارمي عن عمر بن کثير عن الحسن قال قال رسول الله ﷺ من جائه الموت وهو يطلب العلم ليحي به الاسلام (که پر چا راغلی مرګ او دی په طلب د علم بوخت وُ چي اسلام په ژوندی کړي يعني العلوم الشرعية کالتفاسير والاحاديث والفقه وغير ذالک) نو دده او نبيانو يوه درجه فرق دی يعني درجة النبوة وعنه عليه الصلوة والسلام يشفع يوم القيامة ثلثة اى ثلثة فرق الانبياء ثم العلماء ثم الشهداء، نو علماؤ ته د انبياء او شهداء تر مابين درجه خدای ج ورکړې ده بشهادة الصادق المصدوق ﷺ، وعن ابن عباس رض چي خدای پاک و سليمان ع ته اختيار ورکړی چي علم غواړې او که سلطنت او که مال غواړې؟ فاختار سليمان ع العلم فاعطاه الملک والمال تبعًا.

**درويش وايي:** چي دلائل پر فضل د علم او د علماؤ کما في روح المعاني اکثر من يحصى (چي شمېر دې وکړل سي) روح المعاني وايي چي ډېر د اميد حديث عندي في فضلهم ما رواه الامام ابو حنيفة رح په مسند کي د ابن مسعود رض په روايت قال قال رسول الله ﷺ چي سره جمع به کړي خدای عزوجل علماء په ورځ د قيامت فيقول اني لم اجعل حکمتي في قلوبکم الا وانا اريد بکم الخير (خدای ج ورته وايي ما ستاسي په زړو کي خپل حکمت يعني علم الشريعة نهٔ ايښی مګر دې لپاره چي زما وتاسي ته اراده د خير وه اذهبوا الى الجنة، فقد غفرت لکم ما کان منکم، يعني من الذنوب والمعاصي وفي حديث جرير رض ان العلماء ورثة الانبياء

وان الانبياء لم يورثوا دينارًا ولا درهمًا ورثوا العلم فمن اخذه اخذه بحظ وافر (اى كامل) رواه احمد وارباب السنن الاربعة وعن كثير بن قيس قال قال عليه الصلوة والسلام فضل العالم على العابد كفضلي على ادناكم، رواه الترمذي، وفي حديث ابى امامة الباهلي رض عن عبدالله بن عمر رض ان رسول الله ﷺ مر بمجلسين في مسجده فقال كلاهما على خير (پر ښه كار دي) واحدهما افضل من صاحبه، اما هؤلاء (واشار الى العابدين الداعين الى الله) فيدعون الله (خداى ته خواستونه كوي) فان شاء اعطاهم وان شاء منعهم، واما هؤلاء (اى العلماء) فيتعلمون الفقه والعلم ويعلمون الجاهل بالاحكام فهم افضل وانما بعثت معلمًا (ښوونكى د علم او دين) ثم جلس فيهم، رواه الدارمي.

قال الحسن رح قرء ابن مسعود رض هذه الآية (يعني والذين اوتوا العلم درجات) فقال ايها الناس افهموا هذه الآية لترغبكم في العلم فان الله يرفع المؤمن العالم فوق الذي لايعلم (يعني وان كان عابدًا) درجات، روح المعاني وايي واستدل بهذه الآية غير واحد من العلماء على تقديم العالم ولو كان باهيًا (د يو قوم نوم دى) شابًا على الجاهل ولو كان هاشميًا شيخًا وهو بناء على ماتقدم من معنى الآية لدلالتها على فضل العالم على غيره من المؤمنين وان الله تعالى يرفعه يوم القيامة عليه (اى على غيره من المؤمنين) ويجعل منزلته (اى العالم) فوق منزلته (اى غير العالم من المؤمنين) فينبغي محل العالم في مجالس الدنيا فوق محل الجاهلين وان كانوا وزراء او امراء في امور الدنيا.

**درويش وايي:** چي ددې ايت په معنى كي روح المعاني نوري ډېري اوږدې خبري كړي دي لكن... بيت:

تاطبع شريفت نه پذيرد ملالتى .... آن به كه نامه را بدعاء مختصر كنم

وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ ⑪

خداى عزوجل چي تاسي يې عمل كوئ ښه خبر دى يعني كمًا وكيفًا يعني فيجازيكم عليها في يوم يقوم الناس لرب العالمين، صدق الله العظيم، شان الآية اخرج ابن ابى حاتم من طريق علي بن ابى طلحة عن ابن عباس رض چي مسلمانانو به ډېري ډېري مسئلې د عليه الصلوة والسلام څخه پوښتلې چي پر عليه الصلوة

والسلام به ډېر مشقت ؤ د تپولو په جواب ورکولو کي. نو د خدای عزوجل دا اراده سوه چي پر خپل نبي او رسول باندي د سوالونو بار سپک کړي، فانزل الله تعالى.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِذَا نَٰجَيۡتُمُ ٱلرَّسُولَ

ای هغه کسانو چي ايمان مو راوړی دی چي تاسي اراده د مناجات يعني د پوښتنو د مسئلو وکړئ د رسول ﷺ سره.

فَقَدِّمُواْ بَيۡنَ يَدَيۡ نَجۡوَىٰكُمۡ صَدَقَةٗۚ

نو تاسي د مخه کوئ تر نجوی صدقه (يعني للفقراء لا لاخذ رسول الله ﷺ تلک الصدقة لنفسه المطهرة من دنس الصدقات)

**پوه سه:** چي په دې امر بالصدقة کي تعظيم شان رسول الله ﷺ ونفع للفقراء، وتمييز بين المخلص والمنافق ومحب الدنيا ومحب الآخرة وبين السخي والبخيل.

**فائده:** په دې ايت کي اصل ترکيب په هغه چا کي استعمال کېدی چي هغه لره لاسونه وای، نو په دې ايت کي اول استعارة مکنية ده بتشبيه النجوى بالانسان او اثبات د يدين استعارة تخييلية ده او د بين په لفظ استعارة ترشيحية ده ومعناه قبل، البغوي" وابي مقاتل بن حبان" وابي نزلت هذه الآية د اغنياء په باره کي چي دوی به راغله طويل مناجات به يې د عليه الصلوة والسلام سره شروع کړی او پر فقراؤ به غالب وه يعني فقراؤ ته به يې د مناجات فرصت نه ورکاوه حتى کره رسول الله ﷺ طول جلوسهم ومناجاتهم، ابن ابی حاتم" له ابن عباس" څخه روايت کړی دی چي دا ايت چي نازل سو صبر کثير من الناس د مناجات او سوالو څخه ولي هغه کسان چي مسکينان وه فلم يجدوا شيئًا يتصدقون قبل النجوى او هغه کسان چي اهل غناء وه هغو بخل بالصدقة مختار کړی فاشتد ذالک على اصحاب رسول الله ﷺ ثم نزلت الرخصة کما سيئاتي، په دې کي اختلاف دی چي دا امر لپاره د وجوب ؤ او که د ندب، دا مر لس ورځي دوام وکړی بيا منسوخ سو، مجاهد" وابي چي خلک چي نهي سوه له مناجات څخه د رسول الله ﷺ حتى يتصدقوا فلم يناجيه الا علي رضی الله عنه، وکان علي رضی الله عنه ويل به يې چي په قرآن مبارک کي يو ايت دی لم يعمل بها احد قبلي ولا يعمل بها احد بعدي ما يو دينار درلودی

په لس درهمه مي بدل کړې، نو ما چي به پوښتني څني کولې يو درهم به مي خيرات کړې، نو په دې دوران کي ما له ده څخه د لسو مسئلو پوښتنه وکړه ده مبارک به جواب راکړې (۱) ما الوفا قال" التوحيد وشهادة ان لا اله الا الله (۲) قلت ما الفساد قال" الكفر بالله والشرک (۳) ما الحق قال" الاسلام والقرآن (۴) قلت ما الحيلة؟ قال" ترک الحيلة (۵) قلت ما عليّ قال" طاعة الله ورسوله (۶) قلت كيف ادعوا (زه څرنګه دعا، يا عبادت وکړم) قال" بالصدق واليقين (۷) قلت ماذا اسئل (د څه شي سوال کوم) قال" العافية (۸) ما اصنع لنجاة نفسي؟ قال" كل حلالاً وقل صدقًا (رښتيا وايه) (۹) قلت وما السرور (خوشحالي په څه شي کي ده) قال" الجنة (۱۰) قلت ما الراحة قال" لقاء الله عزوجل. علي ﷺ وايي فلما فرغت عنها نزلت نسخها، كذا في تفسير المدارک.

**ذٰلِكَ خَيْرٌ لَّكُمْ وَأَطْهَرُ ۚ فَإِن لَّمْ تَجِدُوا فَإِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ**

دغه تصدق خير دی تاسي لره من حب المال، او پاکونکی دی د ګنهو ستاسي، نو که مو صدقه نه درلوده په سبب د مسکنت، نو په تحقيق خدای بخښونکی دی او مهربان دی، چي اجازه يې و فقراؤ ته ورکړه د مناجات بېله تصدق.

**پوه سه:** چي دا ايت مخصص دی د ماسبق من عموم الحکم ای الامر بالتصدق لکل من يناجي رسول الله ﷺ، روح البيان وايي چي له دې څخه دا معلومه سوه چي حکم اول يعني الامر بالتصدق لپاره د وجوب ؤ، والله اعلم.

**ءَأَشْفَقْتُمْ أَن تُقَدِّمُوا بَيْنَ يَدَيْ نَجْوَاكُمْ صَدَقَاتٍ ۚ**

آيا تاسي بېرېدلاست (استفهام لپاره د تقرير دی يعني خفتم الفقر، يا معنی دا ده چي بېرېدلاست له تقديم څخه د صدقه لما يعدكم الشيطان من الفقر) "ان تقدموا" بتقدير من ای من ان تقدموا، دمخه تر نجوی ستاسي صدقات، توجيه: جمع يعني صدقات دا ده ي مخاطب په دغه ايت سره ډېر دي، قال علي ﷺ كما روی الترمذي فخفف الله عنهم بهذه الآية.

**فَإِذْ لَمْ تَفْعَلُوا وَتَابَ اللَّهُ عَلَيْكُمْ**

نو چي تاسي تقدم د صدقاتو ونه کړئ (يا د فقر په سبب يا د بخل په سبب) او

خدای تاسي ته بخښنه وکړه يعني تاسي ته يې عذاب درنه کړي، يا معنی داده چې خدای رجوع وکړه له صدقاتو څخه ستاسي او تخفيف يې درسره وکړی بنسخ الصدقة ورخص ان لا تفعلوا.

**پوه سه:** چي مراد له توبې څخه حقيقت توبه نده (ای الرجوع عن الذنب) لانه لم يقع عنهم التقصير في هذا الحكم بان وقع منهم المناجات منهم مع رسول اللهﷺ بدون تقدم الصدقة، د توبة په لفظ سره اشاره ودې ته ده چې دا اشفاق د دوی ګناه وه تجاوز الله عنه، کذا في روح البيان، مقاتل بن حبان وايي چې دا نسخ لس شپې ؤ او الکلبي وايي چې يو ساعت د ورځي ؤ انتهى وبذا نادرًا جدًا.

فَأَقِيمُوا الصَّلَوٰةَ وَآتُوا الزَّكَوٰةَ وَأَطِيعُوا اللَّهَ وَرَسُولَهُ

نو قائم کړي لمونځ (يعني فرضي پنځه لمونځونه کوئ يعني تکاسل مه پکښې کوئ، پر خپلو اوقاتو سره د شرائطو يې کوئ او د ادابو من الخشوع وطمانية الارکان کما هو معنى اقامة الصلوة بالاجماع "واتوا الزکوة" او زکوة د اموالو ورکوئ مصارفو ته د زکوة، او اطاعت د خدای او د رسول د خدای کوئ يعني په ټولو اوامرو او نواهي کي او دوام پرو کړئ.

وَاللَّهُ خَبِيرٌ بِمَا تَعْمَلُونَ ۝

او الله عزوجل خبردار دی په هغه څه چي تاسي يې کوئ، کلمه د ما يا مصدريه ده ای بعملکم يا موصوله ده عائد يې محذوف دی ای بما تعملونه کمامر مرارًا في امثال هذا، لپاره ددې چې خدای پاک به تاسي ته جزاء درکوي په ورځ کي د اخرت ان کان خيرًا فخيره وان کان شرًا فشر.

**پوه سه:** چي معنی ددې عبارت که ؤ عمل دده خير، نو جزاء يې هم خير ده يعني ثواب په ورځ د اخرت، نو کلمه د ان شرطيه ده، او په کان کي ضمير راجع و عمل ته دی هغه اسم دی او خبر يې خيرًا دی، او خير په رفع سره خبر د مبتداء محذوفي دی ای فجزائه خير وهو الجنة، دا جمله يا جزاء د ان شرطيه ده، وعلى هذا فقس الجملة الثانية.

**درويش وايي:** چي چونکه دا عبارت په تفاسيرو کي استعمال يې ډېر شائع ؤ نو ځکه يې ما ترجمه مفصله ددې عبارت وکړه.

أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ تَوَلَّوْا قَوْمًا غَضِبَ اللَّهُ عَلَيْهِم

آيا ته نه ګورې و هغو کسانو او قوم ته چې د خداى ﷻ غضب پر دوى نازل دى.

**پوهه:** چې استفهام لپاره د انكار دى داخل دى پر نفي او نفي د نفي اثبات دى او مخاطب رسول اللهﷺ دى و الرؤية علمية، نو معنى يې داده چې ته علم نه لرې بلکې لرې يې. او مراد د الذين څخه منافقين دي، يعني عبدالله بن نبتل و اصحابه، او مراد له قوم څخه غضب الله عليهم څخه يهودان دي، نو دې منافقينو تولى يعني دوستي شروع کړې وه د يهودانو سره چې اسرار د رسول اللهﷺ به يې و يهودانو ته رسول.

مَا هُم مِّنكُمْ وَلَا مِنْهُمْ وَيَحْلِفُونَ عَلَى الْكَذِبِ وَهُمْ يَعْلَمُونَ ﴿١٤﴾

نه دي منافقان ستاسي مسلمانانو څخه يعني په دين او دوستي کې، او نه د يهودانو سره دي يعني ظاهرًا وباطنًا، ولې ظاهرًا خو ستاسي سره دي، او دوى يعني منافقان قسم اخلي (عطف دى پر تولوا) پر دروغو (يعني پر دعوى د اسلام چې موږ ستاسي له ډلې څخه يو يعني مسلمانان يو) ''وهم يعلمون'' او دوى پوهېږي، حال دى له فاعل څخه د يحلفون، يعني قسم په داسي حال کې اخلي چې دوى په ځانو خبر دي چې موږ دروغ وايو يعني داسي نه دى لکه يو څوک چې قسم واخلي په خطاء کې په ګمان دده چې زه صادق يم بلکې د دوى قسم په قصده پر دروغو دى، السدي او مقاتل ﷺ وايي نزلت في عبدالله بن نبتل يا عبد الله بن ابي بن سلول چې دى به د عليه الصلوة والسلام سره کښېنستى بيا به يې د عليه الصلوة والسلام خبري يهودانو ته رسولې، په حديث مبارک کې چې مروي دى له اب عباس ﷺ څخه چې عليه الصلوة والسلام په يوه حجره کې د خپلو حجرو ناست ؤ نو يې وويل چې اوس به راسي رجل قلبه قلب جبار وينظر بعين شيطان فدخل عبدالله بن نبتل او دده سرې ستر کې شنې وې، فقال له رسول اللهﷺ چې پر څه شي ته او ستا ملګري ماته بښکنځل کوئ؟ فحلف بالله ما فعل، فقال عليه الصلوة والسلام بل فعلت عبدالله بن نبتل ورغلى ملګري يې هم راوستل فحلفوا بالله چې موږ بښکنځل تاته نه دي کړي، فنزلت هذه الآية.

أَعَدَّ اللَّهُ لَهُمْ عَذَابًا شَدِيدًا ۖ إِنَّهُمْ سَاءَ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿۱۵﴾

آراسته کړی دی خدای ﷻ د دوی لپاره یوه نوع عظیم د عذاب، په تحقیق بد دی ماکانوا یعملون یعني في الماضي واصروا دوی دوام کوي په مستقبل کي هم پر هغو بدو عملو.

اتَّخَذُوا أَيْمَانَهُمْ جُنَّةً

دوی (یعني منافقانو) ګرځولي دي خپل ایمانونه سپر (دا جمله مستأنفه ده په جواب کي د هغه چا چي دوی ولي دا کارونه کول، نو خدای پاک د دوی د ایمانو کاذبو وجه دا بیان کړې ده چي دوی دا ایمان کاذبه سپر او وقایه ګرځولي دي د خپلو وینو او اموالو لپاره)

فَصَدُّوا عَن سَبِيلِ اللَّهِ فَلَهُمْ عَذَابٌ مُّهِينٌ ﴿۱۶﴾

نو دوی یعني منافقانو منع کوله خلک د دوی د امنیت په ترڅ کي د لاري څخه د خدای ﷻ یعني له ایمان او طاعت څخه، نو دوی لره (یعني منافقانو لره) عذاب دی اهانت او سپکاوی ورکونکی، دا وعید ثاني دی دوی ته په بل وصف سره، یعني په دمخه کي یې په عذاب شدید سره موصوف کړی او دلته په مهین سره، او یا دا بل وعید دی فوق عذابهم الاول لکفرهم، والثاني لصدهم الناس عن سبیل الله، او بعض مفسرین وایي چي اول عذاب القبر دی والثاني عذاب یوم القیامة دی ویؤید التوجیه الثاني قوله تعالی في موضع آخر من القرآن. قال الله في ذمهم بما فعلوا.

لَّن تُغْنِيَ عَنْهُمْ أَمْوَالُهُمْ وَلَا أَوْلَادُهُم مِّنَ اللَّهِ شَيْئًا ۚ

یعني یوم القیامة نسي دفع کولای له دوی څخه مالونه او اولادونه د دوی هیڅ شی یعني عذاب.

أُولَٰئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ ۖ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ ﴿۱۷﴾

دوی دي خاوندان د اور او ملګري د دوږخ دي، دوی به په هغه اور کي همېشه وي.

**یوه سه:** چي ضمیر مؤنث راجع دی اور ته چي لفظ د نار مؤنث سماعي دی.

يَوۡمَ يَبۡعَثُهُمُ اللّٰهُ جَمِيۡعًا فَيَحۡلِفُوۡنَ لَهٗ كَمَا يَحۡلِفُوۡنَ لَكُمۡ

هغه ورځ چې دوی بعث کړي الله عزوجل يعني په ورځ د قيامت يې ژوندي کړي، نو دوی به قسمونه اخلي و خدای ته (يعني يقولون ربنا ماكنا كافرين) لکه دوی چې به قسم تاسي ته اخستی (يعني في الدنيا انهم منكم)

وَيَحۡسَبُوۡنَ اَنَّهُمۡ عَلٰى شَىۡءٍ ؕ اَلَاۤ اِنَّهُمۡ هُمُ الۡكٰذِبُوۡنَ ۝١٨

او دوی گمان کوي په دې قسمو کي په ورځ د قيامت و خدای ته چي دوی به یو شی حیله پیدا کړي د نجات له عذاب څخه د خدای، د دوی زعم فاسد دادی چي پر خدای کمل علمه به زموږ ایمان کاذبه رواج پیدا کړی لکه په دنیا کي چي زموږ ایمان کاذبه رواج درلودی په دفع کي د عذاب د قتل وغیره پر مؤمنانو کمار ''الا انهم آه'' خبر اوسه ایها المخاطب چي دوی دي دروا غ ویونکي.

**پوه سه:** چي لفظ د يوم ظرف دی لقوله ولهم عذاب مهين.

اِسۡتَحۡوَذَ عَلَيۡهِمُ الشَّيۡطٰنُ فَاَنۡسٰهُمۡ ذِكۡرَ اللّٰهِ ؕ اُولٰٓئِكَ حِزۡبُ الشَّيۡطٰنِ ؕ

جمله مستأنفه ده يعني غلبه کړې ده پر دوی باندي شيطان او د دوی څخه يې هېر کړی دی ذکر د خدای، يعني لايخافون عذاب الله او دوی يې د هغه څه څخه غافل کړي دي چي خدای به موږ ته جزاء راکړي او له دې څخه يې غافل کړحولي دي چي خدای د دوی په پټو حالاتو خبر دی، او شيطان دوی ته شهوات د دنيايي امورو من الاطعمة الشهية والملابس الفاخرة والمساكن العالية والمراكب الغالية القيمة كما في زماننا الموجود، نو دغه کسان دي لښکرونه او اتباع د شيطان اللعين.

**پوه سه:** چي حزب په لغت کي هغه فريق ته وايي چي پر يوه مذهب سره متفق وي مثلاً اهل السنة والجماعة كثرهم الله، والمعتزلة، والروافض، والخوارج وغيرهم من الفرق الزائغة من خذلهم الله.

اَلَاۤ اِنَّ حِزۡبَ الشَّيۡطٰنِ هُمُ الۡخٰسِرُوۡنَ ۝١٩

آگاه او خبر اوسه چي حزب الشيطان دوی دي په لوی تاوان کي، ولي چي بدل يې کړی جنة النعيم بالعذاب الاليم المؤبدة، كما ورد في الحديث الطويل عن ابی

هريرة ﷺ مرفوعًا الى الرسول الكريم ﷺ ان الكافر في القبر يفرج (يو سوري ور كول كېږي) و طرف ته د جنت، دی تر هغه سوري وګوري و ښو درختو او مېوو و غیرها ته، ملک ورته و وايي چي له دې څخه خدای ته محروم کړ ځولی يې په سبب د کفر ستا ثم يفرج له فرجة الى النار فينظر اليها فيقال له هذا مقعدک (ای ابدًا) او ابن ماجه له ابو هريرة ﷺ څخه داسي روايت کړی دی قال قال رسول الله ﷺ ما منكم من احد (که مسلمان وي او که کافر) الا له منزلان منزل في الجنة و منزل في النار فاذا فات (يعني احدكم چي كافر وي) فدخل النار ورث اهل الجنة منزله في الجنة فذالک هو المراد بقوله تعالى اولئک هم الوارثون (اولئک اشاره و مؤمنانو ته ده)

## اِنَّ الَّذِيْنَ يُحَآدُّوْنَ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗٓ اُولٰٓئِكَ فِى الْاَذَلِّيْنَ ﴿۲۰﴾

په تحقيق هغه کسان چي عداوت کوي د خدای او د رسول سره د خدای او مخالفت کوي له امر څخه د خدای او رسول او تر حدودو د خدای تېری کوي (ای المنهيات بارتكابها) دغه کسان دي په ډله کي د هغو کسانو چي ذليل تر د خلق الله في الاولين والآخرين لا ترى اذل منهم، نو چونکه عزت د خدای عزوجل غير متناهي دی، نو د مخاصم دده په ذلت الى غير النهاية.

## كَتَبَ اللّٰهُ لَاَغْلِبَنَّ اَنَا وَرُسُلِيْ ۚ اِنَّ اللّٰهَ قَوِيٌّ عَزِيْزٌ ﴿۲۱﴾

"كتب الله" استيناف دی وارد لتعليل كونهم في الاولين. والمعنى اثبت الله وقضى في اللوح المحفوظ "لاغلبن انا ورسلي" چي حتمًا غالب کېږم زه او زما رسول.

**بوه سه:** چي لاغلبن جواب د قسم محذوف دی، زجاج وايي چي غلبه د رسولانو پر دوه قسمه ده، يوه غلبه په حرب کي ده چي د دوی سره يې کوي يعني په جنګ کي، او چي جنګ نه وي مغلوبه کوي يې په حجت سره.

"ان الله قوي" په تحقيق خدای قوي دی په قدرت سره على من يخالفه "عزيز" لا يغلبه احد من كان كما جرب ذالک في جبابرة الدنيا كفرعون، وشداد، وبخت نصر، ونمرود وغيرهم.

## لَا تَجِدُ قَوْمًا يُّؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ يُوَآدُّوْنَ مَنْ حَآدَّ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ

ته نسې پيدا کولای. والخطاب للنبي ﷺ او كل من يصلح للخطاب، يو قوم

يؤمنون چي ايمان يې وي پر خداى او پر ورځ د آخرت دا جمله صفت د قومًا ده چي دوى موادات او محبت او دوستي كوله د يهودانو سره او ځانونه يې مسلمانان بلل.

**پوه سه:** چي تجدن كه معتدي و دوو مفعولين ته وي نو قومًا يې مفعول اول دى او يوآدون يې مفعول ثاني دى او كه متعدي و مفعول واحد ته وي نو يوآدون يا حال يا صفت دى له قومًا څخه.

**فائده:** تجد چي په معنى د تعلم سي نو متعدي دوه مفعول ته دى او كه په معنى د مصادفت سي نو متعدي و يوه مفعول ته دى فتدبر.

**پوه سه:** چي دد ې ايت حاصل دا دى چي ايمان د مؤمن فاسد يږي په موالات د كافرانو وان المؤمن لايوالي محبت نه كوي وان كان قريبه مثلاً لكه په افغانستان كي چي امرا د دولت دوستي كلي لري د امريكايانو سره په دور حاضر كي يعني (۱۴۳۳) هجري قمري، كه څه هم امريكايان د دوى هم نسب نه دي، واخرج ابن المنذر عن ابن جريج قال حدثنا چي ابو قحافة چي د ابوبكر پلار وُ سب (بكنځل يې وكړه) ورسول الله ﷺ ته ابوبكر پر مخ په چپلاخه ووهه چي ابو قحافه غځار سو چا دا قصه و عليه الصلوة والسلام ته وكړه عليه الصلوة والسلام و ابوبكر ته وويل افعلت يا ابابكر؟ نو ابوبكر ورته وويل چي كه توره راسره واى لضربته، فنزلت هذه الآية.

وَلَوْ كَانُوٓا۟ ءَابَآءَهُمْ أَوْ أَبْنَآءَهُمْ أَوْ إِخْوَٰنَهُمْ أَوْ عَشِيرَتَهُمْ ۚ

او ابن ابى حاتم له ابن سودة څخه روايت كړى دى چي هغه وويل چي دا آيت په ابى عبيدة بن الجراح كي نازل سوى دى چي ده خپل پلار په غزاء كي د بدر قتل كړى چي د كفارو قريشو په ډله كي وُ، او الطبراني او الحاكم په مستدرك كي داسي ليكلي دي چي د ابو عبيدة پلار په ورځ د بدر ډېر كوشش كاوه چي خپل زوى ابو عبيدة مړ كړى لكن ابو عبيدة به ځان ساتى يعني پر پلار يې حمله نه كول لكن پلار دى نه پرېښو قتل كاوه يې، نو ابو عبيدة هم حمله پر وكړه قتل يې كړى فنزلت هذه الآية "او ابنائهم" لكه د ابوبكر پلار چي په ورځ كي د بدر ميدان ته د جنګ راووتى نو ابوبكر و عليه الصلوة والسلام ته وويل چي ماته اجازه راكړه اكن في الرحلة الاولى يعني د خپل پلار سره و جنګ ته اول سړى سم

چي ورو وژل، فقال له رسول اللهﷺ فتعناه بنفسک يا ابابکرؓ "او اخوانهم" يا يې ورونه وي لکه مصعب بن عميرؓ چي خپل ورور عبيد بن عمير يې په ورځ د احد قتل کړی "او عشيرته" يا د قبيلې سړی وي لکه عمرؓ چي خپل ماما العاص بن هشام بن المغيرة قتل کړی يوم بدر، او علي او حمزة او عبيدةؓ چي په ورځ د بدر يې عتبة و شيبة ابنی ربيعة و الوليد بن عتبة قتل کړه.

أُولَٰئِكَ كَتَبَ فِي قُلُوبِهِمُ الْإِيمَانَ وَأَيَّدَهُم بِرُوحٍ مِّنْهُ ۖ

يعني دغه کسان چي د کافرانو سره موادات نه درلودي خدای ؒ کتب (ای ثبت محکم کړی ؤ) په زړو کي د دوی تصديق بالله ورسوله چي هيڅ د شک ځای په زړو کي د دوی نه ؤ "وايدهم بروح منه" د دوی تائيد يې کړی په روح سره د جانب د خدای ؒ ای بنور من عندالله، السديؒ وايي يعني الايمان، الربيع وايي بالقرآن وحججه وقيل برحمة منه، وقيل ايدهم بجبرئيلﷺ الذي يسمی بالروح الامين وقيل بنصره (درويش وايي: والکل صحيح)

وَيُدْخِلُهُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا ۚ

دوی به داخل کړي يعني په ورځ د قيامت وجنتو ته، چي بهيږي به لاندي تر درختو د هغو ويالې (يعني څلور: اوبه، شيدې، عسل او شراب) "خالدين فيها" چي دوی به همېشه پکښې وي، دا حال مقدره په اصطلاح بولي.

رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ وَرَضُوا عَنْهُ ۚ

خدای ؒ به راضي وي له دوی څخه او دوی به راضي وي د خدای ؒ څخه په ورکولو سره د ثواب موعود بهم في الدنيا وفي القرآن وعلی لسان رسولهﷺ.

**درويش وايي:** چي مذکوره نعمتونه د اخرت د ټولو اصل او منبع رضا د رب ؒ ده.

أُولَٰئِكَ حِزْبُ اللَّهِ ۚ أَلَا إِنَّ حِزْبَ اللَّهِ هُمُ الْمُفْلِحُونَ ﴿٢٢﴾

دغه کسان جند او لښکر او انصار د دين د خدای ؒ دي چي دوی متابعت کوي د اوامرو د خدای او اجتناب کوي د منهياتو څخه د خدای ؒ، آګاه ووسه چي حزب د خدای ؒ فلاح يافته بندګان دي بخير الدنيا والآخرة والآمنون من کل بلية.

اللهم اجعلنا منهم

بضاعت نه آورده ام الا امید .... خدایا ز عفوم مکن نا امید

چهار چیز آورده ام شاها که در گنج تو نیست
عــاجــزی و مسکینی، فقر و گناه آورده ام
الهی عبدک العاصي اتاکا ........ مــقر بالذنوب وقد دعاکا
فان ترحم فانت لذالک اهل ........ وان تطرد فمن ترحم سواکا

درویش محمد عبید الله الایوبي سامحه الباري وایي: الحمد لله والمنة والصلوة والسلام علی سید البریة وآله وصحبه البررة چي د ماپښین په وخت دري بجې ورځ د پنجشنبې ۱۳ ربیع الاول، زه په فضل او توفیق د خپل خدای ﷻ له تفسیر څخه د سورة المجادلة فارغ سوم ورپسې ان شاء الله العزیز تفسیر د سورة الحشر شروع کېږي، اللهم سهل ولا تعسر وتممه بالخیر والصحة والعافیة واجعله خیرًا باقیًا لعبدک العاصي الی یوم القیامة وما ذالک علی الله بعزیز.

مصرع: ما نیز حاضر میشوم تفسیر قرآن در بغل

تفسیر ایوبي حنفي د نصیراحمد احمدي لخوا سکین او pdf سو. د دعا په هیله احمدي! واتساپ ۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹

الله نور السموت والارض

# سُورَةُ الحَشْرِ مَدَنِيَّةٌ وَّهِيَ أَرْبَعٌ وَّعِشْرُونَ آيَةً وَّثَلٰثُ رُكُوعَاتٍ

## بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

روى البخاري و مسلم عن سعيد بن جبير قال قلت لابن عباس سورة الحشر قال قل سورة النضير، ابن حجر وايي چي ابن عباس چي د سورة حشر له تسميه څخه منع وكړه او داسي يې وويل: قل سورة النضير سبب يې دا دى چي څوک توهم ونه كړي چي مراد له حشر څخه به حشر د يوم القيامة وي، وانما المراد ههنا حشر بني النضير واخراجهم من ديارهم، انتهى قول ابن حجر.

**درويش وايي:** چي په اكثره تفاسيرو او مصاحف مطبوعه ؤ كي دا سورة په نامه د سورة الحشر يادېږي كه څه هم د بني نضير د يهودانو په باره كي نازل سوى دى، كما روى البخاري ومسلم عن ابن عباس كما مر.

## سَبَّحَ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ①

تسبيح وايي خداى لره هغه شيان چي په اسمانو كي دي من ذوى العقول كالملائكة وغيرهم من الشمس والقمر والنجوم وغير ذالک (لان كلمة ما عامة لهما على التحقيق كما في شرح الجامي على الكافية) او هغه شيان چي په مځكه كي دي من ذوى العقول كالانس والجن او غيرهم من النباتات والحيوانات والاشجار والاحجار وغيرها.

**درويش وايي:** چي علماء د ظاهر وايي چي مراد له تسبيح څخه د غير ذوى العقول تسبيح حالي ده يعني حال د دوى من الامكان والحدوث يدل على ان لها موجد واجب الوجود قادر على الخلق قدرة تامة وعالم باحوال جميع مخلوقاته علمًا تامًا ومنزه عن صفات الخلق وهذا هو التسبيح، لكن علماء د باطن وايي چي مراد ځني تسبيح قولي ده، ويدل عليه قوله تعالى: وان من شيئ الا يسبح بحمده ولكن لا تفقهون تسبيحهم، دوى وايي چي په تسبيح حالي خو هر سړى پوهېږي په تسبيح قولي نه پوهېږي هر څوک، او په احاديث صحيحه ؤ كي دا راغلي دي چي عليه الصلوة والسلام به ويل چي هغه ډبره زه اوس هم پېژنم چي زه به غار حرا ته تلم دې به

راته ويل السلام عليكم آه، وايضًا تسبيح الحصیٰ في يد ابو جهل په هغه وخت کي چي ابو جهل امتحان د عليه الصلوة والسلام کاوه چي زما په لاس کي څه شی دی؟ عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي ښوونه خو يې اسانه ده که هغه ستا د لاس شيانو کلمه وويل ته يې وايې؟ ابو جهل ورته وويل چي دا به اعجب وي، سنګريزو لا اله الا الله محمد رسول الله وويل ابو جهل هغه وغورځولې او وه يې ويل چي دې حصاؤ سحر ښکاره کړی، نو کلمه د ويلو او تسبيح ويلو څه فرق دی، وايضًا په خيبر کي چي يوې يهوديه ښځي د پسه غوښې پخ کړي وې او زهر يې پکښې اچولي وه خصوصًا د ولي په غوښو کي چي د رسول الله ﷺ ډېري خوښېي وې د مهمانۍ په توګه يې وعليه الصلوة والسلام او صحاب کرامو ﷺ ته راوړلي وې، نو عليه الصلوة والسلام يوه يا دوې ګولې او اصحابو څو ګولې ځني وخوړلې عليه الصلوة والسلام پر خوړونکو ږغ وکړی ارفعوا ايديکم، ولي چي په غوښو زهر ګډ سوي دي، نو هغه يهوديه يې راوغوښتل او ورته وه يې ويل چي تا په دې غوښو زهر ګډ کړي دي؟ هغې ورته وويل چي چا درته وويل د عليه الصلوة والسلام په لاس کي ولی ؤ ويل دغه ولي راته وويل، ښځي ورته وويل نعم، عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي ولې دي زهر په ګډول؟ هغې ورته وويل چي په دې سبب مي په ګډ کړه چي که نبي ؤ صدقًا نو خو زهر ضرر نه ور رسوي او که نبي نه ؤ له غمه به يې خلاص سو، ثم لم يعاقبها هغې ښځي ته يې عذاب ورنه کړی.

**درويش وايي:** چي د ولي د اخبار او د تسبيح ويلو څه فرق دی، هذا هو المرام من نقل هذه القصة.

**پوښتنه:** دې ولي عليه الصلوة والسلام د مخه تر خوړلو نه خبراوه چي په ما کي زهر دي؟

**ځواب:** لپاره د دې چي د عليه الصلوة والسلام عند انقضاء الاجل شهادت په نصيب سي يعني د زهرو له غلبې څخه، ويدل عليه چي رسول کريم ﷺ هر کال چي په هغه وخت راغلی تاثير د زهرو به ښکاره سو د دوو وږو په مابين کي بې وينې کښلې چي په دې سبب به د زهرو تاثير کم سو، اخيرًا چي عليه الصلوة والسلام ناجوړی سو په مرض موت سره عائشې ﷺ ته يې وويل چي لا زالت اکلة خيبر

تعاودني وهذا اوان ان يقطع ابهري او كما قال، دا وخت دی چي زما د زړه رګ به راپرې کړي وكان كذالك انا لله وانا اليه راجعون.

له ابن مسعود ﷺ څخه روايت دی چي موږ پر کاسه د دوډۍ د علیه الصلوة والسلام سره ناست و تسبيح د كاسې موږ اورېدلې.

**درويش وايي**: چي امثال هذه الآحاديث كثيرة في كتب الصحاح الستة مسطورة وفي ما ذكرناه كفاية لاصل المرام چي مراد له تسبيح څخه د ما في السمٰوات والارض تسبيح قولي مراد ده عند اهل الله و اولياء الله الكرام.

"وهو العزيز الحكيم" او خدای غالب دی يفعل ما يشاء وليس له مانع من فعل مايشاء او په هر كار کي حكمت لي يعرفها الناس ام لم يعرفونها. ولا سبيل الى معرفت حكمته تعالى الا الوحي او الالهام الصحيح.

**درويش وايي**: چي اوس د بني النظير د جلا وطنۍ قصه شروع کېږي او په دې قصه به موږ واورو عظيم قدرت د خدای او اثبات د رسالت د علیه الصلوة والسلام سره د تفصيله ان شاء الله تعالى.

هُوَ الَّذِیْٓ اَخْرَجَ الَّذِیْنَ كَفَرُوْا مِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ مِنْ دِیَارِهِمْ

خدای عزوجل هغه ذات مقتدر دی چي وه يې ايستل هغه کسان چي کفر يې کاوه له اهل کتابو څخه (دا بيان د موصول دی يعني الذين كفروا) چي مراد څني قوم نضير دی چي اولاد د هارون اخي موسیٰ و "من ديارهم" د خپلو کورو څخه چي په مدينه کي وه، ابن اسحاق وايي چي اجلاء د بني النضير هغه وخت عليه الصلوة والسلام وکړه چي له غزاء څخه د احد راوګرځېدی، او فتح د بني قريضه و يې هغه وخت وکړه چي د احزابو له غزاء څخه راستون سو چي مابين د دې دوو فتحو دوه کاله زمانه وه، راويان د تاريخ وايي چي سبب د اخراج د بني النضير دا و چي النبي ﷺ غزاء د بدر وکړ او پر مشرکينو د مکې يې غلبه پيدا کړه بنوا النضير په خپلو کي دا سره وويل چي دا هغه نبي دی چي موږ يې نعت په تورات کي ليدلی دی چي د دې سړي بيرغ ترشا نه راځي، نو دوی سره وويل چي راځئ صلح ورسره وکړو، نو صلح يې پر دې سره وکړه چي بني النضير ورته وويل چي نه موږ ستا سره جنګ کوو او نه په صف کي د هغو کسانو چي ستا سره جنګ کوي

دریږو، فقبل رسول اللهﷺ دا خبره يې ومنل او معاهده يې سره وکړه، وروسته چې غزاء د احد عليه الصلوة والسلام وکړه او مسلمانانو شکست وخوړی او وویا (۷۰) کسه يې شهیدان د لاسه ورکړه.

**فائده:** جنګ د احد د مشرکانو د مکې په مشری د ابو سفيان مابين ته راغلی ؤ، بني النضير ته شک پيدا سو او اظهار د عداوت د عليه الصلوة والسلام يې مختاره کړی، او عهد يې مات کړی، او د دوی مشر کعب بن الاشرف سره د څلوېښتو (۴۰) يهودانو مکې مکرمې ته ولاړه او د ابو سفيان پر کور او د هغه د قوم قريشو مېلمانه سوه. ابو سفيان د يهودانو مشر کعب بن الاشرف ته وويل چې زموږ دين خير دی چې موږ خدمت د بيت الله الشريف کوو او د حجاجو سره کومک او اوبه د زمزم ورکوو او د حج په موسم کې د بې وزلو حاجيانو سره کومک کوو، او که د محمدﷺ دين خير دی چې قتل و قتال پر کار اچولی دی او ښځې او کوچنيان په غلامی بيايي او خپل د پلار او نيکه وطن يې پرېښو، کعب بن الاشرف ورته وويل چې ستاسي دين خير دی، بيا ابو سفيان ورته وويل چې موږ په تاسي باور نه لرو ولې چې تاسي خو اهل کتاب ياست او محمد (ﷺ) هم اهل کتاب دی نه بايده چې تاسي او ده موږ ته يوه دسيسه نه وي جوړه کړې تر څو چې تاسي زموږ خدايانو ته سجده ونه کړئ، دوی يعني کعب بن الاشرف او دده سره ورسره څلوېښتو (۴۰) کسانو و بتانو ته سجده وکړه.

**درویش وايي:** چې وګورئ و ضديت او عداوت ته د يهودانو د عليه الصلوة والسلام او دده د دين سره، ولې چې دوی خو اهل کتاب تورات وه او سجده و بت ته خو په تورات کې هم شرک ؤ، نو قرارداد او معاهده يې پر دې وکړه چې زموږ او ستاسي خبره به يوه وي و محمد (ﷺ) ته، وروسته څلوېښت کسان د يهودانو او څلوېښت کسان د ابو سفيان تر پرده و لاندې د کعبة الله دا ميثاق سره وکړی، جبرئيلﷺ راغلی ټوله ماجری د کعب الاشرف او د ابو سفيان يې و عليه الصلوة والسلام ته بيان کړه ثم رجع کعب بن الاشرف واصحابه الى المدينة وامر عليه الصلوة والسلام بقتل کعب بن الاشرف فقتله محمد بن مسلمة او ددې قتل مفصله قصه په تفسير کې د سورة آل عمران في تفسير قوله تعالى: لَتُبْلَوُنَّ فِي

اَمْوَالِكُمْ وَ اَنْفُسِكُمْ وَلَتَسْمَعُنَّ مِنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلِكُمْ وَمِنَ الَّذِيْنَ اَشْرَكُوْٓا اَذًى كَثِيْرًا تېره سوې ده.

**درويش وايي:** چي تاريخ د اسلام د يهودانو د مديني د شاوخوا ډېر خيانتونه بيان کړي دي چي له جملې څخه د هغو يو خيانت دا ؤ چي دوی و عليه الصلوة والسلام ته خبر ور استولی ؤ چي ته له مديني څخه سره د دېرشو اصحابو رض راووزه او موږ به هم سره د دېرشو احبارو يعني علماؤ د دوی در ووزو بحث به سره وکړو که تا زموږ احبارو ته قناعت ورکړی او دوی ايمان راوړی موږ هم ټول يهودان ايمان راوړو او په داسي ځای کي به موږ او تاسي يو ځای کېږو چي زموږ او ستاسي تر مابين يې مسافت يو وي، عليه الصلوة والسلام د دوی دا پيش نهاد ومنی، سهار چي عليه الصلوة والسلام سره د دېرشو اصحابو رض راووتی في براز من الارض يعني صحرا او بيابان ته يهودان يو بل ته سره وويل چي موږ به دده پر قتل څرنګه کامياب سو چي دده سره دېرش کسه ورسره وي او هريو هم خپل ځان پر ده قربانوي، نو يو سړی به ور واستوو چي دا شپېته کسه به څرنګه خبري سره واوري نو ښه داده چي ته د درو کسو اصحابو سره راسه موږ به درې کسه احبار درسو، دغو درو کسو احبارو که ستا نبوت ومانه موږ يې هم منو، نو د دوی دا خبره هم عليه الصلوة والسلام ومنله نو عليه الصلوة والسلام درې کسه اصحاب رض د ځان ملګري کړه يهودان هم درې کسه راووتل لکن د هريوه سره خنجر موجود ؤ قرار داد يې داسي کړی ؤ چي هرځای سره يو ځای سوو هر سړی زموږ چي په خنجرو دوی ووهي چي په دې ضمن کي به عليه الصلوة والسلام هم قتل سي، يوه ښځه وه د بني النضير څخه چي ورور يې مسلمان ؤ له انصارو څخه، دې ښځي ورور خبر کړی په غدر د يهودانو، نو ورور د هغې ښځي په ډېر تلوار دمخه تر ملاقات د يهودانو سره د دوی د غدر قصه ورته وکړه، فرجع رسول اللهﷺ الی المدينة، روی هذه القصة البيهقي و ابو داؤد و عبد الرزاق باسانيد صحيحة، ومن خياتهم ان النبيﷺ چي ورغلی بني النضير ته چي کومک يې ځني غوښتی په ديت کي د دوو کسانو چي عمرو بن امية الضمري وژلي وه في منصرفه من بير معونة، نو بني النضير دا قصد کړی ؤ چي دی به يو ځای کښېنه ؤ د لوړي خوا به لويه ډبره پر راشوه کړو يعني د قلعې د دېوال څخه، نو

جبرئيل و عليه الصلوة والسلام ته وويل چي ژر ولاړ سه ډبره دربانديراشوه کوي عليه الصلوة والسلام چي ولاړ سو دوی ډبره را ايله کړه پر مځکه وموښته، ذکر ابن حميد عن عکرمة ان الله سبحانه وتعالى لما اخبر نبيه بذالک يعني د ډبري په راغورځولو سره ورجع نبي الله ﷺ الى المدينة، نو يهودانو ته کنانه بن صوريا وويل هل تدرون لم قام محمد دوی ورته وويل لا والله ما ندري وما تدري انت، قسم په خدای دی چي نه موږ خبر يو او نه ته چي محمد ولي ولاړ سو کنانه بن صوريا ورته وويل بلى والتورات زما دي قسم وي په تورات چي زه خبريم چي خدای و ده ته خبر ورکړی بما قصدتم من القاء الحجر عليه، ابن صوريا ورته وويل چي ځانونه مه خطاباسئ او هلاک ته يې مه واقع کوئ، والله انه لرسول الله وما قام الا انه اخبره الله بما قصدتم من الغدر وانه لآخير الانبياء او تاسي په خوا گمان داؤ چي آخير الانبياء به له اولاد څخه د هارون دی فجعله الله حيث شاء اى من العرب او ابن صوريا ورته وويل چي کتاب زموږ تورات چي تغير او تبديل چانه ؤ پکښي کړی د نبي اخير الزمان په باب کي داسي نوشته وه مولده بمکة وان دار هجرته يثرب (اى المدينة) ده ورته زياته کړه چي صفت د نبي اخير الزمان يو حرف له تورات څخه مخالف نه دی، غرض يې داؤ چي ايمان پر راوړی، خير خو دوی ايمان راوړلو ته غاړه نه ايښوول. فلما دخل النبي ﷺ المدينة ارسل الى محمد بن مسلمة هغه چي راغلى عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي ولاړ سه يهودانو ته د بني النضير ووايه چي زه رسول الله ﷺ را استولى يم تاسو ته ان اخرجوا من بلدي (چي تاسي ووزئ زما له ښار څخه) واجلت عشرة ايام (بيا که څوک ستاسي څخه وليدل سو) ضربت عنقه بالسيف فمكثوا اياما يتجهزون (يو څو ورځي دوی وځنډېدل چي خپل کار و باريې برابر وی) بعض رواة وايي چي پنځلس ورځي دوی محاصره وه او بعض راويان وايي چي شپږ شپې دوی محاصره وه، او بعض رواة وايي چي قريبا من عشرين ليلة دوی تر محاصرې لاندي وه او سيدتنا عائشة ﷺ وايي چي پنځه ويشت (۲۵) ورځي محاصره وه او دوی د محاصرې په وخت کي خوني په خپلو لاسو نړولې (يعني چي مسلمانانو ته پاته نه سي) او مسلمانانو هم د دوی خوني ورنړولې (چي د دوی غيض او غم ډېر سي) حتى وقع الصلح ونزلت بنوا

النضير على ان لهم حمل بعير (د يوه اوښ بار مو ږ راسره وړو) فخرجوا حملوا النساء والذرية او چي پر اوښ جانيده من الاعدة دوى چي ووتل عليه الصلوة والسلام او اصحاب رضي الله عنهم دده وردا خل سوه ښځوس زغري او ښځوس بيضه (د سر خول) يې په جنګ کي به يې پر سر کاوه او دري سوه څلوېښت (٣۴٠) توري يې ونيولې، وخرج بنو النضير من المدينة.

**درويش وايي:** چي قصه د حشر د بني النضير مي په ډېر اختصار سره وکړه، ورنه که ډېر تفصيل مي ور کولاى ډېري ورقي به يې نوري په بر کي نيولي واى؛ فذالک قوله تعالى هو الذي اخرج الذين كفروا من اهل الكتاب من ديارهم.

لِأَوَّلِ الْحَشْرِ

متعلق دى په اخرج پوري او لام په معنى د وقت دى كما في قولهم كتبته لعشر خلون ومآلها الى معنى في الظرفية.

**يوه سه:** چي معنى د اول الحشر دا ده ان هذا اول حشرهم الى الشام اى اول ما حشروا و اخرجوا كرهًا په زوره په اوليت کي اشاره ودې ته ده انهم لم يصبهم جلاء قبل اى كرهًا حتى چي بخت نصر حين اجلى اليهود دوى يې يعني بني النضير يې نه کړه جلا وطنه، ولي چي دوى د هغو يهودو څخه نه وه چي بخت نصر جلا وطنه کړه او راتګ د دوى له شام څخه و جزيرة العرب ته په اختيار سوي وه او وتل يې په اجبار سره وه. او يا معنى د اول الحشر دا ده چي بني النضير محسوبين له اهل كتابو څخه چي له جيرې څخه د شام وشړل سول، او بعض مفسرين وايي چي د اول الحشر معنى دا ده چي عمر رضي الله عنه په خپل خلافت دوى و ايستل له خيبر څخه و شام ته، وقيل ان هذا اول حشرهم من المدينة واخير حشرهم يوم القيامة لان المحشر يكون بالشام والله اعلم بمراده في كتابه.

**درويش وايي:** وفي تفسير اول الحشر اقوال ضعيفه ذكرها العلامة البغدادي في روح المعاني مع الاشارة الى ضعفها وذكرها المظهري بدون الاشارة الى الضعف ... مصرع: وللناس فيما يعشقون مذهب.

مَا ظَنَنْتُمْ اَنْ یَّخْرُجُوْا وَظَنُّوْٓا اَنَّهُمْ مَّانِعَتُهُمْ حُصُوْنُهُمْ مِّنَ اللّٰهِ

ستاسي ګمان نه ؤ ایها المؤمنون ''ان یخرجوا'' لشدة بأسهم (دوی سخت وه په جنګ کي او محکمي قلاوي یې درلودې او عدد یې هم ډېر ؤ او اسباب د جنګ یې هم درلوده او په داسي ذلت او سپکاوي به دوی شړل کېږي له وطنه څخه'' وظنوا'' یعني بني النضیر، روح البیان وایي ظنًا قویًا هو بمرتبة الیقین، ولي چي دا وروسته خبره د دوی یعني انهم آه بېله ظن قوي چي نژدې و یقین ته نه وي نه پیدا کېږي.

**پوه سه:** چي وظنوا عطف دی پر ما ظننتم باندي چي مانع به وګرځي محکمه قلاوي د دوی من الله یعني من عذاب الله وسلطانه.

**پوه سه:** چي حصونهم مبتداء ده مانعتهم خبر مقدم دی والجملة خبر ان.

**پوښتنه:** مناسب د ماظننتم چي معطوف علیه دی چي جمله فعلیه وه داسي جمله وه وظنوا ان لایخرجوا نو په نظم جلیل کي د قرآن یې ولي تغییر ورکړی الی تراه في النظم الجلیل؟

**ځواب:** تغییر چي یې ورکړی لپاره د اشعار بتفاوت مافي الظنین ای ظن المؤمنین وظنهم بان حصونهم مانعتهم آه، وان ظنهم قارب الیقین، نو منار دا ده چي داسي عبارت راوړه سي چي دلالت وکړي پر غایت وثوق د دوی بماهم فیه نو ځکه یې په مانعتهم کي وحصونهم کي خبر پر مبتداء دمخه کړی ومدار الدلالة التقدیم لما فیه من الاختصاص فکانه قیل لاحصن امنع من حصنهم چي په دې سبب مو ږ په چا باک نه کوو چي پر موږ دي حمله وکړي لانهم في عزة ومنعة في اعتقادهم الفاسدة.

**درویش وایي:** چي دا جواب د پوښتني چي تاسي واورېدی روح المعاني او روح البیان او تفسیر مظهري او تفسیر بیضاوي او تفسیر قرطبي په مختلفو عباراتو سره راوړی دی، مآل الکل واحد فافهم.

فَاَتٰهُمُ اللّٰهُ مِنْ حَیْثُ لَمْ یَحْتَسِبُوْا ق

ای امر الله وعذابه چي دوی یې مجبور کړه و جلا وطنی ته چونکه حقیقت اتیان پر خدای محال ؤ نو ددې سببه مفسرین تړوله په امر الله آه کوي، له داسي جانبه څخه چي د دوی ګمان نه کېدی، مظهري'' داسي ترجمه کړې ده حیث القی

في قلوبهم، انتهى، وهو ليس بشيئ لانه سيئاتي صراحةً في قوله تعالى وقذف آه، او روح البيان او روح المعاني یې داسي ترجمه کړې ده وهو قتل کعب بن الاشرف رئيس هم په پټه على يد اخيه رضاعًا محمد بن مسلمة ورجل آخر.

**درویش وايي:** چي مفصله قصه د قتل د کعب بن الاشرف دپره اوږده ده چي په تفسير کي د مخه تېره سوې هم ده.

**سوال:** د کعب بن الاشرف په وژنه سره دوی ته تاوان ورسېدی؟

**ځواب:** روح البيان او روح المعاني دواړه وايي چي دې قتل د دوی قوة قلبي کم کړی او شوکت (دبدبه) یې کمه کړه د دوی لانه کان رئيسهم او امن او ارام د دوی د زړو یې سلب کړی وقذف في قلوبهم الرعب كما قال عزوجل.

وَقَذَفَ فِي قُلُوبِهِمُ الرُّعْبَ

وايي چاوه په زړو کي د دوی رعب (بېره) ای قذف الله عزوجل في قلوبهم آه.

**فائده:** دا روايت دی د السدي او بي صالح. او ابن جريج وايي چي مراد له قتل څخه په دې ايت کي قتل د کعب بن الاشرف دی.

**درویش وايي:** چي قصه د کعب بن الاشرف تاسي د تفسير ايوبي په پنځم جلد سورة آل عمران، د (۲۳۸) صفحې څخه بيا تر (۲۴۶) پوري په مفصله توګه مطالعه کولای سئ.

يُخْرِبُونَ بُيُوتَهُمْ بِأَيْدِيهِمْ وَأَيْدِي الْمُؤْمِنِينَ

دوی نړولې خپلي خوني په خپلو لاسو، ددې لپاره چي مؤمنانو ته زموږ ابادي خوني پاته نه سي. او په لاسو د مؤمنانو لزيادة غيظ اليهود اعني بني النضير، او بعض مفسرين وايي چي بني النضير چي په خپلو لاسو خوني نړولې ددې لپاره چي بعض عمارتي لرګي يا دروازې يا نور مرغوب فيها شيان ورسره يوسي، او مؤمنانو چي د دباندي له خوا ونړولې ددې لپاره چي پر يهودانو دوی ورداخل سي، او که یې جنګ کاوه داڅره د ميدان جنګ به د مؤمنانو فراخه سي او پر دوی به تنګه سي.

فَاعْتَبِرُوا يَا أُولِي الْأَبْصَارِ ۝٢

پس عبرت او پند واخلئ د يهودانو بنى النضير له حال څخه چي تاسي

تفصيلاً واورېدى اى خاوندانو (اولي جمع ده مفرد لفظ نه لري) او ابصار جمع د بصيرة ده په معنى د عقل او ادراک، د پند اخستلو معنى داده چي تاسي كفر او فسوق او د رسول د خداى خبره نه منل مه كوئ لكه بني النضير چي وكړى لئلا ينزل بكم مثل ما نزل بهم من العذاب... بيت

چو بر گشته بختى در افتاد به بند..... ازو نيک بختان بگيرند پند

جهان اى پسر ملک جاويد نيست.... زدنيا وفادارى اميد نيست

وَلَوْلَآ اَنْ كَتَبَ اللّٰهُ عَلَيْهِمُ الْجَلَآءَ لَعَذَّبَهُمْ فِى الدُّنْيَا

كه چېري حكم نه واى كړى او په لوح محفوظ كي نه واى جلا واخراج د خپلو ديارو څخه (يعني پر نبي النضير مع هذا الزلة الفضيعة) دوى ته به يې عذاب وركړى واى په دنيا كي بالقتل والسبي كما فعل الله ببني قريظة كما سيأتي وعذاب بني قريضة في سنه (٥) من الهجرة، وقيل بالقتل كمشركي مكة في بدر.

وَلَهُمْ فِى الْاٰخِرَةِ عَذَابُ النَّارِ ﴿٣﴾

او دوى لره عذاب دى د اور يعني يوم القيامة يعني ان نجوا من عذاب الدنيا فرضًا لاينجون من عذاب النار في الآخرة.

ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ شَآقُّوا اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ

دغه عذاب چي دوى يعني بني النضير ورسره مخامخ سوه او هغه عذاب چي په ورځ د قيامت به دوى ته وركول كېږي "بانهم" اى بسبب انهم يعني بني النضير چي دوى مخالفت وكړي د خداى له امر څخه او د رسول د خداى له امر څخه وهو الايمان بالله ورسوله.

وَمَنْ يُّشَآقِّ اللّٰهَ فَاِنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ ﴿٤﴾

او څوک چي عداوت او مخالفت وكړي له خداى څخه يعني له امر څخه د خداى او د رسول په تحقيق خداى سخت دى عذاب دده يعني دوى ته به سخت عذاب وركوي په دنيا كي بالاجلاء من الديار بكمال الذل والاهانة، او په اخرت كي مغلول الايدي ير مورد في نار البوار.

شان نزول د وروسته ايت: محمد بن يوسف الصالحي رحمه الله وايي چي رسول كريم ﷺ امر وكړی په هغه وخت كي چي بني النضير خپلي قلاوي د خپلو ځانو لپاره سنګر د جنګ وګرځاوه او غشي ويشتل يې له قلاؤ څخه كاوه چي د دوی د باغو د خورماؤ د درختي ربيي او اور وراچوي پر دې كار يې مسلط كړی ابو ليلى المازني رضي الله عنه او عبدالله بن سلام رضي الله عنه، نو ابو ليلى رضي الله عنه به د عجوة خورما وو درختي قطع كولې (چي بهترينه خورما ده په نوع كي د خورماؤ) او عبدالله بن سلام رضي الله عنه يقطع اللون (يعني نور اقسام د خورما چي عرب يې لون بولي) فقيل لهما في ذالک چا ورته وويل چي تاسي ولي يو داسي او بل د غسي كوئ، فقال ابو ليلى رضي الله عنه العجوة احرق لقلوبهم (يعني په قطع د عجوة د دوی زړونه بـه كباببږي) وقال عبدالله بن سلام رضي الله عنه چي زه په دې يقين لرم چي دا باغونه د دوی موږ ته په غنيمت پاتېږي، نو بنه دی چي عجوه موږ ته پاته سي، د بني النضير ښځو چي له قلاؤ څخه يې دا قطع ليدل، شق الجيوب (ګريبانونه يې پر ځانو څيرل) وضرب الخدود (او خپل مخونه او بارخوګان يې په چپلاخو وهل) او ناري د واويلا بې وهلې، نو سلام بن مشكم وحيي بن اخطب (چي دواړه مشران د بني النضير وه) چي درخته د عجوة چي اول په مځكه كي نهال كښېنول سي دېر كاله بعد د خورک خورما كوي، او مسلمانان يې قطع كوي، نو حيي بن اخطب وعليه الصلوة والسلام ته سړی راواستاوه چي ته خلګ له فساد څخه منع كوې فلم تقطع النخل، او د بعض مسلمانانو په زړو كي دا وسوسه ورپيدا سوه چي دا به فساد وي وبېربدل، او د بعض په زړو كي به دا خيال ورپيدا سو چي كاشكي مو نه قطع كولای ولي چي دا باغونه د خورما د بني النضير ژر دی چي موږ ته به په غنيمت پاته سي، فانزل الله تعالى، انتهى قول محمد بن يوسف الصالحي رحمه الله.

مَا قَطَعْتُم مِّن لِّينَةٍ

تاسي نه قطع كوئ لينة درختي د خورما.

**پوهه:** چي لينة پر وزن د فعلة دی مشتق د لون څخه دی او جمع يې الوان راځي كذا ذكر في الصحاح، البغوي رحمه الله وايي چي د اهل لغت اختلاف دی په معنی كي د لينة، بعض اهل لغت وايي چي ټولي درختي د خورما لينة بولي ما خلا د

عجوة وهو قول عكرمة وقتادة" ورواية عن ابن عباس" قال كان النبي ﷺ يقطع نخلهم الا العجوة يعني يأمر بقطع ماسوى العجوة.

**درویش وايي**: چي دا خلاف د قول د صالحي" دی، او اهل مدينه هم ماسوی ته د عجوة من التمرة الوان وايي چي مفرد يې لين او لينة دی، وقال مجاهد وعطية" چي لينة ټولو درختو ته د خورما وايي بدون الاستثناء، وقيل غير ذالک.

**اعراب**: کلمه د ما شرطيه ده محلاً منصوب ده په قطعتم سره او من لينة بيان د ما دی او ترکتموها الخ پر عطف يعني پر قطعتم، او قوله تعالی فباذن جزاء د ما شرطيه ده.

**فائده**: يوه درخته د خورما ثمن يې د يوه مريي ؤ په عربو کي بلکې يوه درخته د خورما تر مريي پر گرانه وه.

مقوله: قدر زر زرگر شناسد وقدر گوهر گوهري

او علماء وايي چي خورما عمه ده د انسانانو، ولي آدم ﷺ چي له ختو څخه جوړ کړل سو څه ختي څني پاته سوې هغه يې تخم د خورما وگرځاوه بقدرته تعالی گويا خورما د آدم ﷺ خور ده او د انسانانو عمه ده.

أَوْ تَرَكْتُمُوهَا قَائِمَةً عَلَىٰ أُصُولِهَا فَبِإِذْنِ اللَّهِ وَلِيُخْزِيَ الْفَاسِقِينَ ۝

او يا تاسي پرې ايښي وي پر خپلو ريښو يعني تعرض مو نه وي ورته کړی (بشيئ من القطع والحرق) په اجازه سره د خدای عزوجل يعني قطع او ترک يې دواړه په اجازه او امر د خدای" دي على لسان رسوله ﷺ ليس في ذالک اثم لکه حيي بن اخطب دا کار فساد باله، يا د بعض مسلمانانو په وهم کي ورتېره سوې وه کمامر تفصيله في قول الصالحي".

"ويجزي الفاسقين" چي خدای ذليل کړي په دغه اذن په قطع فاسقان چي بني النضير وه، روح المعاني وايي چي کلمه د لام يعني مجموع جمله علت ده متعلق په مقدر پوري او هغه مقدر عطف دی پر مقدر آخر باندي، تقديره ليجز المؤمنين وليجزی الفاسقين، ومن ههنا قال ابو حنيفة" چي امام (يعني سلطان) د مسلمانانو چي محاصره کړي يوه قلعه د کافرانو جاز له ان تقطع اشجارهم ويفسد زروعهم (يعني د دوی کښتونه وهدم بيوتهم او نړول د دوی د خونو) په سونگ وغيره سره، او کمال الدين الهمام" شارح د هدايه چي سره سره د عظيم فقاهته

محدث جليل دی او صاحب د نقض او ابرام دی وايي چي دا هدم او حرق وغيره هلته روا دی چي غالب ظن د امام او مسلمانانو دا وي چي دا قلعه موږ نه سو فتح کولای بيله مذکوره کارو، او که يې ظن غالب دا ؤ چي دوی يعني کفار مغلوب کېږي او فتح لابد منه ده، کره ذالک بيا مذکوره کارونه مکروه دي لانه افساد في غير محل الحاجة او ددې کارو مدح وايي خو په سبب د ضرورت او حاجت انتهى بحاصله.

## وَمَآ اَفَآءَ اللّٰهُ عَلٰى رَسُوْلِهٖ مِنْهُمْ

**پوه سه:** چي دا بيان د حکم دی د ما اخذ من بني النضير بعد بيان ما جعل بهم من العذاب العاجل والاجل، او تېوله قصه چي د مخه تېره سوه من تخريب ديارهم وقطع اشجارهم والفيئ الرجوع الى حالة محمودة والمعنى ما رجع على رسوله د بني النضير د اموالو.

## مِنْهُمْ فَمَآ اَوْجَفْتُمْ عَلَيْهِ مِنْ خَيْلٍ وَّلَا رِكَابٍ

يعني چي تاسي نه دي ځغلولي د مال د بني النضير پر دلاسه کولو باندي نه اسان او نه اوښان، يعني د دوی سره مو جنګ نه دی کړی حتی چي ماحصل منهم غنيمت وګڼل سي.

## وَّلٰكِنَّ اللّٰهَ يُسَلِّطُ رُسُلَهٗ عَلٰى مَنْ يَّشَآءُ ۚ وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ۝

لکن خدای ج مسلط کوي رسولان خپل (چي دلته محمد ﷺ دی) پر هغه چي د خدای ج ورته اراده سي لکه په دې ځای کي چي په زړو د بني النضير رعب ور واچاوه چي بېله جنګه فراره سوه مالونه، باغونه، او سرايونه يې پرېښول. او خدای ج پر هر شي چي مشيت ورته وکړي تام القدرة دی.

**پوه سه:** چي بخاري او مسلم و ابو داؤد والترمذي والنسائي او نورو د عمر بن الخطاب رض څخه روايت کړی دی چي هغه مالونه چي د بني النضير څخه تر لاسه سوي وه بېله ايجاف د آسانو يا اوښانو کانت لرسول الله ﷺ خاصةً چي عليه الصلوة والسلام به د خپل کور نفقه ځني اخسته د يوه کال او مابقی به يې پر سلاح د جنګ لپاره مصرفول عدة في سبيل الله، او الضحاک رح وايي کانت تلک الاموال لرسول الله ﷺ خاصة لکن عليه الصلوة والسلام دا مالونه پر مهاجرينو تقسيم کړه

ولم يعط الانصار شيئًا الا لثلثة نفر منهم لفقرهم چي هغه مسكينان وه وذكر اسمائهم العلامة البغدادي في روح المعاني.

**درويش وايي:** چي د الضحاک روايت مخالف دی له روايت څخه د بخاري، مسلم، ابو داؤد او ترمذي عن عمر بن الخطاب كمامر آنفًا والله اعلم.

وايضًا روى البخاري ومسلم چي په روايت كي د عمر بن الخطاب يوه ورځ دده حاجب چي نوم يې يرفاء ؤ عمر ته راغلی فقال هل لک في عثمان و عبدالرحمن والزبير وسعد ﷺ چي دوی اجازه غواړي قال نعم، هو را دي سي نو هغه ورغله يو كړی وروسته بيا يرفاء راغلی عمر ته يې وويل هل لک في عباس و علي ﷺ چي دوی هم اجازه غواړي قال نعم را دي سي. فلما دخلا قال عباس يا امير المؤمنين اقض بيني وبين هذا يعني علي.

**فائده:** د دوی مقصد دا ؤ چي علي د فاطمي حق غوښتی په ميراث كي د پلار او عباس د عصوبت حق غوښتی په ميراث كي د رسول الله ﷺ.

**سوال:** د بني النضير څو مره مالونه وه چي د عليه الصلوة والسلام تر وفات وروسته دوی دعوې پكښي كولې؟

**ځواب:** د بني النضير خو باغونه د خورما پاته سول او د كښت ځمكي چي هر كال به يې حاصل د ډېرو روپو كاوه، اوس بېرته د قصې پر خوا، نو دې نورو حضراتو چي دمخه راغلي وه يعني عثمان وغيره هغو هم ورته وويل يا امير المؤمنين اقض بينهما وارح احدهما من الآخر، نو عمر وويل تاسي يو وار صبر وكړئ وانشد كم الله (زه قسم دركوم تاسي ته يعني عثمان او ملګري د هغه) الذي باذنه تقوم السماء والارض هل تعلمون ان رسول الله ﷺ قال لا نورث (صيغه د متكلم مع الغير يعني د ټولو انبياؤ څخه ميراث چا ته نه پاتېږي) ما تركناه صدقه عمر وويل يريد بذالک نفسه (كه يې څه هم صيغه د متكلم مع الغير ويلې ده اشارة الى ان حكم الانبياء عليهم السلام په ميراث نه وړلو كي يو دي) لكن مراد يې خپل ځان ؤ، بيا عمر مخ را واړوی پر عباس او علي او ورته وه يې ويل انشد كم الله هل تعلمون ان قال رسول الله ﷺ ذالک؟ قالا نعم، بيا عمر ورته وويل چي زه به دد ې تفصيل تاسي ته وكړم، ان الله قد خص رسول الله ﷺ في هذا الفيئ يعني

په غنیمت کي د بني النضير، لم يعطيه احدًا غيره فقال وما فاء الله على رسوله منهم فما اوجفتم الى قوله قدير، فكانت هذه خالصة لرسول الله ﷺ ثم قال عمر الله ما اختارها دونكم ولا استأسرها عليكم (يعني يوازي يې پر ځان نه ختمول چي تاسي ته يې نه دركول) فقد اعطاكموها وقسمها فيكم.

**سوال:** د مخه تېره سوه چي له اموالو څخه به عليه الصلوة والسلام به يو كال نفقه واخستل او باقي به يې عدة في سبيل الله وګرځول، او دلته عمر قد اعطاكموها وقسمها فيكم وويل، نو ددې دوو خبرو به منافات نه وي؟

**ځواب:** يا منافات يې نسته ولي چي ګاهي ګاهي به يې دوى ته په قدر الحاجة د دوى وركاوه وليس ان كل ذالك المال قسم رسول الله ﷺ عليهم، عمر وويل چي دا باقي مال پاته سو دا خو د رسول الله ﷺ د ژوند حال و چي عليه الصلوة والسلام وفات سو فقال ابوبكر يعني چي دى خليفة الرسول الله ﷺ وټاكل سو يعني باتفاق آراء الصحابة انا ولي رسول الله ﷺ (يعني جاى نشين) نو ابوبكر هغه باقي مال په خپله قبضه كي واخستى فعمل فيه بما عمل رسول الله ﷺ والله يعلم انه (اى ابابكر) فيه (اى في العمل بما عمل رسول الله ﷺ) لصادق بار راشد ثم توفى الله ابابكر نو ما وويل انا ولي ولي رسول الله ﷺ وولي ابى بكر. نو ما دا مال قبض كړى څو د امارت خپل چي ما هم هغه ډول عمل كاوه لكه رسول الله ﷺ چي كاوه او ابوبكر چي كاوه والله يعلم اني فيه بار راشد تائع للحق، بيا عباس او علي ﷺ مخ راواروى چي يو وخت خبره دا وه چي تاسي دوه په اتفاق واست وه يعني چي دا مال موږ ته وسپاره چي موږ يې تصرف وكړو فقلت لكما ان رسول الله ﷺ لا نورث ما تركناه صدقة، بيا ما فكر وواهه چي دا مال د دوى په لاس وركړه وقلت ان شئتما دفعته اليكما (كه ستاسي خوښه وي زه به دا مال تاسي ته دركړم) على ان عليكما عهد الله وميثاقه (پر تاسي وعده د خداى ده او ميثاق دى د خداى چي تاسي به عمل كوئ په دې مال كي لكه رسول الله ﷺ چي كاوه او ابوبكر ﷺ چي كاوه يا ما چي كاوه، منذ وليت (چي زه خليفه سوم) والا فلا تكلماني (كه هغسي نسئ كولاى زما سره په دې باب كي خبري مه كوئ) نو تاسي وويل ادفعه الينا بالشرط المذكور نو ما تصرف د هغه مال تاسي ته وسپارى، افتلتمسان قضاء غير ذالك (آيا تاسي غواړئ زما څخه غير ذالك

يعني چي تمليګا يې موږ ته راکړه) فو الله الذي تقوم باذنه السماء والارض لا اقضي فيه بقضاء غير ذالک حتی تقوم الساعة، او که چېري تاسي عاجز ياست د هغه د ول تصرف څخه، نو هغه مال بېرته ماته وسپارئ، اکفيکما عمله، انتهی الحديث الطويل في قصة مال بني النضير وقول عمر رضي الله عنه لعلي ولعباس رضي الله عنهما.

## مَآ اَفَآءَ اللّٰهُ عَلٰى رَسُوْلِهٖ مِنْ اَهْلِ الْقُرٰى

**درويش وايي:** چي د دې په حاصل يو ازي علامه بغدادي پوه سوی دی چي دی په روح المعاني کي وايي بيان لحکم ما آفاء الله علی رسوله ﷺ من قری الکفار علی العموم بعد بيان حکم ما آفاء الله من بني النضير کما ذکره القاضي ابو يوسف رحمه الله في کتاب الخراج عن محمد بن اسحاق عن الزهري عن عمر بن الخطاب رضي الله عنه، نو روح المعاني وايي دا جمله جواب دی د سوال مقدر چي ناشئ د ماقبل څخه دی فکان قائلا يقول قد علمنا حکم ما آفاء الله تعالی من بني النضير فما حکم ما آفاء الله من غيرهم فقيل ما آفاء الله علی رسوله من اهل القری آه ولم يعطف علی ما تقدم ولي چي حکم مستأنف دی.

**ترجمه:** هغه چي خدای ﷻ يې غنيمت کړي پر خپل رسول له قری ؤ څخه د کفارو (يعني غير بني النضير ولي د هغو حکم خو معلوم سو).

## فَلِلّٰهِ وَلِلرَّسُوْلِ وَلِذِى الْقُرْبٰى وَالْيَتٰمٰى وَالْمَسٰكِيْنِ وَابْنِ السَّبِيْلِ

**پوه سه:** چي ابتداء يې په نامه د خدای ﷻ وکړه لپاره د تبرک و اضافة المال الی نفسه لشرفه دا مراد نه دی چي يو سهم د خدای ﷻ ده فان الدنيا والآخرة کلها لله وهو قول الحسن وقتادة وعطاء و ابراهيم والشعبي وعامة الفقهاء وعامة المفسرين وهو الصواب وقيل يصرف سهم الله علی عمارة الکعبة والمساجد وهذا تقيد لا قرينة عليه بلکي پر دې تقدير سهام شپږ ګرځي وهو خلاف المعروف من السلف چي مصارف پنځه دي، وسهم الرسول ﷺ کان له في حايته ﷺ بالاجماع وهو خمس الخمس وهو ﷺ کان ينفق منه علی نفسه وعياله ولبعض زوجاته ويصرف الباقي في مصالح المسلمين، او په نېز د حنفيانو رحمهم الله چي دی مبارک وفات سو حصه يې ساقطه سوه، دليل يې دا دی چي د خلفاء راشدين رضي الله عنهم اتفاق ؤ علی ذالک وهم امناء الله تعالی علی دينه.

**پوه سه:** چي د خلفاء راشدين څخه مراد ابوبكر عمر عثمان علي ﷺ دي يعني چي هغو برخه د عليه الصلوة والسلام وروسته تر وفات د عليه الصلوة والسلام چا ته نه ده ورکړه او دوی امينان د خدای ؏ وه پر دين باندي، ونقل عن الشافعي انه يصرف للخليفة بعده ثم وثم ومنهم لذي القربى وسهم لليتامى وسهم للمساكين وسهم لابن السبيل، نو دا پنځه سهم سوه د خمس والمراد من ذی القربى قرابة النبي ﷺ والمراد به بنو هاشم وبنو المطلب دي ولي نبي ﷺ وضع السهم يعني د ذوی القربى فيهما په دغو دوو قومونو کي، قال جبير بن مطعم چي عليه الصلوة والسلام سهم د ذوی القربى وبني هاشم ته ورکړی جبير بن مطعم وايي چي زه و عثمان ؓ ورغلو و عليه الصلوة والسلام ته موږ ورته وويل يا رسول الله ان هؤلاء بني هاشم لاتنكر لفضلهم لمكانك يعني چي ته د بني هاشم څخه يې ارئيت هؤلاء اخواننا من بني عبد المطلب اعطيتهم وتركنا وانما قرابتهم وقرابتنا واحدة يعني في النسب فقال رسول الله ﷺ انما بنو هاشم وبنو المطلب شيئ واحد هذا وشبك بين اصابعه، رواه الشافعي، او په روايت کي د نسائي انا وبنوا المطلب لانفرق في الجاهلية والاسلام وانما نحن وهم شيئ واحد وشبک بين اصابعه.

**پوه سه:** چي مراد د يتمٰی چي جمع د يتيم ده واليتيم من لا اب له.

**فائده:** يتيم د انسانو من لا اب له ومن اليحوانات ما لا ام له ومن الدرر والجواهر ما لا مثل له كالدرة اليتيمة في الصدف، او له مساکينو څخه مراد هغه څوک دي چي لا نصاب له فاضلاً من الحاجات الضرورية، وقيل من لانفقة له زائدة على يوم وليلة وقل وندر جوده اليوم كما لايخفٰى او مراد د ابن السبيل څخه مسافر دی چي د خپل مال څخه لېري وي يعني وان غنيًا.

كَيْ لَا يَكُونَ دُولَةً بَيْنَ الْأَغْنِيَاءِ مِنكُمْ ط

په کلمه کي تعليل دی للقسمة وضمير يكون راجع دی الی الفيئ ای ما آفا الله يعني دا تقسيم چي خدای عزوجل پر مصارفو مذکوره ؤ کړی، ددې لپاره چي ما افاء الله دولت او شتمني ونه ګرځي په مابين کي اغنياء ستاسي لکه په زمانه کي د جاهليت چي څه غنيمت به پيدا سو اغنياؤ به په خپل مابين کي سره ويشی.



Scanned by CamScanner

وَمَآ اٰتٰىكُمُ الرَّسُوْلُ فَخُذُوْهُ وَمَا نَهٰىكُمْ عَنْهُ فَانْتَهُوْا

او کوم شی چي تاسو ته پیغمبر درکړي، نو هغه واخلئ او طمع د مازاد مه کوئ بناء علی الحرص علی ماطابت نفسه، او چي رسول ﷺ مو نهي کړي لکه غلول یعني غلا په غنیمت کي وغیره، نو د هغه څخه ځانونه منع کړئ یعني مخالفت د رسول الله ﷺ څخه مه کوئ لانه ﷺ امین الله في الارض.

**پوه سه:** چي دا جمله معترضه ده ددې لپاره خدای ﷻ ذکر کړه چي څوک دي طمع نه کوي له رسول الله ﷺ څخه د هغه شي چي دی راضي نه وي.

**فائده:** دا آیت که څه هم نازل دی په فیئ کي لکن حکم یې عام دی في کل ما امر به النبي ﷺ او نهی عنه یعني نورو اوامرو او منهیاتو ته د رسول الله ﷺ شامل دی.

آن کس که شد متابع امر تو قد نجا .... وآنکه خلاف رای تو ورزید قد هلک

د مثال په توګه له ابن مسعود رضی الله عنه څخه روایت دی لعن الله الواشمات (چي شنه خالونه ایږدي پر تندي یا پر لاس باندي (یعني د حسن لپاره) والمستوشمات (یا طلب د بلي ښځي څخه د وشم او خالو کوي) والمتمصمات الحسن (چي بعض مره او کوچني وېښتان د مخه کاږي لپاره د ښائست چي په پښتو یې نخ بولي چي د تار په ذریعه پخوانیو ښځو کاوه او په اوسنی زمانه کي خپل کاسبان لري چي د ښځي مخ ور ښوی کوي لکه هنداره" والمتفلجات" هغه ښځي چي غاښونه یې تېروېږ وي یا غوښونه تر مابین فرجه نه لري یو د بل سره متصل وي، نو داسي غاشونه خوند نه کوي، نو په پخوا زمانو کي به دوی په سوهان سره دا غاښونه سمول او په اوسنی زمانه کي خپل کاسبان لري چي په آلات جدیده ؤ سره دا کار کوي، څرنګه چي ښځه ورته ووایي اصلاح کوي یې، ابن مسعود رضی الله عنه زیاته کړه "المغیرات خلق الله" دا د ابن مسعود رضی الله عنه حدیث چي یوې ښځي ته د بني اسد ورسېدی چي ام یعقوب یې بلل هغه راغله ابن مسعود رضی الله عنه ته یې وویل چي ماته ورسېده چي تا لعنت ویلی دی پر کیت و کیت ښځو باندي، ابن مسعود رضی الله عنه ورته وویل ما لي لا العن من لعن علیه رسول الله ﷺ وهو في کتابه (چي څه سبب دی ماله چي زه به لعنت نه وایم پر هغه چا چي پر هغه لعنت رسول الله ﷺ ویلی وي او هغه په کتاب الله کي هم موجود وي) ام یعقوب ورته وویل ما خو کتاب الله مابین

اللوحين اى ما بين الوقايتين ويلى دى فما وجدت فيه ما تقول، ما خو دا ستا د لعنت ويلو ځاى نه دى پكښي پيدا كړى، ابن مسعودؓ ورته وويل كه دي ويلى دى نو دي هغه پكښي پيدا كړى دى يعني نه يې په پوهېدلې، ابن مسعودؓ ورته وويل چي دا ايت تا په قرآن كي نه دى لوستى "ما آتاكم الرسول فخذوه وما نهاكم فانتهوا) قالت بلى، هو دا ايت مي ليدلى او ويلى دى، ابن مسعودؓ ورته وويل چي لعنت پر دغو ښځو خو رسول اللهﷺ ويلى دى وقد قال الله تعالى وما ينطق عن الهوى ان هو الا وحي يوحى، انتهى حديث ابن مسعودؓ بزيادة.

وَاتَّقُوا اللَّهَ ۖ إِنَّ اللَّهَ شَدِيدُ الْعِقَابِ ۝

او له خداى ځخه وبېرېږئ (في مخالفة رسوله، دا جمله معترضه ده) په تحقيق خداى سخت عذاب وركونكى دى يعني لمن خالف.

**درويش وايي:** چي په دې ايت دليل پر دې باندي ان كل ما امر به النبيﷺ فهو امر من الله، علماء قاطبة دا وايي چي اتباع الرسول په فرائضو عينيه ؤ كي فرض عين ده پر امت (لكه پنځه لمونځونه روژه وغيرهما او فرض كفايي په فروض كفائيه ؤ كي لكه د جنازې لمونځ وغيره و واجب في الواجبات لكه صدقة الفطر ونحوه وسنة في السنن لكه د لمانځه د جمعې د مخه سنت او وروسته سنت يا پر نورو لمونځونو كي سنت قبلي وبعدي. نو كه مورږ پر دې علم درلودى چي عليه الصلوة والسلام دا كار پر كومه وجه كاوه كمامر امثلتها نو مورږ به يې هم پر هغه وجه كوو، او كه نه ؤ خبر چي دا فعل پر كومه وجه عليه الصلوة والسلام كاوه فلنا فعله على ادنى منازل افعاله وهو الاباحة لكه په حديث صحيح كي چي راغلي دي چي يوه سپين سرې ښځه و عليه الصلوة والسلام ته راغله چي ت ما ته دعاء وكړه چي ما ته خداى جنت راكړي عليه الصلوة والسلام ورته وويل (يعني د مسخرې پر ډول) چي سپين سرې خداى جنت ته نه پرېږدي، ښځه په بغارو سوه عليه الصلوة والسلام خلكو ته وويل چي دې ته وواياست انا انشأهن انشاء الى اخير الآية، يعني چي په دغه سپين سر دي خداى جنت ته نه پرېږدي بلكې ځوانه به يې يعني د درود پرش (٣٢) كالو مثلاً، مطلب دا دى چي ورته مسخره جائز او مباح ده، او په بل حديث كي راغلي دي چي يو سړى و عليه الصلوة والسلام ته راغلى

چي زما كور ليري دى ما ته يو اوښ راكړه چي كور ته ځان پر ورسوم، عليه الصلوٰة والسلام ورته وويل چي كه د اوښي زوى غواړې دركوم يې (د هغه خيال دا سو چي جونګى راكوي) نو هغه ورته وويل چي د اوښي زوى زما څه په درد خوري، وروسته عليه الصلوٰة والسلام ورته وويل چي لوى اوښان خو هم د اوښي زامن دي، داسي مسخره مباح او جائز ده، والله اعلم.

لِلْفُقَرَآءِ الْمُهٰجِرِيْنَ الَّذِيْنَ اُخْرِجُوْا مِنْ دِيَارِهِمْ وَ اَمْوَالِهِمْ

**پوه سه:** چي لفظ د "للفقراء" بدل دى د القربٰى څخه وما عطف عليه څخه لا من الله والرسول والا يلزم دخول الرسول في الفقراء او سره د دې چي رسول ته فقير نه ويل كيږي لانه يوهم منه الذلة لان الفقر ليس مدح.

**سوال:** په حديث شريف كي راغلي دي چي الفقر فخري؟

**ځواب:** روح المعاني وايي لا اصل لهذا الحديث، واذا لم يصح تسمية الرسول فقيرًا فلان لايصح تسميته تعالى فقيرًا بالطريق الاولى.

**ترجمه:** او د فقراؤ او مهاجرينو لپاره هغه كسان چي دوى ايستل كړه سوي د خپلو كورو څخه (چي په مكه كي يې درلوده "الذين" صفت دى د الفقراء) او د خپلو مالو څخه چي په مكه كي يې دكانونه، تجارتونه درلوده يعني كفارو د مكې دوى مجبور كړه و فرار ته په سبب د كمال اذار چي دوى ته يې رساوه چي دا مهاجرين سل (۱۰۰) نفره وه او مشركانو يې پر مالو قبضه وكړه فخرجوا منها او دا كسان كه څه هم له مكې څخه ووتل اما اختيارًا حبًا لله ورسوله واختاروا الهجرة على ما كانوا عليه من الاموال والدور والتجارة وصح عن النبي ﷺ انه كان يستفتح (شروع يې كول د صدقاتو) بصعاليك المهاجرين (جمع د صعلوك ده په معنى د فقير يعني بفقراء المهاجرين) وقال عليه الصلوٰة والسلام يا معشر صعاليك المهاجرين ابشروا بالنور التام يوم القيامة تدخلون الجنة قبل الاغنياء بنصف يوم (يعني په نيمه ورځ كي) يعني د ورځو د آخرت چي مقدار يې زر (۱۰۰۰) كاله او نيمه ورځ يې پنځه سوه (۵۰۰) كاله ده.

يَبْتَغُوْنَ فَضْلًا مِّنَ اللّٰهِ وَ رِضْوَانًا وَّ يَنْصُرُوْنَ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهٗ

دا جمله حال ده له فقراء مهاجرينو څخه، والمعنى: حال كونهم طالبين منه تعالى رزقًا في الدنيا (وهو معنى د فضلاً ده) ومرضاته تعالى في الآخرة.

**پوه سه:** چي خدای پاک د دوی توصیف وکړی په هغه وصف سره چي دوی مستحق دي فيئ چي هغه اخراج دی د دوی من دیارهم بمکة واموالهم، بیا يې تعظیم د شان د دوی وکړی بقوله یبتغون من العالي چي طلب دی د رزق په دنیا کي الی الاعلی ای قوله تعالی ورضوانًا فان رضوان الله اکبر من عطایا الدنیا "وینصرون الله ورسوله" عطف دی علی یتبعون، نو دا حال مقدره دی.

**پوه سه:** چي حال مقدره هغه ته وايي چي وروسته راتلونکی وي نحو قوله تعالی في حق الکفار یوم القیامة یدخلون النار خالدین فیها ابدًا، نو خالدین حال مقدره دی ولي چي خلود في النار خو تر دخول النار وروسته دی په دې ایت کي هم ینصرون تر هجرت د دوی وروسته دی. ای ناوین نصرة الله ورسوله في الهجرة که څه هم د دوی د دخول په وخت کي مدینې ته کومه غزاء نه وه موجوده.

أُولَٰٓئِكَ هُمُ ٱلصَّٰدِقُونَ ۝

دغه مهاجرین (چي احوال يې ذکر سول) هم دوی محکمه دي په صدق کي.

**پوه سه:** چي مبتداء او خبر يې دواړه معرفه راوړه او ضمیر فصل يې هم راوړی لپاره د تاکید د صدق د دوی، روافض خذلهم الله وايي چي دغه کسان یعني المهاجرین المذکورین حالهم منافقان وه په ادعا کي د ایمان، نو دوی کافران دي ولي چي دوی یعني الروافض منکر دي له دغه ایت څخه.

**پوښتنه:** په دمخه ایت کي ذکر سول په بیان کي د مهاجرینو "واموالهم" نو چي دوی مالونه درلوده، په دمخه ایت کي يې ولي دوی فقراء وبلل؟

**ځواب:** فقهاء" وايي چي کفار مکه مالکان د اموالو د مهاجرینو وګرځېدل چي مهاجرینو په مکه کي پرېښول که سرایونه وه او که تجارتي مالونه، دا ایت يې دلیل دی، ولي فقیر هغه چا ته ویل کېږي چي لا شيئ له ملګا، او هغه څوک چي مالک د مال وي مګر دده لاس خپل مالته رسېږي هغه ته فقیر نه وايي بلکې هغه ته ابن السبیل وايي، له هم دې سببه امام بو حنیفة" او مالک" وايي چي کفار چي پر اموالو د مسلمانانو غلبه وکړي هغه کافران يې مالکان ګرځي چي په خپل دار یعني د کفارو په دار کي وي لکه دلته اموال د مهاجرین په مکه کي پاته سول چي دار د کافرانو د مکې وُ هغه مالونه د مکې والو مشرکانو مال او ملک سوه، او

البغوي ؒ په شرح السنة کي د امية بن خالد څخه روايت کړی دی عن النبي ﷺ چي رسول الله ﷺ به طلب د فتح کاوه په بعض غزواتو کي بصعاليک المهاجرين ؓ (په فقراؤ سره د مهاجرينو يعني په برکت د فقراؤ) چي هغه سي فقراء به او س په نړی کي زما په گمان وجود نه لري، ډبري به يې په نس پوري تړلي وې چي ملا مي سمه سي د لوږي له سببه، او چي ژمی به سو يخ به ؤ په مځکه کي به يې يوه کنده جوړه کړه داغه يې تلتک او نالي وه، ومع ذالک يحبون القتل في سبيل الله.

اخرج ابن المنذر عن يزيد بن الاصم ان الانصار (يعني اهل المدينة المنورة الاوس والخزرج) قالوا يا رسول الله اقسم اموالنا (يعني النخيل واراضي الزرع بيننا وبين اخواننا نصفين) قال ؐلا يعني تقسيم يې نه کوم تاسي مؤنت او کارونه د خپلو باغو او مځکو پر خپل غاړه واخلئ يعني مهاجرين خو د باغو او مځکو په کاروبار عادت نه دي، وتقاسمونهم في الثمرة (او مهاجرين د رسره شريک کړئ په مېوه کي، والارض ارضکم قالوا رضينا يا رسول الله. فانزل هذه الآية فيهم.

وَالَّذِيْنَ تَبَوَّؤُ الدَّارَ وَالْاِيْمَانَ

او هغه کسان چي مبائة يعني ځای د قرار دار الهجرة او په ايمان کي محکم وې (وهم الانصار ؓ)

**پوه سه**: چي خدای عزوجل مشابه کړی ايمان بالمقر (يعني په ځای پوري د قرار) لدوام ثباتهم عليه (ای ثبات الانصار على الايمان) او ايمان ته تبوء يعني ځای د قرار ثابت کي على طريق الاستعارة التخيلية، او بعض مفسرين وايي چي تبوء و دار الهجرة ودار الايمان بحذف المضاف من الثاني ای الايمان واللام في الايمان عوض عن المضاف اليه.

**پوښتنه**: مدينه منوره ولي دار الايمان بولي؟

**ځواب**: مدنيه ځای د اظهار د ايمان وگرځېدل په ټوله نړی کي بالغزوات مع الكفار في عصر النبي ﷺ وفي عصر الخلفاء الراشدين ؓ من بعدهم، نو ځکه په حديث کي د جابر بن سمرة ؓ راغلي دي چي رسول الله ﷺ وويل چي خدای ؓ مسمی کړه المدينة طابة راغلي دی يعني پاک ځای من حيث الدين والدنيا.

مِنْ قَبْلِهِمْ يُحِبُّوْنَ مَنْ هَاجَرَ إِلَيْهِمْ وَلَا يَجِدُوْنَ فِيْ صُدُوْرِهِمْ حَاجَةً مِّمَّآ أُوْتُوْا

دمخه تر هجرت د مهاجرينو دوی محبت لري يعني الانصار د هغو کسانو سره چي هجرت دوی ته راوکړي.

**درويش وايي:** چي حاجة دلته په معنی د محتاج اليه دی قال العلامة البغدادي" وهو استعمال شائع كما يقال خذ منه (ای من فلان) حاجته ای ماتحتاج اليه واعطاه (ای الی فلان) من ماله حاجته ای مايحتاج اليه "فما اتوا" يعني چي مهاجرينو ته به ورکړه سو من الفيئ وغيره، والحاصل چي نفوس د انصارو به مائل نه وه هغه شي ته چي مهاجرينو ته به ورکړه سو، او طمع به يې هم نه کول و هغه شي ته که به څه هم دوی ورته محتاج وه هغه شي ته، او کلمه د من په مما کي تبعيضي ده، او يا کلمه د من بياني ده والكلام على حذف المضاف ای طلب ما اتوا، وفيه فائدة جليلة كانهم (ای الانصار) لم يتصوروا ان ذالک الشيئ محتاج اليه دی، او بعض مفسرين وايي چي مراد له حاجة څخه هغه شی دی چي حاجت سړی پر باعثه کوي من الطلب والحسد او غصه چي غيظ يې په عربي بولي په حديث شريف کي راغلي دي چي رسول الله ﷺ چي اموال د بني النضير په قبضه کړه او دوی يې فراره کړه نو د دوی مالونه يې صرف پر مهاجرينو وويشل انصارو ته يې شی ورنه کړی، مګر دوو کسانو ته چي ډېر مسکينان وه فطابت انفس الانصار ﷺ بذالک يعني ښه سوه چي دا اموال يې مهاجرينو ته ورکړه.

**درويش وايي:** چي محمد بن يوسف الصالحي" په سبيل الرشاد کي وايي چي عليه الصلوة والسلام چي عمرو بن عوف د مسجد قباء په سيمه کي يې کورؤ مديني منورې ته يې تشريف راوړی، نو مهاجرين د مکي مکرمې هم ټوله مديني منورې ته راستانه سوه، نو انصارو ﷺ د زړه له اخلاصه څخه دوی ته يعني مهاجرينو ته رغبت وکړی حتی چي انصارو قرعه اندازي سره وکړه فما نزل احد من المهاجرين" على احد من الانصار الا بالقرعة بينهم، نو انصارو" دوی ته سرايونه ورکړه او خپل مالونه من النخيل وغيرها د دوی سره شريک کړه جزاهم الله خيراً، نو څه وخت چي رسول الله ﷺ غنيمت د بني النضير تر لاسه کړی نو ثابت بن قيس بن شماس" چي يو مشر سړی ؤ د

انصارو را وه يې غوښتي فقال ادع لي قومک هغه ورته وويل الخزرج؟ (چي د ثابت شخصي قوم ؤ) يا رسول الله ﷺ، قال الانصار كلهم، نو ثابت د اوس او د خزرج قبيلي دواړي جمع كړې، نو رسول الله ﷺ خبري شروع كړې اول يې حمد او ثناء د خداى عزوجل وويل بما هو اهله، بيا يې ذكر د انصارو او د دوى د ښې همكارى او مرستي د مهاجرينو سره بيان كړې چي مهاجرينو ته يې په خپلو كورو كي ځاى وركړى او خپل اموال يې تر دوى قربان كړل او تر خپلو ځانو يې مقدم كړه، بيا رسول الله ﷺ وويل كه ستاسي خوښه وي زه به د بنو النضير غنيمت ستاسي او د مهاجرينو تر منځ تقسيم كړى لكن مهاجرينو به كما كان سكنى به يې ستاسي په سرايو كي وي واموالكم، او كه ستاسي خوښه وي زه به غنيمت و مهاجرينو ته وركړم مهاجرينو به ستاسي له كورو څخه ووزي او ستاسي د مالو څخه به دست بردار ه سي. فتكلم سعد بن عبادة رضي الله عنه وسعد بن معاذ رضي الله عنه اعطاهما الله خيرًا و ثوابًا، نو دې دوو نامورو كسانو وويل: يا رسول الله ﷺ چي تاسي مالونه د بني النضير پر مهاجرينو فقط تقسيم كړه ويكونوا في دورنا كما كانوا، او ټولو انصارو جزاهم الله خيرًا ناري كړې رضينا وسلمنا يا رسول الله ﷺ (يعني بما قال سعد بن عبادة وسعد بن معاذ) فقال رسول الله ﷺ اللهم ارحم الانصار، فقسم رسول الله ﷺ ما افاء الله واعطى المهاجرين ولم يعط احدًا من الانصار شيئًا الا ثلثة او اثنين (شک من الراوي) چي هغه له انصارو څخه وه لكن ډېر مسكينان او محتاجه وه چي يو سهل بن حنيف ؤ او بل ابو دجانة او سعد بن معاذ ته يې توره د سيف بن ابى المحقيق (چي يو يهودي ؤ) چي يوه ډېره نامداره توره وه وركړه، انتهى قول الصالحي والله اعلم بالصواب في كل باب.

وَيُؤْثِرُونَ عَلَىٰٓ أَنفُسِهِمْ وَلَوْ كَانَ بِهِمْ خَصَاصَةٌ

او دوى يعني الانصار دمخه كول مهاجرين په خپلو اموالو او كورو سره (حتى تر دې اندازې پورې چي يو انصاري به دوې مايني درلودې يوې ته به يې طلاق وركړى چي عده به يې تېره سوه مهاجر ته به يې په نكاح وركړه) "على انفسهم" يعني تر خپلو ځانو يې پر مهاجرينو پېرزوينه درلوده، او كه څه هم د انصارو و هغه شي ته چي مهاجر ته به يې وركړى حاجت به يې درلودى، بخاري له ابو هريرة څخه روايت كړى دى چي يو سړى و رسول الله ﷺ ته راغلى او داسي

يې ورته وويل اصابني الجهد يعني وږى يم، نو عليه الصلوة والسلام و خپلو ټولو ازواجو مطهرات ته څوک واستاوه چې په کوم کور کې ډوډۍ يا د خوړک شى شته؟ د ټولو څخه منفي جواب ورته راغلى، بيا عليه الصلوة والسلام وويل الا رجل يضيفه يرحمه الله (نشته داسې څوک چې دا وږى مېلمه کړي خداى دې رحم پرو کړي) يو سړى له انصارو څخه ولاړ سو چې زما مېلمه دى، نو انصاري هغه سړى کور ته بوتلى مايني ته يې وويل چې دا سړى مېلمه د عليه الصلوة والسلام دى هيڅ شى مه ځني ذخيره کوه، مايني يې ورته وويل چې په کور کې دومره خواړه شته چې د کوچنيانو بس سي، تعني زما او ستا لا نه ورسره بسېږي، مېړه يې ورته وويل چې د ډوډۍ وخت چې نژدې سي کوچنيان بيده کړه ته راسه څراغ مړ کړه (يعني په بهانه د دې چې تېل يې خلاص سوه) او ما او تا به د مېلمه سره پر کاسه کښېنو له کاسې څخه به لاس وهو (چې د مېلمه دا خيال سي چې دوى هم ډوډۍ راسره خوري) مګر ما او تا به تنه شپه ځان وږى پرېږدو او د عليه الصلوة والسلام مېلمه به ښه موړ کړو، مايني يې هم دغسې وکړه، نو هغه انصاري يعني چې د عليه الصلوة والسلام مېلمه يې کور ته بېولى ؤ او ښه يې موړ کړى ؤ او ده او دده آل و عيال ټوله په وږي نس يې شپه تېره کړې وه عليه الصلوة والسلام ورته وويل قد ضحك الله من فلان وفلانة.

**درويش وايي:** چې حقيقت د ضحک خو پر خداى عزوجل محال دى كما هو ظاهر لكن چونكه ضحک د سرور او رضى څخه پيدا كېږي، نو دلته ذكر د مسبب دى چې ضحک دى مراد ځني سبب دى اى الرضى. فالمعنى لقد رضى تعالى من فلا وفلانة فيما فعلا بضيف رسول الله ﷺ. فنزل ويؤثرون على انفسهم ولو كان بهم خصاصة.

**پوښتنه:** خبره خو په انصارو او مهاجرينو کې وه دا سړى خو د عليه الصلوة والسلام مېلمه ؤ؟

**ځواب:** يمكن انيكون هذا الضيف ايضًا من المهاجرين.

**فائده:** په يوه روايت کې د دغه حديث راغلي دي چې مهمان د عليه الصلوة والسلام چې يې کور ته بوتلى ثابت بن قيس بن شماس رضی ؤ، او واحدي سند د

حديث ابن عمر رض ته رسولى دى چي يو سړي د پسه سر را استولى ؤ (غالبًا پوخ به ؤ) هغه سړي وويل چي اخي (يعني في الدين) فلان وعياله الى هذا (اى رأس الشاة) احوج منا اليه فبعثه اليهم ثم وثم حتى تداولها سبعة ابيات حتى رجع الى البيت الاول، فنزلت هذه الآية ويؤثرون آه.

**سوال**: شان نزول د آيت خو به يو وای؟

**ځواب**: لابعد انيكون نزول هذه الآية بعد كل من الواقعات المذكورة، وروى البخاري عن انس بن مالك رض چي رسول الله ﷺ انصار رض را وغوښتل چي دوى ته د بحرين مځكي ور ووېشي (يعني هغه وخت چي بحرين فتح سو) انصارو رض وويل لا الا ان تقطع لاخواننا المهاجرين مثلنا، يعني موږ دا مځكي نه غواړو چي مهاجرينو ته هم مثلنا مځكي ور نه کړل سي، عليه الصلوة والسلام ورته وويل فاصبروا حتى تلقوني على الحوض يعني في القيامة فانه سيصيبكم اثرة بعدي، انصارو رض ته عليه الصلوة والسلام وويل چي نور صبر مه کوئ تر هغه وخته چي زما سره ملاقي کېږي يعني په ورځ د قيامت فانه سيصيبكم اثره بعدي (اى بعد وفاتي)

**پوښتنه**: عليه الصلوة والسلام ولي انصار رض په صبر کولو سره امر کړه؟

**ځواب**: عليه الصلوة والسلام ته په وحي غير متلو سره دا معلومه وه چي يو وخت وروسته تر وفات زما به پر انصارو رض داسي حال راسي چي مهاجرين رض په خپل مابين مرستي او کومکونه سره کوي او د انصارو رض په حالاتو کي به فكر نه وهي.

فدايى دوست نكرديم عمر و مال دريغ .... كه كار عشق زما اين قدر نمى آيد

ابو يزيد البسطامي قدس سره وايي چي زه ملامت کړم او پر ما غالب سو يعني په خبرو کي يو ځوان د اهل بلخ هغه ځوان ماته وويل ما الزهد عندكم (يعني بې پرواهي له دنيا څخه او محبت د خدای عزوجل سره) بسطامي رح وايي ما ورته وويل: اذا وجدنا اكلنا واذا فقدنا صبرنا (كه د خوړک شي را ورسېدی خورو يې او كه نه را ورسېدی صبر كوو) ځوان راته وويل هذا فعل كلاب بلخ (دا خو د بلخ د سپو کار دی يعني که څوک ډوډۍ ورواچوي خوري يې که يې نه ورواچوي صبر يې کړی وي يعني پر ډوډۍ خوړونکو حمله نه کوي.

**درويش وايي**: چي د ايثار په باره کي د حذيفة العدوي خبر واوري، دی وايي

چي زه د يرموک په غذاء کي چي ډېر مړي او ټپيان پکښې وسوه ګرځېدم د خپل اکا په زوی پسي يوه مشکوله اوبه راسره وې په دې نيت که نفس پکښې ؤ اوبه بې په خوله کي ورتوی کړم، نو نابېره پر پېښ سوم ټپي ؤ سخت او د خبرو نه ؤ، ما ورته وويل اوبه درکړم ده په سر اشاره راته وکړه چي هو، ما دد ته اوبه ورکولې نژدې بل سخت ټپي پروت ؤ د آه آه ناري يې وهلې، نو زما د اکا زوی ما ته اشاره وکړه چي اوبه د هغه ټپي په خوله کي وراچوه ما چي هغه ته اوبه وروړې د هغه اړخ ته بل سخت ټپي پروت ؤ د آه آه ناري يې وهلې، نو دې بل ټپي اشاره راته وکړه چي هغه ټپي ته يې وروړه زه چي هغه ته ورتلم هغه وفات سو، دويم ټپي ته چي نوم يې هشام بن العاص ؤ راتلم هغه وفات سوی ؤ چي ابن العم ته را رسېدم هغه هم وفات سوی ؤ، اوبه ماته پاته سوې درې سره ټپيان د ايثار له کبله تږي مړه سوه.

**درويش وايي:** چي تاريخ قديم خبري کوي په ګډه بې سره واورو چي په قديم زمانه د بادشاه او دده د وزير تر مابين په دې موضوع کي اختلاف پيدا سو، فقال الملک چي علماء احسن حالاً دي او اصلح قلبًا دي من الفقراء والزهاد، وقال الوزير بخلاف ذالک وزير ورته وويل چي موږ بې امتحان وکړو د دواړو ډلو في امرين. نو يو سړی يې واستاوه په څو زرو دراهمو سره د مدرسې و علماؤ ته هغه سړي ته يې وويل چي ته ورسه ملايانو ته د مدرسې ووايه چي زه بادشاه را استولی يم او ډېر دراهم يې هم راکړي دي، او سلطان امر کړی چي په دوی کي چي افضل په علم کي ؤ هغه ته يې ورکړه نو په تاسي کي کوم يو افضل او اکمل په علم کي دی فقال واحد انا وقال الآخر کذب انا افضل من الکل واکمل في العلم وهکذا دعوی د افضليت وکړه په علم کي، نو مرسل بالنقود ورته وويل چي افضل ماته نه سو معلوم او يوه ته يې نقود ور نه کړه، نو هغه سړی ملک او وزير ته راغلی او ماجرٰی يې ورته بيان کړه، ثم ارسل الملک والوزير تلک النقود الی الفقراء والزهاد، هغو ته چي رسول وويل چي په تاسي کي احوج او ډېر فقير کوم يو دی، يوه به وويل فلاني دی زه نه يم احوج هغه بل به وويل چي ته ډېر محتاج او نقير يې هغه به ورته وويل فلاني دی وهکذا الی اخير، رسول روپۍ بېرته را واخستلې چي په تاسي کي فقير نه سو رامعلوم، بيا يې د رسول په لاس توره

ورکړه چي وره ملايانو ته د مدرسې ووايه چي ملا چي په علم اکمل وي ملک ما ته ويلي دي چي د هغه سر په دغه توره سره پرې کړه رايې وړه، نو ستاسي رئيس في العلم کوم يو دی، يوه ملا ورته وويل چي زه خو چندان عالم نه يم فلانی دی وهکذا الی الآخير، بيا يې رسول واستاوه فقراؤ ته هغو ته يې وويل چي ملک زه امر کړی يم چي هر يو چي په تاسي کې ډېر محتاج او فقير وُ د هغه سر په توره پرې کړم، يوه ورته وويل چي زه يم بل ورته وويل چي زه يم يا زه يم وهکذا الی الاخير فجاء الرسول وذکر للملک والوزير احوال الفقراء والزهاد، نو وزير پر بادشاه غالب سو په اختلاف کي د دوی دوو تر منځ.

**درويش وايي:** چي فقراء او زهاد زموږ د زماني علی عکس الفقراء المذکورين في جميع الممالک والبلاد فافهم.

وَمَنْ يُّوْقَ شُحَّ نَفْسِهٖ

او څوک چي وساتل سي د بخل او حرص څخه د نفس يعني مخالفت د نفس کوي په هغه شي کي چي پر نفس غالبه وي من حب المال وبغض الانفاق، صاحب قاموس ترجمه د شح په بخل او حرص سره کړې ده، او صحاح والا وايي چي شح مجموع حرص او بخل ته وايي، او البغوي" وايي چي علماؤ فرق کړی دی د شح او بخل، دا روايت يې دليل ګرځولی دی چي يو سړی و عبدالله بن مسعودؓ ته وويل اني اخاف ان اکون هلکت قال وما ذاک (څه سبب دی چي ته پر ځان بېرېږې چي هلاک سوم) قالؓ سمع الله يقول ومن يوق شح نفسه، وانا رجل شحيح لايکاد يخرج شيئ من يدي (يعني د خدای پاک څخه زه اورم ومن شح نفسه، او زه بخيل يم قريب نه ده چي و دي وزي زما د لاسه څخه يو شی چي چا ته يې ورکړم) قال عبداللهؓ چي دا خو شح نه دی چي په دې ايت کي ذکر سوی دی، بلکې شح دا دی ان تأکل مال اخيک (يعني بالاخوة الاسلامي) ظلمًا، ده ورته زياته کړه چي تا چي وويل هغه ته بخل وايي وبئس الشيئ البخل (يعني بخل خو هم بد شی دی وان لم يکن شحًا) وقال عمرؓ ليس الشح ان يمنع الرجل ماله (يعني چا ته يې نه ورکوي) انما الشح ان تطمع الرجل الی ماليس له، وقال سعيد بن جبيرؓ الشح هو اخذ الحرام ومنع الزکوة، وقيل الشح الحرص الشديد الذي چي سړی باعث کوي پر ارتکاب د حرام (لکه غلا، زنی

وغيرهما) وعن جابر بن عبد الله ان رسول اللهﷺ اتق الظلم فان الظلم ظلمات يوم القيامة واتقوا الشح فان الشح اهلک من كان قبلكم حملهم (اى الشح) ان يسفكوا دمائهم واستحلوا محارمهم، رواه مسلم واحمد وروى البغوي والنسائي عن ابي هريرة انه سمع رسول اللهﷺ يقول لايجتمع غبار في سبيل الله و دخان جهنم في جوف عبد ولايجتمع الشح والايمان في قلب عبد ابداً.

فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ ﴿٩﴾

نو دغه كسان دي چي دوى فلاح او خلاصون پيدا كونكي دي له اور څخه د جهنم.

وَالَّذِينَ جَاءُوا مِنْ بَعْدِهِمْ

او هغه چي راغلي دي وروسته تر مهاجرينو او انصارﷺ جميعًا، مراد ځني هغه كسان دي د اصحابو كرامو څخه چي وروسته تر فتح د مكې يې ايمان راوړى وي او دغه رنګه نور مؤمنان چي په ايمان مشرفه سوي وي الى يوم القيامة.

يَقُولُونَ رَبَّنَا اغْفِرْ لَنَا وَلِإِخْوَانِنَا الَّذِينَ سَبَقُونَا بِالْإِيمَانِ

دوى وايي ("يقولون" حال دى له فاعل څخه د جاؤا) اى زموږ ربه موږ ته بخښنه وكړه، او زموږ ورونو ته ("اخواننا" اى في الدين) چي تر موږ د مخه يې سبقت كړى و ايمان ته، ولي چي سابقين الى الايمان حق لري پر وروسته مؤمنانو چي دعاء ورته وكړي، ولي چي وروستني مؤمنان د سابقينو په لارښوونه و ايمان ته يې لار پيدا كړه لكه سابقينو چي ايمان ته لار پيدا كړه بتوسط النبيﷺ.

وَلَا تَجْعَلْ فِي قُلُوبِنَا غِلًّا لِلَّذِينَ آمَنُوا رَبَّنَا إِنَّكَ رَءُوفٌ رَحِيمٌ ﴿١٠﴾

او ته مه ګرځوې زموږ په زړو كي حسد او بغض د هغو خلكو لپاره چا چي ايمان راوړى دى (چي عبارت د مهاجرينو او له انصاروﷺ څخه دي) يا ربنا ته رؤف يې يعني غايت مهربانه (صيغه د مبالغې ده ففيه تنزل من الاعلى الى ما دونه اى رحيم) او بعض مفسرين وايي چي رحيم تاكيد دى د رؤف، والله اعلم.

**تنبيه:** د هر چا په زړه كي غل او حسد وي د يوه سره د صحابه كرامو من المهاجرين والانصار ولم يترحم على جميعهم فهو ليس بداخل في هذه الآية وقد روى عن النبيﷺ بطرق صحيحة الله الله (يعني وبيرېږئ له خداى څخه) في

اصحابي لاتجعلهم غرضًا (نښان يې مه ګرځوئ د غيبت او بد ګويي يعني لکه فرق ضاله چې پر ابوبکرؓ او عمرؓ باندې چې بد وايي) او غاصبان د حق د خلافت د عليؓ يې بولي وايضًا قد صح عن النبي ﷺ اَصْحَابِيْ كَالنُّجُوْمِ بِاَيِّهِمُ اقْتَدَيْتُمْ اهْتَدَيْتُمْ ابن ابی ليلٰی وايي الناس علی ثلثة يعني درې قسمه دي (۱) الفقراء المهاجرينؓ (۲) والذين تبوّا الدار والايمان (۳) والذين جاوًا من بعدهم يقولون اغفرلنا ولاخواننا الذين سبقونا بالايمان الخ، نو ته غاية كوشش كوه چې خارج له دغو منازلو څخه نه سې، لكه فرق ضالة من الشيعة والروافض والخوارج.

## اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ نَافَقُوْا

ته نه ګورې يا محمد (ﷺ) يا هر مخاطب چې په وروستنيو حالاتو علم ولرې (جمله مستأنفه لپاره د بيان ده د حال د منافقانو او د كفارو، والاستفهام للتعجب ای تعجب السامعين لاحوالهم والرؤية علمية، وانما عبر بالرؤية لظهوره مثل المرئي بالعين) و هغو كسانو ته چې نفاق يې وكړی، چې عبد الله بن ابی بن سلول واصحابه دي.

**پوه سه:** چې دا ايت حكايت د هغو خبرو دی چې په مابين كي د منافقانو او د كفارو سره جاري وې من الاقوال الكاذبة والاحوال الفاسدة بعد بيان احوال المؤمنين علی اختلاف طبقاتهم، ابن اسحاق او ابن المنذر وابو نعيم عن ابن عباسؓ وايي چې دا ايت نازل دی په يو جماعت كي د بني عوف چې عبد الله بن ابی بن سلول هم د هغې قبيلې ؤ او وديعة بن مالک بن سويد و داعس چې دوی تيولو سړی واستاوه وبني النضير ته بما سيئاتي في الايات يعني يقولون آه.

## يَقُوْلُوْنَ لِاِخْوَانِهِمُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ

چې وايي خپلو ورڼو ته (يعني په كفر كي او په صداقت كي او په موالات كي) هغو خلكو ته چې كفر يې كړی وي يعني علانية، د اهل كتاب څخه يعني بني النضير او بني قريضة ته يعني رئيس المنافقين و بني النضير ته دوه كسه ور واستول چې د خپلو كورو ونه وزئ زما سره دوه زره كسه راسره دي يد خلون معكم في حصنكم (چې هغه به ستاسي په قلا كي د جنګ لپاره د مسلمانانو به مادّه باش وي)

لَئِنْ أُخْرِجْتُمْ لَنَخْرُجَنَّ مَعَكُمْ وَلَا نُطِيعُ فِيكُمْ أَحَدًا أَبَدًا

یعني من دیارکم بالمدینة که تاسي له کورو څخه مسلمانانو ایستلاست، نو موږ هم درسره فراره کېږو، موږ د چا په خوله نه کوو ستاسي سره د کومک په جنګ کي د مسلمانانو د هیڅ چا او هیڅ کله د محمد ﷺ والمؤمنون متابعت نه کوو.

وَإِنْ قُوتِلْتُمْ لَنَنْصُرَنَّكُمْ وَاللَّهُ يَشْهَدُ إِنَّهُمْ لَكَاذِبُونَ

که تاسي وژل کېد است په لاسو د محمد ﷺ والمؤمنون نو موږ به کومک درسره کوو په جنګ کي د دوی سره، او خدای عزوجل شاهدي اداء کوي ("والله یشهد" حال دی له فاعل څخه د یقولون) په تحقیق دوی ای المنافقین دروغ وایي.

**سوال:** په نحو کي وایي چي ان څلور ځایه مکسور ویل کېږي چي وایي:

ان را درچهار جا مکسور خوان ..... بعد علم وبعد ظن درمیان

چون درآید درخبر اولام نیز ..... دائماً مکسور خوانی ای عزیز

نو دلته کوم سبب موجود دی؟

**ځواب:** په خبر کي چي لکاذبون لام راغلی دی.

**پوه سه:** چي جمله د انهم لکاذبون منصوب محلاً ده په تقدیر د قول والتقدیر والله یشهد ویقول انهم لکاذبون، بلکې تقدیر د قول ضرورت هم نسته ولي یشهد متضمن معنی لره د قول دی.

**فائده:** دا د وروستني ایت بیان د کذب د دوی دی.

لَئِنْ أُخْرِجُوا لَا يَخْرُجُونَ مَعَهُمْ وَلَئِنْ قُوتِلُوا لَا يَنْصُرُونَهُمْ

که دوی وه ایستل سي ای الیهود یعني بني النضیر، منافقین د دوی سره نه وزي، او که دوی یعني بني النضیر وژل کېږي دوی یعني منافقین کومک نه ورسره کوي.

**پوه سه:** چي جمله د "لایخرجون معهم" جواب د قسم ده چي کلمه د لام لپاره د قسم محذوف ده یعني لفظاً او جواب د شرط ده معنًى، وعلی هذا فقس قوله "ولئن قوتلوا آه".

**درویش وایي:** چي اهل تفسیر وایي چي په دې کي معجزه د رسول کریم ﷺ ده

ولې چې په مستقبل کې دغسې پېښه سوه چې بني نضير فراره کړه سوه منافقانو د مدينې نه سوه ورسره فرار، او دغه رنګه منافقانو د مدينې د بني قريضه سره ورته وعده کړې وه مګر بني قريضه ووژل سول د مسلمانانو په لاس منافقانو يعني عبدالله بن ابي بن سلول واصحابه کومک نه ورسره وکړی کما سيئاتي.

وَلَئِنْ نَّصَرُوْهُمْ لَيُوَلُّنَّ الْاَدْبَارَ ثُمَّ لَا يُنْصَرُوْنَ ﴿۱۲﴾

بالفرض والتقدير که منافقانو کومک ورسره کړی وای، هرآئينه شا به يې ګرځولې وای يعني شکست به يې خوړلی وای، بيا وروسته تر شکست د چا د خوا کومک نه ورسره وکړه سي، يعني د کفار اليهود سره.

لَاَنْتُمْ اَشَدُّ رَهْبَةً فِيْ صُدُوْرِهِمْ مِّنَ اللّٰهِ ؕ

ای اشد مرهوبية يعني رهبة مصدر مبنی للمفعول دی، ولې چې مخاطبين خو مؤمنان دي هغه خو مرهوب منهم دي لا راهبين.

ترجمه: تاسې ای مؤمنانو سخت ياست په بېرېدو کې د منافقانو ستاسې څخه په زړو کې د دوی تر بېرې له خدای ﷻ څخه، ولې ستاسې د بېرې له سببه يې اظهار د ايمان وکړی او په زړو کې يې د خدای ﷻ له بېرې ايمان نسته بلکې پر هغه يهوديت پاته دي.

**پوښتنه:** ستاسې څخه د بېرې معنی څه ده چې اشد چې اسم تفضيل دی پکښې استعمال يې کړی، ولې قانون نحوي دا دی چې په مفضل عليه کې به معنی د نفس پيدا وي نحو زيد اعلم من عمرو يعني نفس علم په عمرو کې هم سته لکن زيد په علم کې تر بالا دی او سره د دې په زړو کې د دوی خو هيڅ بېره د خدای ﷻ نه وه لکونهم کافرين في قلوبهم؟

**ځواب:** دوی به اظهار د دې کاوه چې موږ له خدای ﷻ څخه په زړو کې بېرېږو.

ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا يَفْقَهُوْنَ ﴿۱۳﴾

دغه چې بېره د دوی ستاسې څخه اشد ده تر بېرې د خدای ﷻ څخه په سبب د دې ده چې دوی يو قوم دی په هيڅ شي نه پوهېږي (فالمفعول به محذوف) يعني که دوی عقل درلودای نو عظمت د خدای عزوجل به يې پېژندلی وای او دا به هم ورته معلوم وای چې ضار او نافع خدای ﷻ دی، نو به دوی يعني منافقانو داسې نه کولای چې تر خدای ﷻ به له تاسې مؤمنانو څخه ډېر بېرېدلای.

لَا يُقَاتِلُوْنَكُمْ جَمِيْعًا اِلَّا فِيْ قُرًى مُّحَصَّنَةٍ اَوْ مِنْ وَّرَآءِ جُدُرٍ ؕ

دوی يعني منافقان او كافران لكه بني النضير ستاسي سره جنګ نسي كولای په اتفاق سره، ولي خدای يې په زړو كي رعب وراچولی دی كمامر، مګر نه په داسي قريو كي چي محفوظ وي (يعني شاوخوا خندق لري يعني مخامخ جنګ نسي درسره كولای) يا د ديوالونه د دننه له خوا څخه لكه چي بني النضير اول وهلت كي د محاصرې د مؤمنانو داغسي كوله چي د داخله څخه د قلاؤ بې تيراندازي كوله ''جدر'' جمع د جدار ده.

بَاْسُهُمْ بَيْنَهُمْ شَدِيْدٌ ؕ

صبر او شجاعت د وی پر جنګ په خپل منځ كي (يعني مقابلة الكفار بعضهم لبعض) سخت دی، يعني دا بېره د دوی ستاسي مؤمنانو څخه په سبب د جبن (بزدلي) د دوی نه ده يا ضعف د دوی په جنګ كي نه ده بلكې ستاسي په مقابل كي خدای عزوجل رعب په زړو كي د دوی پيدا كړی چي دا معجزه ده د رسول كريم ﷺ، او اظهار د خپلي خدايي كوي.... مقوله:

الشجاع يجبن والعزيز يزل اذا حارب الله ورسوله.

تَحْسَبُهُمْ جَمِيْعًا وَّقُلُوْبُهُمْ شَتّٰى ؕ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا يَعْقِلُوْنَ ۚ

ته ګمان كوې پر دوی باندي يا محمد (ﷺ) چي دوی ټوله متفق دي پر جنګ ستاسي د مسلمانانو سره، او زړونه د دوی پراګنده دي (''شتی'' جمع د شتيت ده يعني پراګنده او مختلف، په سبب د القاء الرعب في قلوبهم، ولي چي په حالت كي د شدة الخوف زړه پر يوه قرار نه پاتېږي، يعني ګاهي د جنګ اراده وكړي نظر و منافع دنيويه ؤ ته او ګاهي د فرار اراده وكړي په سبب د غلبه د خوف او رعب منكم) ''ذالک'' دا تشتت د زړو د دوی په سبب د دې دی چي دوی داسي قوم دی چي عقل او فهم نه لري، او حق او باطل نه سره پېژني، او په دې كي فكر نه وهي چي دا رعب چي پر موږ غالبه سوی دی په سبب د نفاق او كفر زموږ دی، نو به يې ايمان راوړی وای او په صف كي د مسلمانانو به درېدلي وای، او رعب او خوف به يې له زړو څخه وتلی وای.

كَمَثَلِ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ قَرِيْبًا

خبر د مبتداء محذوف دی ای مثل وحال هؤلاء بني النضير كمثل و حال د هغو كسانو چي تر دوی د مخه وه نژدې و دوی ته يعني بني النضير، مجاهدؒ وايي چي مراد د من قبلهم څخه كفار د مكې دي په ورځ د بدر چي اوويا كسه ځای پر ځای ووژل سول چي په دې وژل سوو كسانو كي فرعون هذه الامة ابوجهل هم داخل ؤ او اوويا كسان يې په حصارت ونيول سول، او سره ددې چي د عليه الصلوة والسلام ملګري (۳۱۳) وه او مشركين د مكې (۹۵۰) كسه وه، او نور په تېښته ولاړه، او ابن عباسؓ وايي چي مراد څني بني قينقاع دي من اليهود چي له قوم څخه د عبدالله بن سلامؓ وه او حلفاء د عبدالله بن ابی بن سلول وه لعنة الله عليه واصحابه او د بن الصامت وغيرهما وه وكانوا شجع اليهود او كسب يې زرګري وه.

ذَاقُوْا وَبَالَ اَمْرِهِمْ

چي دوی وڅكی يعني دوی ته ورسېدی عذاب د حال د دوی يعني عاقبتهم من عداوة رسول اللهﷺ ودين الله، تاريخ اسلامي وايي چي عليه الصلوة والسلام چي مهاجر و مدينې ته راغلی قرار داد يعني صلح يې د يهودانو ټولو سره وكړه او خط يې نوشته كړی او هر قوم يې د خپلو حلفاؤ سره پرېښول او د عليه الصلوة والسلام او د يهودانو تر مابين امان اعلان سو او عليه الصلوة والسلام پر دوی بعض شرطونه كېښېښول، يو شرط يې داؤ چي كه زموږ د نورو كافرانو سره جنګ و تاسي به د هغو سره كومک نه كوئ، نو چي ورځ د بدر راغله، نو اول چي نقض عهد يې وكړی يهودانو د بني قينقاع وكړی او په ښكاره بغض او حسد د للنبيﷺ، نو په دې دوران كي چي دوی پر نقض العهد داده وه يوه ښځه له عربو څخه چي دې شيدې د خپلو مېږو او بزو راوړې او د بني قينقاع په بازار كي يې خرڅولې نو شيدې چي يې خرڅي كړې يو زرګر ته لپاره د زېور رانيولو د بني قينقاع ورغله هغه زرګر دې ته وويل چي ته مخ لڅ كړه دې مخ نه لڅاوه، نو زرګر ددې پر پوړني د شا د خوا چي دا يې په ځان نه كړه پوه په څوزانو پوري بند كړی دا چي ولاړه سوه پوړنی څني شوه سو او مخ يې ښكاره سو او عورت يې ښكاره سو

نو دوی پر خندل نو ښځي لوپه بغاره وکړه یو سړی د مسلمانانو ور وغورځېدی زرگر یې قتل کړی وکان یهودیًا، نو یهودان ور ولاړ سوه هغه مسلمان یې قتل کړی ونبذوا العهد، نو ناره وکړه قریبانو د مسلم مقتول پر مسلمانانو چې یهودان وژنئ، نو د مسلمانانو او د بني قنقاع تر منځ د قتل و قتال لمبې بلې سوې، وانزل الله هذه الآیة واما تخافن من قوم خیانة فانبذ الیهم علی سواء، فسار الیهم رسول اللهﷺ د دې مذکوره آیت په هدایت بیرغ د اسلام یې حمزة بن عبد المطلب ته ورکړی او پر مدینه منوره یې نائب ابو لبابهؓ پرېښو، بني قنقاع په خپلو قلاؤ ننوتل نو علیه الصلوة والسلام تر دېري سختي محاصرې لاندې دوی راوستل پنځلس (۱۵) ورځې او شپې، نو د دوی په زړو کې خدای عزوجل ډېر سخت رعب پیدا کړی، نو دوی وویل چې زموږ ټول اموال د مسلمانانو دې یوازې دې موږ ته زموږ ښځې او عیال په لاس راکړل سي، نو علیه الصلوة والسلام دا خبره ومنل او قتل یې نه کړه او امر یې کړه چې له مدینې څخه دې ووزي، درې ورځې وروسته دوی ووتل او اذرعات ته ولاړه، تاریخ دا واقعه د شنبې په ورځ د شوال په میاشت کې سنه (۲ هـ) چې د علیه الصلوة والسلام شل (۲۰) میاشتې د هجرت تېرې سوې وې، او د دوی په کورو کې ډېره سلاح او آلات د زرگری پیدا سوه او علیه الصلوة والسلام خمس څني واخستی او څلور خمس یې پر اصحابو ووېشل، او په سورة المائدة کې هم دا قصه ذکر کړل سوې ده.

وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ۝١٥

دوی لره دی عذاب درد ورکونکی، یعني دوږخ.

كَمَثَلِ الشَّيْطَٰنِ إِذْ قَالَ لِلْإِنسَٰنِ اكْفُرْ فَلَمَّا كَفَرَ قَالَ إِنِّي بَرِيٓءٌ مِّنكَ

دوی د شیطان په مثال دي (یعني منافقین عبد الله بن ابی بن سلول واشباهه في اغترار الیهود چې دوی به باعثه کول یهودان پر جنگ د علیه الصلوة والسلام او د مؤمنانو "کمثل الشیطان" خبر د مبتداء محذوفي دی) کله چې شیطان وویل انسان ته چې کافر سه، چې هغه به کافر سو شیطان به ورته وویل زه بېزاره یم له تا څخه.

**درویش وایي:** چې پر تقدیر مذکور له شیطان څخه مراد عبد الله بن ابی بن سلول

دی او له انسان څخه مراد جنس دی چې يهودان د بني النضير وه، او د كفر څخه مراد جنګ د عليه الصلوة والسلام سره دی چې بني النضير يې په جنګ اخته كړه عبد الله بن ابی واصحابه څني بېزاره سوه يعني بني النضير يې خالي لاس پرېښوول، لكن داسي شان نزول د وروسته ايت سره سمون نه خوري يعني اني اخاف رب العالمين ولي ابن ابی خو دا خبره نه وه كړې و بني النضير ته، والجمهور على ما قال العلامة البغدادي؆ چې مراد له انسان څخه جنس انسان دی او جنس شيطان دی، نو د شيطان بېزاري په ورځ د قيامت ده وهو الاوفق بظاهر قوله تعالى اني اخاف رب العالمين، ولي دا وينا شيطان كوي په ورځ د قيامت او بعض مفسرين وايي چې مراد له شيطان څخه ابليس دی چې په صورت د انسان يې و ابو جهل عليهما اللعنة ته وويل او لاس يې په لاس كي د ابو جهل وركړی يعني په غزاء كي د بدر او ابليس داسي ورته وويل لا غالب لكم اليوم من الناس واني جار لكم (زه ستاسي سره ملګری يم) چې جنګ جوړ سو او ملائكي نازلي سوې او شيطان وليدلې، نو لاس يې د ابو جهل د لاسه څخه كش كړی او داسي يې ورته وويل زه بېزاره يم له تاسي څخه اني ارٰی ما لا ترون (زه وينم هغه څه چې تاسي يې نه وينئ يعني الملائكة) اني اخاف رب العالمين، يعني چې ملكي په امر د خدای پر ما حمله ونه كړي.

**سوال**: مظهري؆ وايي چې بېره د خدای؆ په شيطان كي خو نسته، نو څرنګه شيطان ورته وويل اني اخاف رب العالمين؟

**ځواب**: شيطان چې ملكي وليدلې لكه د مخه چې تېره سوه اني ارٰی ما لا ترون طبعًا وبېرېدی له قتل څخه په دنيا كي فافهم.

**حكاية**: درويش وايي: چې البغوي؆ وايي روٰی عطاء وغيره عن ابن عباس؄ چې يو راهب ؤ (راهب د نصارٰی غټ صوفي ته وايي) چې نوم يې برصيصا ؤ په زمانه كي د فترة (هغه زمانه چې د عيسٰی ؈ او د رسول الله ﷺ په مياڼځ كي وه) چې دا صوفي عبادت كاوه په صومعه كي (يعني خلوت خانه) اوويا كاله لم يعص الله طرف عين (يو چشم زدن) پر ابليس دا اغواء سخته سوه هيڅ حيله يې نه سوای ورته كولای، نو يوه ورځ يې مردة الشياطين يعني سخت دريزه د خپل اولاد سره را جمع كړه نو يې ورته وويل چې په تاسي كي داسي څوك نسته چې د برصيصا كار وروكړي، د شيطان په

اولاد کي يو په نامه د الابيض ؤ چي هغه به د اولياء الله الکاملين او د انبياء د اغوا لپاره ؤ، دا هغه شيطان ؤ چي عليه الصلوة و السلام ته په صورت کي د جبرئيل ؑ راغلی ؤ چي وسوسه ورواچوي په دې وخت کي جبرئيل ؑ راغلی په وزر يې ورواهه د هند په پای کي يې وغورځاوه، نو دې الابيض د برصيصا د اغوا ضمانت پر غاړه واخستی نو ځان يې په صورت د رهبانو مابين د سرو خرايه و صومعه ته د برصيصا راغلی ورناره يې کړه يا برصيصا، هغه يې نه ورته کاوه، د برصيصا دا عادت ؤ چي لس ورځي به يې متصل لمونځ کاوه او په لس ورځي يې روژه ماتول، نو الابيض چي دا وليده چي برصيصا خو جواب نه درکوي نو د برصيصا تر صومعې لاندي يې عبادت شروع کړی برصيصا چي به هر وخت وکتل تر صومعې لاندي به يې الابيض پر لمانځه وليدی په ښه هيئت کي من هيئة الرهبان، نو برصيصا چي دده حال وليدی نو پښېمانه سو چي تا ولي دده ته اجازه نه کړه ور اخير برصيصا ورناره کړه چي تا ماته د مخه ناره وکړه زه په عبادت مشغول وم چي جواب مي در نه کړی، نو اوس زه درته وايم چي ستا څه کار ؤ، الابيض ورته وويل چي زما دا کار ؤ چي ستا سره په صومعه کي عبادت وکړم او ستا د عبادت آداب به زده کړم او ستا له علم څخه به استفاده وکړم، او دواړه به پر عبادت د خدای سره جمع يو ته به ماته د عاء کوې زه به تاته، برصيصا ورته وويل: اني لفي شغل عنک فان کنت مؤمنًا فان الله سيجعل لک فيما ادعوا للمؤمنين نصيبًا ان استجاب لي (ترجمه برصيصا ورته وويل چي زه مشغول په عبادت سره يم د تا څخه يعني ستا سره ملاقات نه کوم که ته مؤمن يې نو په هغه دعاء کي چي زه يې مؤمنانو ته کوم تاته به هم خدای ؑ برخه پکښې درکړي که زما دعاء قبوله سوه) بيا برصيصا څلوېښت ورځي پر خپل لمانځه ودرېدی و ترک الابيض، نو الابيض دده تر صومعه لاندي پر لمانځه ودرېدی نو برصيصا څلوېښت ورځي نه ورته کتل څلوېښت ورځي وروسته چي يې ورته وکتل الابيض پر لمانځه ولاړ ؤ برصيصا چي دده دا ډېر اجتهاد په عبادت کي وليدی بيا يې ورته وويل چي ستا څه کار دی الابيض ورپورته سو يو کال يې عبادت ورسره وکړی، لکن الابيض په څلوېښت ورځي کي يو وار روژه ماتول او پر لمانځه به تر څلوېښت ورځي بالاړ ؤ او ګاهي به يې اتيا ورځو ته ورساوه، برصيصا چي د الابيض عبادت وليدی خپل عبادت ډېر کم ورته معلوم سو، کال چي تېر سو

الابیض وده ته وویل چې ماته رخصت راکړه زه درڅخه ځم زما بل ملګری چې هغه اشد اجتهاداً تر هغه چې تا زما څخه ولیدی الابیض ورته وویل چې موږ ته ستا لوی اجتهاد خلګو را رسولی ؤ لکن ته هغو نه نه یې، نو برصیصا ته د الابیض جلا والی ډېر سخت پرېوتی په سبب د هغه چې برصیصا دده شدة اجتهاد په عبادت کې ولیدی لکن د الابیض ومفارقت ته سر ګرم ؤ مګر دا یې برصیصا ته وویل چې زما څو دعاګانې زده دي چې هغه تا له خیر دي تر دې عبادت ستا چې په هغو دعاؤ کې خدای شفا ورکوي مریضانو ته او چې د جنیاتو مرض یې وي یعنې پېریانان یې نسي هغه هم په جوړېږي، برصیصا ورته وویل چې دا منصب خو زما خوښ نه دی ولې زه په خپل ځان اخته یم یعني په عبادت د خدای که خلګ په دې خبر سي ماله خپل عبادت څخه باسي، خو الابیض په ده بخت ؤ چې زده خو یې کړه بیا یې پر چا مه کوه، خو خیر هغه دعا هر څه چې وه الابیض و برصیصا ته وروښوول، نو الابیض و ابلیس ته ورغلی فقال والله اهلکت الرجل، وروسته الابیض یو سړي ته ورغلی خپه یې کړی و قریبانو ته د هغه سړي ورغلی په صورت د یو طبیب نو قریبانو ته د هغه یې وویل چې دا ستاسې د قریب علاج به زه درو ښیم هغو ورته وویل نعم، ده ورته وویل چې پر دې سړي یو قوي جن مسلط دی ابیض ورته وویل چې زما خو په طاقت نه ده پوره مقابله د جن سره د قریب ستاسي لکن سړی به دروښیم چې برصیصا دی چې د هغه اسم اعظم زده دی چې په هغه سره څوک خواست وکړي و خدای ته خواست یې قبلېږي، نو هغو په دا سړی برصیصا ته وروستی هغه چې په هغو کلماتو چې الابیض ورښوولي وې دم پر و کړی هغه سړی به جوړ سو، خو د الابیض دا کار ؤ دا سړی خپه کړه هغه سړی خپه کړه او بیرته به یې حواله پر برصیصا ورکوله او برصیصا چې به دم پر و کړی هغه سړی به جوړ سو واشتهر ذالک في الناس ثم وثم، اخیر الامر الابیض ورغلی یوې ښائسته پېغلې ته من بنات الملوک بني اسرائیل چې هغې پېغلې درې وروڼه درلوده چې پلار یې باداشاه ؤ د بني اسرائیلو چې هغه مړ سوی ؤ او پر ځای یې خپل ورور خلیفه کړی ؤ چې د پېغلې او د وروڼه یې اکا ؤ، نو الابیض ورغلی دا جاریه یې ډېره سخته خپه کړه او بیا په صورت د یو طبیب ورغلی او وروڼه د نجلۍ یې وویل چې نجلۍ خو پېریان لري زما خو څه له طاقته نه ده پوره ولې چې د دې جن پر ما غښتلی دی ورېولئ برصیصا ته حتی

چي هغه دم پرو کړي جوړه به يې کور ته راولې چې هورې يې پېراتان وتسي، د نجلۍ ورونو ورته وويل چي كيف ينجينا الى هذا وهو اعظم شانا من هذا (يعني چي برصيصا به زمونږ خبره قبوله کړي هغه د لوی شان زاهد سړی دی) الابيض ورته وويل چي دده تر صومعه لاندي نژدې يوه صومعه خپل د ځان لپاره جوړه کړئ چي برصيصا يې وبني نو که برصيصا قبوله کړه او دم يې وکړی خو فبها ونعمت، او که يې نه کړه قبوله ما ښام يا د ورځي تاسي څنې رازئ و برصيصا ته و وايا ست هي امانة عندک فاحتسب بها د جنلۍ. ورونو چي څو زمانه وروسته برصيصا ته مراجعه وکړه هغه انکار وکړی، نو دوی هم صومعې ته د برصيصا نژدې صومعه د خپل خور لپاره جوړه کړه چي برصيصا ليدله، نو دی چي له عبادت څخه فارغ سو پيغله او ددې جمال يې وليدل، نو دده په زړه کي لويه خبره وروګرځېدل يعني که دا وار پېراتانو ونيول دا خو په ځان نه پوهېږي ورځې به زنى به ورسره کوې، نو ابيض ورغلی پيغله يې خپه کړه برصيصا نژدې ورغلی دم يې پر وکړی نجلۍ ښه سوه، اوس نو برصيصا د نژدې څخه د نجلۍ ښائست وليدی او پر عاشق سو، خير دی بيرته خپل صومعې ته راغلی او پر لمانځه ودرېدی، بيا شيطان ورته راغلی نجلۍ يې ښه خپه کړه حتی چي پر توګ يې څني وکښې نو شيطان د برصيصا په زړه کي دا ورواچول چي ورسه زنې ورسره وکړه بيا به توبه وكاږې "والله تعالى غفار الذنوب والخطايا" خير شيطان وار په وار وسوسه ورزياتوله حتى چي وطي يې په ماره نس ورسره وكړې، نو د برصيصا دا عادت وګرځېدی چي دا ښځه به پېراتانو ونيول ده به وطي ورسره کولې حتى چي حمل يې واخستی او حمل يې برصيصا ته ښکاره سو، بيا شيطان وسوسه ورواچول ويحک يا برصيصا ځان دي رسوا کړې، که د نجلۍ ورونه خبر سي تا به په قتل ورسوي، نو ښه داده چي مړه يې کړه بيا به توبه وكاږې او که يې ورڼه راغله ورته و به وايم ذهب بها شيطانها زما په قدت نه وه ورسره پوره، حتى بل وار چي پېراتانو ونيول قتل يې کړه او په يو جانب کي د غره يې دفن کړه ده چي د شپې ښځول شيطان راغلی ددې د پرتاګه يوه پايڅه يې د قبر دباندي را ويستل يعني پايڅه تر خاورو دباندي وه، برصيصا بيرته خپل صومعه ته ولاړی پر لمانځه ودرېدی، نو هغوی چي د نجلۍ ورونه راغله د خور د پوښتنې لپاره، فقالوا يا برصيصا ما فعلت باختنا؟ ده ورته وويل چي

نجلۍ ته پېرۍ راغلی راځخه بوېږي تله زما د طاقته نه وه ورسره پوره، نو د هغو زړو ته ولوېدل ولاړه ټوله په غم اخته وه ما ښام چي بېده سوه هغه مشر يې خوب ولېدی يعني شيطان په خوب کي ورته راغلی چي ستا په خور خو برصيصا داسي او داسي کړي دي قصه د زنی او حمل او قتل او د دفن يې ټوله ورته وکړه وروړ چي يې راوېښ سو د ځان سره يې وويل چي دا شيطاني خوب دی برصيصا و ګوره دا کارونه و ګوره چي دی به يې کوي نو دريم شپې پر له پسي يې دا خوب ولېدی هر وار به هغه پر حلم حمل کاوه چي شيطاني خوب دی، او بيا يې هغه ميانه وروړ ته په خوب کي شيطان ورغلی او د خور او د برصيصا ټوله احوال يې ورته بيان کړی دريم شپې هغه باک په ونه کړی يعني پر حلم يعني شيطاني خوب يې حمل کړی بيا شيطان و هغه کشر وروړ ته ورغلی دريم شپې او د خوب حال يې ټول ورته بيان کړی، دې کشر وروړ ورته وويل چي ما خو هم ورته خوب ليدلی دی، سهار بيا ور روان سوه برصيصا ته يې وويل چي ما فعلت باختنا؟ تا زموږ په خور څه وکړه، برصيصا په غضب ورته وويل چي ما هغه بله ورځ چي تاسي راغلي واست نه مي درته وويل چي هغه خپل شيطان بو تله ګويا تاسي پر ما تهمت لګوئ، فقالوا والله ما نتهمک، قسم په خدای موږ پر تا تهمت نه وايو او ځني وشرمېدل ولاړه، نو شيطان په رنګ د سړي ورته راغلی ورته ويې ويل ويحكم چي ستاسي خور برصيصا وروسته تر زنی او حمل قتل کړې ده او بيا يې ښخه کړې ده في موضوع كذا او يوه پايڅه د دې تر خاورو د باندي ده، وروڼه يې ور راهي سول، فرؤا اختهم كما رؤا في النوم يا ابيض پر رنګ د سړي ورته ويلي وه، نو ټوله ځوانان او درې وروڼه او نور د پر خلګ ورسره وه او کولنګان او تبران ورسره وه د برصيصا صومعه يې ونړول دی يې راکښته کړی لاسونه يې تر شا وروتړل او ملک ته يې ور وستوی، وروسته تر ضرب و کوب برصيصا پر خپل ټولو افعالو اقرار وکړی نو ملک امر وکړی چي دی دې په دار سي او قتل دې سي، نو چي دار ته يې پورته کاوه ابيض ځان ورښکاره کړی وقال يا برصيصا ما پېژنې؟ ده ورته وويل يا نه دې پېژنم، ابيض ورته وويل چي هغه اندېوال يم چي تا ته مي دعاوي دروښوولې، ابيض ورته وويل چي ستا خو دا ګمان ؤ چي زه اعبد د بني اسرائيلو يم ته د خدای څخه نه شرمېدلې چي تا دا کارونه وکړه. نو شيطان د پر پېغور ونه ور کړه برصيصا ورته وويل چي اوس په يوه



Scanned by CamScanner

خوی زما اطاعت وکړه زه به دي له قتل څخه خلاص کړم زه به داسي وکړم چي په خپلو دعاؤ سره به د حاضرينو خلکو پر سترګو پرده واچوم تا به څني پورته کړم، برصيصا ورته وويل چي هغه خصلت څه شی دی چي ته ما په خلاصوې؟ ابيض ورته وويل چي ما ته سجده وکړه، برصيصا ورته وويل چي کوم يې، نو فسجد له. فقال الابيض هذا الذي اردت منک صار عاقبة امرک الی ان کفرت بربک انا بریئ منک.

**درويش وايي:** چي روح المعاني دا قيصه د برصيصا مختصره راوړې ده په داسي عبارت سره اخرج احمد في الزهد، والبخاري في تاريخه، والبيهقي في شعب الايمان والحاكم وصححه وغيرهم عن علي ﷺ ان رجلاً كان يتعبد في صومعته وان امرئة كان لها ثلثة اخوة فعرض لها شيئ (ای اخذتها الجبن كمامر) فاتوا بها (ورونو و برصيصا ته راوستله د دم دعاء لپاره) نو د برصيصا په زړه کي شيطان ورواچول زنی يې ورسره وکړه او ښځي حمل واخستی بيا شيطان په زړه کي ورواچول چي رسوا کېږې قتل يې کړه، ولي که يې ورونه په دې خبر سوه ته رسوا کېږې نو يې مړه کړه او دفن يې کړه کمامر، نو ورونه يې راغله د خور په طلب پسي فبيناهم يمشون به (يعني ورونو د ښځي دی راهي کړی ؤ چي حکومت ته يې په لاس ورکړی) نو شيطان ورته راغلی چي ووايه چي ما دا کار يعني زنی وکړه بيا يې قتل وتا ته ښائسته کړی ؤ بيا شيطان ورته وويل چي ما ته سجده وکړه زه دي خلاصوم برصيصا هم سجده ورته وکړه، وقال انا بریئ منک، روح المعاني وايي چي ددې قصې بيان تر دې بيان يعني چي ما وکړی اکثر تفصيلاً علماؤ کړی دی.

**درويش وايي:** چي اکثر تفصيلاً هغه ؤ چي د مخه تاسي واورېدی وهي من القصص المشهورة، فقير وايي چي قصه د برصيصا او د الابيض ټوله روح البيان په فارسي ژباړه مفصله راوړې ده په اخير کي يې داسي بيتونه ويلي دي:

خيالات نادان خلوت نشين ..... بهم بر کند عاقبت کفر و دين
پی نيک مردان ببايد شتافت ..... که هر که اين سعادت طلب کرد ويافت
وليکن تو دنبال ديوی خسی ..... ندانم که در صالحان کی رسی
اگر دست بايد کز وبر خوری ..... نبايد که فرمان دشمن بری

او دا قصه حسين کاشفي ؒ په تفسير حسيني کي چي فارسي معتبر کتاب دی راوړې ده.

**درويش وايي:** چي ابن عطيةوايي چي دا قصه ضعيفه ده بلكې درواغ ده، زه عبيد الله حيران يم چي ابن عطيه تر بغوي او روح المعاني او روح البيان او مظهري او تفسير حسيني لوړ ځان بولي او كه څرنګه. والله اعلم بالصواب في كل باب.

إِنِّيٓ أَخَافُ ٱللَّهَ رَبَّ ٱلۡعَٰلَمِينَ ﴿١٦﴾

زه بېرېږم له رب څخه د ټولو جهانو

فَكَانَ عَٰقِبَتَهُمَآ أَنَّهُمَا فِي ٱلنَّارِ خَٰلِدَيۡنِ فِيهَاۚ وَذَٰلِكَ جَزَٰٓؤُاْ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴿١٧﴾

نو سو عاقبت د دواړو (اى الانسان والشيطان) چي دواړه به په اور كي وي يعني جهنم، او همېشه په اور كي او دغه جزاء د ظالمانو اى الكافرين.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱتَّقُواْ ٱللَّهَ

اى هغه كسانو چي ايمان مو راوړى دى اى ايمانًا خالصًا من النفاق لكه ايمان د عبد الله ابن ابى بن سلول واصحابه "اتقوا الله" د خداى څخه وبېرېږئ يعني په هر كار كي چي تاسي يې كوئ يا يې پرېږدئ، او ځان وساتئ له عصيان څخه په طاعت سره او ځان وساتئ له كفران څخه د نعمت د خداى په شكر سره او له نسيان څخه د خداى په ذكر سره.

وَلۡتَنظُرۡ نَفۡسٞ مَّا قَدَّمَتۡ لِغَدٖۖ

او هر نفس ته كتل په كار دي چي څه عمل يې كړى دى د سبا ورځي لپاره، مراد له سبا څخه ورځ د قيامت ده.

**پوښتنه:** چي ورځ د قيامت يې سبا ورځ وبلل او سره د دې چي سبا ورځ په عرف كي هغه ورځي ته وايي چي شپه يې تر مابين تېره سي؟

**ځواب:** مبالغةً في غاية قربه ولهذا قيل ما اقرب ما هو آت وما ابعد ما هو فات ومعنى چي هر سړى دي په عملو كي فكر وكړي كه عمل صالح ؤ چي ده ته نجات وركړي له اور څخه پر هغه عمل دى دوام وكړي او كه يې عمل بد ؤ چي سبب د هلاک په ورځ كي د قيامت له هغه عمل څخه دي توبه وكاږي او د خداى څخه دي طلب د بخښني يعني استغفر الله واتوب اليه، په حديث شريف كي راغلي دي الدنيا يوم ولنا فيه صوم اى عن المحارم والمعاصي.

**پوه سه:** چي بعض مفسرين وايي چي جمله "واتقوا الله" تاكيد ده د اول اتقوا الله لپاره، او يا اول اتقوا الله لپاره د اداء د واجباتو دى، او دوهم اتقوا الله لپاره د ترك د محرماتو دى.

وَاتَّقُوا اللَّهَ ۚ إِنَّ اللَّهَ خَبِيرٌ بِمَا تَعْمَلُونَ ﴿١٨﴾

په تحقيق خداى خبر دى په عمل ستاسي، كه كلمة د ما مصدريه وي، او كه كلمه د ما موصوله وي نو عائد و ما ته محذوف دى اى بما تعملونه، په هر صورت دا ايت لكه وعيد پر معاصيو.

**درويش وايي:** چي ولنعم ما قال الشاعر في باب التقوى:

بقدر الكد تكتسب المعالي ...... ومن طلب العلى سهر الليالى
تروم العز ثم تنام ليلاً ...... يغوص البحر من طلب اللآلى

وَلَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ نَسُوا اللَّهَ فَأَنسَاهُمْ أَنفُسَهُمْ ۚ

تاسي مه گرځئ ايها المؤمنون لكه هغه كسان چي هېر كړى يې ؤ خداى (بحذف المضاف اى حقوقه، كما ورد وما قدروا الله حق قدره، بعض مفسرين وايي چي د موصول څخه منافقان او يهودان مراد دي بقرينة المقام، نو موصول لپاره د عهد دى، او بعض وايي چي له موصول څخه مراد جنس كافران دي، ولي چي دوى ټول به نسوا الله كي سره شريكان دي) "فأنساهم انفسهم" الفاء للسببية يعني په سبب د نسيان د دوى حقوق الله خداى له دوى څخه هېره كړه حظوظ انفسهم (بحذف المضاف) حتى لم يقدموا لها (خپلو ځانو) خيراً.

أُولَٰئِكَ هُمُ الْفَاسِقُونَ ﴿١٩﴾

هم دغه كسان دي كامل فاسقان.

لَا يَسْتَوِي أَصْحَابُ النَّارِ وَأَصْحَابُ الْجَنَّةِ ۚ

مراد له اصحاب النار څخه هغه كسان دي چي خداى عزوجل يې هېر كړى ؤ او خپل ځانونه يې سپک استعمال كړي وه فاستحقوا للنار المؤبدة (واصحاب الجنة) چي له خدايه بېرېدل او ځانونه يې په ايمان او اعمال صالحه سره ښائسته كړي وه فاستحقوا الجنة المؤبدة.

**سوال:** اصحاب النار يې ولې مقدم راوړه پر اصحاب الجنة؟

**ځواب:** لکثرة اصحاب النار في کل امة، او يا له دې سببه چې تنبيه پر دې وکړي چې سبب د عدم استواء اصحاب النار دې لا مقابليهم اى اصحاب الجنة.

أَصْحٰبُ الْجَنَّةِ هُمُ الْفَآئِزُوْنَ ﴿۲۰﴾

اصحاب د جنت دوى دي کامياب په نعيم مقيم سره چې په جنتو کې ابد الآباد موجود دي.

لَوْ أَنْزَلْنَا هٰذَا الْقُرْاٰنَ عَلٰى جَبَلٍ لَّرَاَيْتَهٗ خَاشِعًا مُّتَصَدِّعًا مِّنْ خَشْيَةِ اللّٰهِ ۭ

که مونږ نازل کړى واى دغه قرآن (اى العظيم الشان) عليکم ايها الناس پر غره باندې سره د کمال د صورت د غره په قوت کې.

**پوهه:** چې دا يو تمثيل د عظمت د قرآن عزيز دى يعني که په غره کې دا تميز موجود واى د بيرې د خداى مع صلابته چې زه به حق د خداى نه کړم پر ځاى په تعظيم کې د قرآن ټوټه ټوټه به سوي واى، او کافران پوهيږي د قرآن په معنى و مع ذالک يعرض عنه کانهم لم يسمعوا، نو د کفارو زړونه سخت دي تر غره.

**درويش وايي:** چې بعض مفسرين دا ايت پر ظاهر حمل کوي، دوى وايي چې غرونه که څه هم جمادات دي عديم الشعور دي ظاهرًا لکن نسبت و خالق ته د دوى ذات شعور دى او ذات خشية دى، کريمه: وان منها (اى الاحجار) لما يهبط من خشية الله، او رسول اللهﷺ ويلي دي چې صحيح حديث دى چې يو غر و بل غره ته ور ناري کړي هل مر بک احد يذکر الله فان قال نعم استبشر الى اخير الحديث.

وَتِلْكَ الْاَمْثَالُ نَضْرِبُهَا لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُوْنَ ﴿۲۱﴾

او دا مثالونه دي (اى الآيات القرآنية) نضربها اى نبينها خلګو ته مع فهمهم بمعانيها د دې لپاره چې دوى فکر پکښې وکړي او ايمان پر راوړي او عمل په آياتو د قرآن وکړي، په دې آيت کې تنبيه پر دې ده چې زړونه د کافرانو اشد قسوة دي من الاحجار، وفي الحديث الصحيح قال رسول اللهﷺ اعطوا اعينكم حظها من العبادة (ورکړئ و سترګو ته برخه د دوى په عبادت کې) قالوا ما حظها من العبادة يا رسول الله؟ قال انظر في القرآن مع التفکر في معانيه والاعتبار بقصصه وامثاله يعنى العبرة منها.

**مسئله:** فقهاء وايي چي د يو سړي چي مثلاً يو سورت د قرآن ياد وي، نو چي به ياد يې ووايي افضله ده او که په قرآن مجيد کي يې وظيفه وکړي؟ نو دوی وايي چي په مصحف شريف کي افضله ده؛ ولي مصحف شريف چي په لاس کي يې وي د لاس عبادت دی حتی که سړی داسي وي چي د قرآن مبارک توري نسي ويلای او را اخلي يې ورته ګوري او ګوتي پر تورو تېروي خدای عزوجل ثواب د تلاوت ورکوي.

هُوَ اللّٰهُ الَّذِىْ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۚ عٰلِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ ۚ هُوَ الرَّحْمٰنُ الرَّحِيْمُ ﴿۲۲﴾

خدای عزوجل هغه ذات دی چي نسته معبود بالحق بېله ده چي عالم دی پر غيب يعني د خلګو څخه او حاضرو خلګو ته، ما معبود بالحق ووايه له دې سببه چي معبود بالباطل خو نهايت ډېر دي کاصنام المشرکين.

**فائده:** لفظ د الله موضوع دی لپاره د ذات د خدای عزوجل چي موصوف دی په صفاتو د جمال او جلال وهو الاسم الاعظم عند المحققين او په قرآن کريم کي يا په اسم ظاهر يا په ضمير سره (۲۳۶۰) واره ذکر سوی دی فمن دوام على ذکره بالعدد المذکور رئ من عجائب التاثيرات فافهم فانه سر خفي لکن يجب الدوام عليه في کل يوم او ليلة فتدبر.

"هُوَ الرَّحْمٰنُ الرَّحِيْمُ" خدای رحمت کونکی دی په دنيا کي پر مؤمن او کافر باعطاء الرزق والمال والاولاد وغير ذالک، او رحيم دی په آخرت کي يوازي پر مؤمنانو بالجنة ونعيمها وهذا معنى قولهم يا رحمن الدنيا ورحيم الآخرة ولهذا قال السعدي الشيرازي قدس سره:

اديم زمين سفره عام اوست .... بدين خوان يغما چه دشمن چه دوست
ای کريمی که از خزانه غيب .... دشمنان را وظيفه خور داری
دوستان را کجا کنی محروم .... تو که با دشمنان نظر داری

**پوه سه:** چي روح المعاني داسي ترجمه د مجموع رحمٰن رحيم کړي ده برحمة تليق بذاته سبحانه وتعالى، وروسته يې ويلي دي چي تاويلات که څه هم علماء اجلاء من الماتريدية والاشاعرة کړي دي لاتحتاج اليها کما حقق في التميز وغيره.

هُوَ اللّٰهُ الَّذِيْ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ

**پوښتنه:** دا عبارت خو د مخه عنقريب تېر سو، نو د تکرار سبب يې څه دی؟

**ځواب:** روح المعاني وايي کرره لابراز کمال الاعتناء بامر التوحيد انتهى.

**درويش وايي:** چې بېله توحيد ظاهري او باطني هيڅ عمل د خير په کار نه دی. يعني که توحيد ظاهري نه وي لکه اعمال د مشرک چې کار ونه د خير کوي مثلاً و فقيراو مسکين ته ډوډۍ يا نوره مرسته ورسره کوي په آخرت په ښه نه ورځي، لکه يو سړی چې په کامل خشوع او خضوع او تعديل الارکان سره لمونځ وکړي لکن او دس يې نه وي په کار نه دی.

**درويش وايي:** چې قيد د باطني ما ووايه عمل د خير د مرائي يعني ريا کاره مي په خارج کړی.

**حکايت:** يو ريا کاره شيخ يا منافق وُ چې مريدان يې هم درلوده، يو ډېر مالدار سړی په سبب دده د ظاهري کار ليدلو څخه د هغه شيخ مريد سوی وُ، نو رفته رفته رفت او آمد شروع سو، يوه ورځ مالدار مريد ورته وويل چې ننه شپه زما مېلمه يې سره د صاحبزاده يعني زوی، شيخ دعوت قبول کړی او سرمايه داره مريد ډېر فوق العادة خواړه په کور کي پر خپل کور والا باندي زېرمه کړي وه چې ننه شپه پير صاحب زمونږ مېلمه دی بايد ښه خواړه تيار کړئ، خير ماښام چې پير صاحب او زوی راغله او سترخوان هوار سو رقم رقم خواړه پر کنبېښول سوه، پير صاحب يو څو گولې د يو قسم خوړو څخه وخوړلې او داغه رنگه د بل قسم خوړو څخه يعني په محدود ډول يې وخوړلې، نو پير صاحب ترشا سو ډوډۍ يې بس کړه، سرمايه دار مريد ورته وويل چې صاحب ډوډۍ دي ولي بس کړه؟ پير صاحب ورته وويل چې ډېره ډوډۍ خوړل سړي ته ډېر خوب ورولي او د شپې زمونږ د وظائفو مانع گرځي، هرڅه ټينگار چې سرمايه داره مريد وکړی پير صاحب انکار کاوه، او د پير صاحب زوی په ماړه نس ډوډۍ وخوړل، سترخوان چې ټول سو مريد ورته وويل چې تبرگا به د ماخستن لمونځ مونږ ته په دې مهمان خانه کي په جماعت راکوي، پير صاحب د مخه سو جماعت پسي محدود نفر ودرېدل، سرمايه دار او د هغه مزدوران او د پير صاحب زوی پسي ودرېدل، پير صاحب په ډېره خشوع او په

نهایت تعدیل الارکان لمونځ وکړی او یوازي دوه رکعته سنت یې وکړه وتریې و تهجد ته پرېښول، خیر پیر صاحب د ځپل سرمایه دار مرید څخه رخصت واخستې دی او زوی یې کور ته راهي سوه، پیر صاحب چي کور ته ورغلی ماښني ته یې وویل چي سترخوان راواخله ډېر وږی یم، ماښني یې ورته وویل چي د مهمانی څخه ځرنګه وږی راغلې هورې به دې ځان ښه موړ کړی وای، پیر صاحب پر ماښني منت وکړی چي ځرنګه ناپوه یې، که ما هورې ځان موړ کړی وای د سرمایه داره مرید زما څخه عقیده او ښته چي دا ځرنګه خېتور پیر دی، خیر ماښني یې وچه ډوډی راواخستل، پیر صاحب د اوبو په کومک ځان تر پېزي په موړ کړی، زوی ورته ګوري، پیر صاحب چي له ډوډی څخه فارغه سو، زوي یې ورته وویل چي بابا لمونځ دي هم راوګرځوه، ولي تا خو کور داسي لمونځ نه کاوه لکه د سرمایه داره په کور کي چي دي وکړی، دا ؤ د ریاء کار بیان.

اَلْمَلِكُ الْقُدُّوْسُ السَّلٰمُ الْمُؤْمِنُ الْمُهَيْمِنُ الْعَزِيْزُ الْجَبَّارُ الْمُتَكَبِّرُ

"الملک" چي مالک د ټولو مخلوق دی خلقًا و ملکًا و عبیدًا "القدوس" چي پاک دی د هر عیب څخه البلیغ في النزاهة (په پاکی کي) عما لایلیق به تعالی "السلام" خاوند دی له هره عیبه په سلامتیا سره من کل نقص وآفة "المؤمن" قال ابن عباس رض الذي امن الناس من ظلمه (چي بېغمه کړي یې دي خلک له ظلم څخه) او امن من آمن به من العذاب فهو مشتق من الآمان ضد التخویف، وقیل المصدق لرسله بالمعجزات "المهیمن" چي شاهد دی بالعلم علی عباده في اعمالهم چي دې ته په عربي کي رقیب هم وایي، کذا قال ابن عباس رض ومجاهد وقتادة والسدي ومقاتل رح، وکذا قال في القاموس حیث قال چي مهیمن مشتق دی د همن څخه علی کذا اذا صار رقیبًا علیه حافظًا وکذا قال الخلیل النحوي وقال سعید بن المسیب والضحاک وابن کیسان هو اسم من اسماء الله تعالی في الکتب السماویة والله تعالی اعلم بتأویله.

**درویش وایي**: چي وهذا بعید جدًا لان لهذا الاسم الجلیل مادة في العربیة کما مر فلا اعتبار لرده الی الجهالة، وقال ابن زید معناه المصدق (یعني لرسله) بالمعجزات فهو راجع الی ما قیل قبل ذالک.

"العزيز الجبار" غالب دی پر ما اراد ليس مانع لارادته او د الجبار ترجمه ابن عباس په العظيم سره کړې ده، وقال جبروت الله عظمته، نو پر دې تقدير اسم ذات دی، وقيل مشتق له جبر څخه په معنی د اصلاح لکه په دې محاوره کې جبرت العظم اذا اصلحت بعد الكسر چې په پښتو يې شکسته بند بولي، وفي الحديث معناه جابر العظيم الكسير، او السدي او مقاتل وايي چې د الجبار معنا دا ده چې مجبور کوي خلگ پر ما اراد منهم، او بعض وايي چې معنا د الجبار القهار ده والله اعلم.

**پوه سه:** چې "المتكبر" له باب څخه د تفعل دی لپاره د مبالغة كما في خواص الابواب للشافية، و الكبر الكبرياء معناه الامتناع فمعناه الممتنع من كل مايوجب نقصًا او حاجة، وقيل ذو الكبرياء وهو الملك.

سُبْحٰنَ اللّٰهِ عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ﴿٢٣﴾

مبراء او پاک دی خدای له هغه شيانو څخه چې څوک يې دده سره شريک بولي په ذات کې يا په صفاتو کې يا په عبادت کې.

هُوَ اللّٰهُ الْخَالِقُ الْبَارِئُ الْمُصَوِّرُ لَهُ الْاَسْمَآءُ الْحُسْنٰى

خدای پيدا کونکی د مخلوقاتو دی على ما يقتضيه حكمه، كريمه: يخلقكم في بطون امهاتكم وخلقا من بعد خلق "البارئ" پيدا کونکی د اشياؤ دی بيله تفاوته څخه د اعضاء کې د هيڅ شي يعني له صورة څخه د انسانانو يا حيواناتو هر يو ته يې داسې اعضاء ورکړي دي چې دده بنيه سره مناب وي "المصور" قال البغوي" المماثل للمخلوق بالعلامات التي يتميز بها بعضها عن بعض او صاحب الصحاح هم ورته معنی کړې ده، روح المعاني او مظهري وايي چې ما به الامتياز دوه قسمه دی يو محسوس دی چې خواص او عوام دواړه په پوهېږي ويدركه الانسان و كثير من الحيوانات كصورة الانسان والفرس والحمار بالمعاينة ومن هذا القسم الامتياز بين زيد وعمرو وغيرهما من افراد الانسان.

**درويش وايي:** چې په ټوله نړۍ کې څوک وگرځي دوه انسانان که څه هم من اب واحد وام واحدة وي بلا امتياز بوجه من الوجوه به نه کړې پيدا، وكذا افراد الفرس والحمار وغيرهما من الحيوانات، او بعض ما به الامتياز معقول چې خاص خلک په

پوهېږي كالصورة التي اختص به الانسان من العقل والادراک ومن العلم والجهل وغيرها، والى هذين الصورتين اشار الله تعالى بقوله خلقناكم ثم صورناكم، وقال خلقكم فاحسن صوركم وقال في اى صورة ما شاء ركبک الى غير ذالک.

"لَهُ الْأَسْمَاءُ الْحُسْنَىٰ" خداى لره دي خاص ښه نومان (چي دا نومان نهه نيوي (۹۹) دي چي هريو پر ښه معنٰى دلالت كوي كما لايخفٰى على من تفكر في معاني اسمائه عزوجل)

يُسَبِّحُ لَهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ

تسبيح او تنزيه د خداى وايي له نقائصو څخه كالحدوث والشريک في الذات والصفات والعبادات.

**درويش وايي:** چي له تسبيح څخه د ټوله ما في السمٰوات والارض من ذوى العقول والجمادات چي تسبيح په قول ده او كه په حال ده او د علماء د ظاهر او اهل الله په منځ كي اختلاف په تفسير ايوبي كي مكرر تېر سوى دى فلا حاجة الى الاعادة.

وَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴿٢٤﴾

ددې اسمين مباركين معنٰى څو ځايه ذكر سوې ده.، د معقل بن يسار رض څخه روايت چي رسول الله ﷺ وويل چي كه څوک چي صباح سي درې واره داسي ووايي: اعوذ بالله السميع العليم من الشيطان الرجيم، او وروسته درې ايته د اخير د سورة الحشر قرائت كړي وكل الله به سبعين الف ملک يصلون عليه (يعني دعاء ورته كوي) حتى يمسى چي ماښام كېږي فان مات في ذالک اليوم مات شهيدًا، او كه يې څوک د شپې ووايي هغه پر دغه قرار دى، رواه الترمذي.

**درويش وايي:** چي د تفسير څخه د سورة الحشر پر څلور بجې د عصر په ورځ د چهار شنبې پر اته ويشت (۲۸) تخمينًا د ربيع الاول سنه (۱۴۳۳) هـ په خير او عافيت په توفيق د رب العزة فارغ سوم، ولله الحمد والمنة والصلوة والسلام على خير البرية وآله وصحبه البررة اجمعين.

سُوْرَةُ الْمُمْتَحِنَةِ مَدَنِيَّةٌ وَّهِيَ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ثَلٰثَ عَشَرَةَ اٰيَةً وَّفِيْهَا رُكُوْعَانِ

**پوهه سه:** چي مظهريؒ وايي: سورة الممتحنة مكية دى، وهي ثلث عشرة آية وفيها ركوعان، او روح البيان وايي چي دا سورة مدنية دى، روح المعاني وايي واطلق ابن عباس وابن الزبير ﷺ القول بمدنيها، و ذكر بعضهم ان اولها نزل يوم فتح مكة فكونها مدنية اما من باب التغليب او مبني على ان المدني ما نزل بعد الهجرة ولو كان بمكة.

**درويش وايي:** چي دا قول د روح المعاني بنه محاكمه ده بين الفريقين، يعني بعض مفسرين يې مكي بولي لكه مظهري، او څوک چي يې مدني بولي لكه روح البيان والله اعلم، ابن حجرؒ وايي چي مشهوره په دې نامه كي فتح د حاء ده او بعض يې مكسور وايي. فعلى الاول صفة المرئة التي انزلت هذه السورة بسببها وعلى الثاني صفة د سورت دى لكه چي سورة البرائة ته چي سورة الفاتحة وايي وفي جمال القرآن نسمى ايضًا سورة الامتحان يې هم بولي.

**درويش وايي:** چي روايت كړى دى بغويؒ وغيره چي سارة مولاة ابى عمر بن صفي بن هاشم بن عبد المناف راغله د مكې څخه و مدينې ته چي رسول اللهﷺ كارسازي يې كول لپاره د فتح د مكې. فقال رسول اللهﷺ ا مسلمة جئت (ايمان دى راوړى دى چي راغلې؟) قالت لا، قالؑ مهاجرتا جئت (يا دي هجرت راكړى دى چي راغلې؟) قالت لا، نو عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي نو د څه لپاره راغلې يې؟ دې ورته وويل چي تاسو زموږ اهل او قبيله او دوستان ياست، واحتجت حاجة شديدة فقدمت عليكم (نو تاسي ته راغلم چي تاسى پر ما مهرباني وكړئ او كالي او راحله راكړئ چي زه بيرته مكې ته ورسېږم ) فقال اين انت من شبان مكة وكانت مغنية نائحة چېري ته له ځوانانو څخه د مكې يعني چي هغو خو ستا سره ډېري ځوانى. كولې دا عليه الصلوة والسلام له دې جهته ورته وويل چي دې بنه غزلې ويلې او بنه اوازي ؤ، او بل پر مړي بې ژړل چي نائحه يې بولي، دې ورته وويل چي زما څخه نه چا غزل غوښتې او نه نوحه، وروسته تر غزاء د بدر چي اوويا (۷۰) كسه مخور د اهل مكې پكښې ووژل سول او اوويا (۷۰) كسه يې بد پند كي ژوندي مدينې ته بوتله، نو عليه الصلوة والسلام بني المطلب او بني عبد المطلب ته په

ټینګه وویل چې دې ښځې ته نفقه یعنې نقود او کالي ورکړئ او مکې ته د رسېدو لپاره اوښ ور کړئ، هغو هم په د که پیمانه کومک ورسره وکړی، وروسته چې دا ښځه راهي کېدل مکې مکرمې ته حاطب بن ابی بلتعة و هغې ښځې ته یې وویل چې زما یو خط د مکې مشرانو ته رسوې، او حاطب و هغې ښځې ته لس دیناره ورکړه وکتب یعنې د خط مضمون دا ؤ من ابن ابی بلتعة الی اهل مکة چې رسول اللهﷺ ستاسي سره د جنګ تیاري کوي یعني فتح د مکې خپل ځانونه تیار کړئ و جنګ ته، خیر ساره له مدینې څخه ووتل او د حاطب د جاسوسی خط ورسره ؤ، جبرئیلؑ راغلی رسول اللهﷺ ته یې د حاطب ټوله کارنامه یعني دده د خط و کفارو ته د مکې بیان کړه، نو علیه الصلوة والسلام، علي، عمار، زبیر، طلحة بن عبید الله، مقداد بن الاسود او مرثد الغنويؓ راوغوښتل او داسي یې ورته وویل چې پر آسانو سپاره سئ روضة خاخ (چې د یو ځای نوم دی بین مدینة والمکة) چې هورې یوه ښځه پر اوښ سپاره ده له هغې څخه کاغذ او مکتوب دی د حاطب بن ابی بلتعة و مشرکینو ته د مکې هغه خط ځني واخلئ نور په دې کار مه لرئ، او که یې خط نه درکاوه فاضربوا عنقها، نو دا کسانؓ راهي سوه هر یو پر آس سپور ؤ حتی چې په هغه ځای کي چې علیه الصلوة والسلام ورښوولی ؤ ښځه یې لاندي کړه.

**درویش وايي:** وفیه معجزة لرسول اللهﷺ، نو دوی چې پسي ورسېده دوی هغې ښځې وویل چې راوباسه هغه کاغذ چې تا ته ابی بلتعة درکړی دی، دې ښځې قسم بالله ورته واخستی چې زما سره مکتوب د چا نسته، نو دوی ددې په کالو او غوټه کي وکتل هیڅ شی یې نه کړی پیدا، نو دوی اراده وکړه چې بیرته مدینې ته وګرځي، نو عليؓ وویل چې والله ما کذب رسول اللهﷺ، نو عليؓ توره راوکښل او ښځې ته یې وویل چې کاغذ راوکاږه یا به له تا څخه کالي کاږو او یا به دې سر په توره درېږې کوو، ښځې چې دا واورېده خوف یې په زړه کي پیدا سو، نو کاغذ یې د سر له کوڅیو څخه راوکښی چې د سر په وېښتانو کي یې پټ کړی ؤ (او په روایاتو کي راغلي دي چې د سروزني څخه یې راوکښ یعني د پرتوګابڼ سره یې یو ځای کړی ؤ، نو دوی ښځه خوشي کړه هیڅ یې نه ورته وویل ځکه چې رسول اللهﷺ داغسي ورته ویلي وه کمامر، نو خط چې یې ورته راوړی نو علیه الصلوة والسلام

حاطب بن ابی بلتعة را وغوښتی او ورته وه یې ویل چي دا مکتوب پېژنې؟ هغه ورته وویل نعم، فقال رسول اللهﷺ چي تاته څه باعث ؤ چي دا مکتوب دي کفارو ته د مکې ور واستاوه؟ قال حاطب ماکفرت منذ اسلمت وما غششتک (ما ستا سره خیانت نه دی کړی) منذ نصحتک (د هغه وخت څخه چي ما ستا سره بیعت کړی دی) ولا احببتهم منذ فارقتهم (او نه ما محبت کړی دی د کفارو سره د هغه وخته څخه چي له دوی څخه جلا سوم یعني في الدین) و لکن باعث د خط استولو دا دی چي هیڅ څوک د مهاجرینو څخه د مکې داسي نسته چي هغه دي په مکه قومي عزیزان نه لري چي هغه د کفارو د مکې د تجاوز څخه پر اقرباؤ د مهاجرینو نه منع کوي، وکنت غریبًا فیهم (زه یو بې قومه سړی وم په مکه کي او زما اهل و عیال په مکه کي ؤ) نو زما په دې خط استولو کي مقصد دا ؤ چي اهل مکه به ما خپل همکار و بولي او زما پر اهل و عیال به تجاوز نه کوي، او زما دا ایمان ؤ چي خدای عزوجل پر اهل مکه باندي خپل عذاب نازلوي (یعني الفتح) وان کتابی لایغني عنهم من الله شیئًا (چي زما خط و دوی ته فائده نه رسوي له عذاب څخه د خدای عزوجل (چي مراد ځني مغلوبیت دی) فصدقه رسول اللهﷺ (نو د ده د عذر تصدیق علیه الصلوة والسلام وکړی) فقام عمر بن الخطابؓ دعني یا رسول الله اضرب عنق هذا المنافق (چي په توره سر ورکاټ کړم ددې منافق) فقال رسول اللهﷺ وما یدریک یا عمر لعل الله اطلع علی اهل بدر فقال لهم اعملوا ما شئتم فقد غفرنا لکم (یعني حاطبؓ د غازیانو څخه د بدر دی، نو ته څه شي خبر کړې عمره چي شاید چي خدای دي په نظر د رحمت کتلي وي واهل بدر ته او دوی ته یې ویلي وي چي تاسي عمل کوئ ماشئتم ما تاسي ته بخښه کړې ده ما فعلتم یعني بعد ذالک)

**درویش وایي:** چي په یوه روایت کي داسي راغلي دي: ففاضت عینا عمر، یعني د عمرؓ تر سترګو اوښکي را ایله سوې یعني و یې ژړل. فقال الله ورسوله أعلم، وفیه انزلت هذه السورة.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَتَّخِذُواْ عَدُوِّي وَعَدُوَّكُمۡ أَوۡلِيَآءَ

ای هغه کسانو چي ایمان مو راوړی دی تاسي مه ګرځوئ دښمنان زما او ستاسي دښمنان دوستان خپل.

**درويش وايي:** چي لفظ د "عدو" که څه هم مفرد دی، لکن مراد څني جنس دی نو ځکه يې ما ترجمه په جمع سره وکړه.

تُلْقُونَ إِلَيْهِم بِالْمَوَدَّةِ وَقَدْ كَفَرُوا بِمَا جَاءَكُم مِّنَ الْحَقِّ يُخْرِجُونَ الرَّسُولَ وَإِيَّاكُمْ

تاسي اظهار د دوستۍ کوئ د دوی سره (مثلاً لکه چي حاطب دوی ته خط ور واستاوه کمامر) اول حال دا دی چي دوی کفر او انکار کوي په هغه شي چي تاسي ته راغلی دی (من الحق ای القرآن العزيز) دوی باسي رسول او تاسي له مکې څخه.

**پوه سه:** چي جمله د تلقون حال ده له فاعل څخه د لاتتخذوا يا صفت د اولياء ده.

**پوه سه:** چي دا جمله "يخرجون الرسول واياكم" حال ده له فاعل څخه د كفروا، يا استيناف دی لپاره د بيان د حال د دوی.

**سوال:** يخرجون خو مضارع ده يا لپاره د حال يا استقبال ده او سره ددې چي اخراج د رسول او مؤمنانو خو په ماضي کي ؤ؟

**ځواب:** مضارع لپاره د استحضار د قباحت ده د فعل د دوی يا لپاره د استحضار د حالت عجيبه د دوی.

**پوښتنه:** کفار د مکې خو رسول او مؤمنانو ته دا نه ويل چي تاسي ووزئ له مکې څخه بلکې منع کول يې، فكيف يصح نسبت الاخراج الى الكفار؟

**ځواب:** مراد له اخراج څخه باعث د اخراج او سبب د اخراج دی وهو الاذى للرسول والمؤمنين بالقول والفعل لا حقيقة الاخراج.

أَن تُؤْمِنُوا بِاللَّهِ رَبِّكُمْ

"ان تؤمنوا" اى بان تؤمنوا بتقدير باء السببية چي تاسي ايمان راوړی دی پر خدای چي رب ستاسي دی.

**فائده:** په دې عبارت قرآني کي تغليب دی د مخاطب پر غائب اى الرسول والمؤمنين چي اسم ظاهر سره ذکر سوه، او التفات دی له تکلم څخه و غيبت ته حيث لم يقل بي لپاره د تنبيه پر دې چي موجب د ايمان ربوبيت او الوهيت دی.

إِنْ كُنْتُمْ خَرَجْتُمْ جِهَادًا فِي سَبِيلِي وَابْتِغَاءَ مَرْضَاتِي

كه تاسي راوتلي ياست لپاره د جهاد (في سبيلي) زما په لار کي يعني دين الاسلام (وابتغاء مرضاتي) او لپاره د طلب د رضاء زما (نو مرضات مصدر ميمي دی)

**پوه سه:** چي جواب د شرط محذوف دی دل عليه لا تتخذوا والتقدير ان كنتم الخ فلا تتخذوا هم آه.

تُسِرُّونَ إِلَيْهِمْ بِالْمَوَدَّةِ

قال مقاتل٭ چي دا جمله بدل ده من تلقون اليهم څخه او مراد له مودة څخه نصيحت دی او يا دا جمله استيناف ده والمعنى چي هيڅ فائده نسته تاسي لره په پټولو کي د مؤدة د دوی سره او اخبار د عليه الصلوة والسلام او مؤمنانو دوي ته په پټه استولو کي.

وَأَنَا أَعْلَمُ بِمَا أَخْفَيْتُمْ وَمَا أَعْلَنْتُمْ

او خدای پاک وايي چي زه خبر يم په کامله وجه په هغو خبرو چي تاسي پټي رسوئ يا يې په ښکاره رسوئ دوی ته.

وَمَنْ يَفْعَلْهُ مِنْكُمْ فَقَدْ ضَلَّ سَوَاءَ السَّبِيلِ ①

او څوک چي اظهار د مودة کوي د دوی سره.

**پوه سه:** چي سواء مصدر دی په معنی د مستوي او اضافت يې و سبيل ته اضافت دی و موصول ته ای السبيل المستوی ای طريق الهدی.

إِنْ يَثْقَفُوكُمْ يَكُونُوا لَكُمْ أَعْدَاءً

يعني که دوی تاسي ونيسي او پر تاسي غلبه پيدا کړي (في القاموس ثقفه كسمعه (يعني في الوزن والباب) صادفه (ورسره يو ځای سو) او اخذه او ظفر به او ادركه (وهذا كلها يليق ههنا) دوی ګرځي تاسي لره دښمنان (يعني لاينفعوكم القاء المؤدة اليكم چي تاسي کوله د دوی سره فائده يې وتاسي ته ونه کړه.

وَيَبْسُطُوا إِلَيْكُمْ أَيْدِيَهُمْ وَأَلْسِنَتَهُمْ بِالسُّوءِ وَوَدُّوا لَوْ تَكْفُرُونَ ②

دوی چي تاسي دوستي ورسره کوله و به غځوي لاسونه وتاسي ته په داسي

شي سره چي تاسي به اچوي به غم کي په لاسو سره (كالقتل والضرب، او ژبي په
ښکنځلو سره او په پېغورو درکولو سره) دوی به خوښه لري او تمنی به لري چي
تاسي کافران وای (دا جمله بیان ده او دا د ماضي د دوی، يعني دوی به تر هر شي
دمخه ستاسي کفر خوښوي)

لَن تَنفَعَكُمْ أَرْحَامُكُمْ وَلَا أَوْلَادُكُمْ ۚ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ۚ

تاسي ته هرگز فائده نه رسوي قرابات ستاسي (دا تعميم دی) نه ستاسي
اولاد (لفظ د اولاد نر او ښځي دواړو ته شامل دی او تر ارحامكم خاص دی)
يعني هغه ارحام او اولاد چي دوی مشركان وي مثلاً و كنعان ته د خپل پلار
نوح عليه السلام فائده نه رسېږي، او نه و آذر ته د خپل زوی ابراهيم عليه السلام فائده رسېږي.
مفسرين وايي چي مراد هغه ارحام او اولاد دي چي تاسي د هغو لپاره موادة د
مشركانو مختاره کړې ؤ لکه حاطب بن بلتعة چي مختاره کړی ؤ.

**درويش وايي**: وهذا اوفق بالسياق لكن الاول اولى بعمومه

**درويش وايي**: چي د (يوم القيامة) په قيد سره رد دی د عذر د حاطب بن ابی
بلتعة ونحو ذالک.

يَفْصِلُ بَيْنَكُمْ ۚ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ۝

خدای جل جلاله به جلا والی وکړي ستاسي تر منځ (يعني مؤمنان به جنت ته داخل
کړي او مشركان به دوزخ ته، نو ولي تاسي دوستي او موالات کوی د مشركانو سره
په دنيا کي چي په موجوده وخت کي حاطب بن بلتعه د مشركانو سره د مکې وصل
کاوه کمامر، او يا معنی دا ده چي خدای جل جلاله به جلا کړي لشدة الهول والخوف،
كريمه: يوم يفر المرء من اخيه وامه وابيه الى اخيره، كريمه: الاخلاء يومئذ اعداء
الا المتقين (والله بما تعملون بصير) او خدای په ټولو عملو ستاسي خبر دی.

**پوه سه**: چي کلمه د ما يا مصدريه ده ای بعملكم، يا موصوله ده والعائد
محذوف والتقدير بما تعملونه، وقد مر مرارًا فتذكر نو معنی د ايت او حاصل يې
دا دی چي هر چا ته جزاء د ما عمل في الدنيا به ورکړي.

قَدْ كَانَتْ لَكُمْ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ فِيْ إِبْرٰهِيْمَ وَالَّذِيْنَ مَعَهُ ۚ

په تحقيق تاسي لره ستـه ايها المؤمنون (اسوة) اى اقتداء (حسنة) ښه، په ابراهيم سره او هغه كسان چي دده سره دي، مراد د الذين څخه هغه كسان دي چي پر ابراهيم عليه السلام يې ايمان راوړى ؤ.

**پوه سه:** چي په نقل كي د قصه د ابراهيم عليه السلام تائيد دى پر مؤمنانو چي دوى بايد د كفارو سره موالات او دوستي ونه كړي لان الحب في الله والبغض في الله لويو اركانو څخه د ايمان دي.

**فائده:** حسنة اول صفت د اسوة دى او في ابراهيم يې صفت ثاني دى به تقدير د كائنة اى كائنة.

إِذْ قَالُوْا لِقَوْمِهِمْ إِنَّا بُرَءٰٓؤُا مِنْكُمْ وَمِمَّا تَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ كَفَرْنَا بِكُمْ

كلمه د اذ ظرف دى او خبر د كان دى (هغه وخت چي وويل ابراهيم عليه السلام او مؤمنانو) خپل و قوم ته چي كافران وه، موږ بېزاره يو.

**پوه سه:** چي برءٰؤا جمع د بريئ ده لكه ظرفاء چي جمع د ظريف ده (منكم) له تاسي كافرانو څخه او د هغو شيانو څخه چي تاسي يې عبادت كوئ (يعني بتان) ماسوى د معبود بالحق.

**پوه سه:** چي كفر په حقيقت كي خو ضد د ايمان دى لكن دلته په معنى د تبرى دى يعني بېزاري دى.

وَبَدَا بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمُ الْعَدَاوَةُ وَالْبَغْضَآءُ أَبَدًا

او ظاهره ده زموږ او ستاسي تر منځ عداوة او بغض ترابده پوري.

حَتّٰى تُؤْمِنُوْا بِاللّٰهِ وَحْدَهٗٓ

تر هغه وخت پورى چي تاسي ايمان راوړى پر خداى يوازي يعني شركة الاصنام وغيرها به نه وي.

إِلَّا قَوْلَ إِبْرٰهِيْمَ لِأَبِيْهِ لَأَسْتَغْفِرَنَّ لَكَ

مگر نه دا خبره د ابراهيم و خپل پلار ته (چي نوم يې آذر ؤ) چي زه به طلب د بخښي كوم د خداى څخه ستا لپاره.

**پوه سه:** چي قتادةؒ وغيره وايي چي دا استثناء من قوله (اسوة حسنة) يعني په خبره کي ابراهيمؑ پلار کافر ته وکړه يعني لاستغفرن لک، اقتداء مه پسي کوی يعني کافر پلار وغيره ته دعاء د استغفار مه کوئ، او بيضاوي خبره د قتادة وغيره کړې ده يعني چي استثناء ده من قوله اسوة حسنة لکن مظهري دا خبره رد کړې ده، دی وايي چي اسوة خو نکرة دی دا نه ده معلومه چي مستثنی په اسوة حسنة کي داخله ده حتی چي استثناء متصل وګرځي او دا هم نه ده يقيني چي نه ده داخله حتی چي استثناء منقطع وګرځي، صاحب د تفسير بحر مواج وايي چي استثناء دلته د محذوف څخه ده تقديره واتبعوا اقوال ابراهيم (دا اقوال لفظ محذوف دی) الا قوله لابيه لاستغفرن لک آه.

**درويش وايي:** چي پر دې تقدير استثناء د قول ده يعني لاستغفرن لک من اقوال ابراهيم (چي محذوف وي) فالاستثناء متصل بلا ريبة.

**فائده:** په دې استثناء کي روح المعاني ډېري اوږدې خبري کړي دي لايناسب نقلها بالتفسير الايوبي لان مبناه على الاختصار مهما امکن دا دي هغه مرائي عالم کوي چي د بل کتاب يعني تفسير په څان پوري تړي.

وَمَآ اَمۡلِكُ لَكَ مِنَ اللّٰهِ مِنۡ شَىۡءٍ ؕ

يعني ابراهيم (ؑ) چي پلار ته وويل چي لاستغفرن لک، وروسته يې دا خبره وکړه چي زما په طاقت کي نسته دفع د عذاب د خدای ﷻ له تاسي څخه هيڅ شی، يعني نور مي څه له وسه پوره نه دي يعني دفع عذاب الله عنک يعني که ته پر کفر مړ سې.

**مسئلة:** و کافر ته په ژوند کي د هغه دعاء د استغفار روا ده، په دې معنی نه چي سره د کفره دي تا خدای و بخښي، بلکي په دې معنی چي په تا کي دي خدای موجبات د استغفار پيدا کړي يعني الايمان ويدل عليه قوله وماکان استغفار ابراهيم لابيه الا موعدة وعدها اياه فلما تبين له، انه من اصحاب الجحيم (يعني مات على الکفر) تبرء منه (ځني بېزاره سو) يعني دعاء الاستغفار يې ده ته ترک کړه.

رَبَّنَا عَلَيۡكَ تَوَكَّلۡنَا وَاِلَيۡكَ اَنَبۡنَا وَاِلَيۡكَ الۡمَصِيۡرُ ۝

**پوه سه:** چي دا جمله په محل کي د نصب ده په تقدير د قول يعني ابراهيم ومن معه

اى رب زموږ پر تا توکل دی زموږ، دا قول متصل دی بما قبل الاستثناء ولې چې دا امر د خدای دی و مؤمنانو ته. تقديره قولوا ربنا عليک توکلنا وترکنا موالات الکفار او د دوی څخه کومک غوښتل کمامر من حال حاطب بن بلتعه تفصيلاً.

"واليک المصير" تقديم د جار او مجرور پر عامل لپاره د اختصاص ده يعني خاص و تا ته مو رجوع ده په ورځ د قيامت.

رَبَّنَا لَا تَجْعَلْنَا فِتْنَةً لِّلَّذِيْنَ كَفَرُوْا

("ربنا" نداء يعني اصل يې ياربنا ؤ مکرره کړه پر ربنا لپاره د تاکيد او مناجات او استعطاف د خدای لاتجعلنا فتنة) يعني ځای د فتنة چې دوی را باندې مسلط کړې نو موږ ته عذاب راکوې، نو دا به فتنه سي د دوی لپاره، ولې دوی به يقين وکړي که دغه مؤمنان پر حق دين وای نو ولې زموږ په لاس گرفتار کېده.

وَاغْفِرْ لَنَا رَبَّنَا اِنَّكَ اَنْتَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ۝

او موږ ته و بخښې هغه گنهونه چې سبب د تسليط د کافرانو وگرځېدی پر موږ، ته غالب يې مانع د مشيت دې نسته او په هر کار کې حکمت لرې، وروی عن علي ﷺ شرف المرء بالعلم والادب لا بالاصل والنسب... بيت:

هنر بنمايى اگر دارى نه گوهر .... گل از خار است ابراهيم ز آذر

لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِيْهِمْ اُسْوَةٌ حَسَنَةٌ

کلمة اللام موطئة للقسم اى جواب القسم المحذوف او مخاطب په لکم سره مؤمنان د امت د عليه الصلوة والسلام دی، کريمه: بل نتبع ملة ابراهيم حنيفًا (فيهم) اى ابراهيم ومن آمن معه، يعني اقتداء بنه.

**سوال:** دا عبارت خو نژدې تېر سو، نو په تکرار کې يې څه فائده ده؟

**ځواب:** د تکرير فائده يې باعثه کول دي د مؤمنانو پر تاسي يعني اقتداء بابراهيم ولهذا اصدر بالقسم کمامر.

**فائده:** ابراهيم ﷺ يو مقبول شخصيت ؤ حتى چې مشرکانو د مکې به هم ويل چې موږ پر ملة د ابراهيم يو او يهودانو به هم ويل او نصارى ؤ به هم دعوى د ابراهيميت حتى چې خدای په بل ځای کې د قرآن دا بې ځايه دعوې د دوی رد کړي

دي، ما كان ابراهيم يهوديًا ولا نصرانيًا بل كان حنيفًا مسلمًا ولم يكن من المشركين.

**پوه سه:** چي دا عمومي دعاوي د ابراهيميت اثر د هغه دعاء د ابراهيم ده واجعل لي لسان صدق في العالمين (اى ذكرًا حسنًا)

لِّمَنْ كَانَ يَرْجُوا اللّٰهَ وَالْيَوْمَ الْاٰخِرَ ؕ

(يرجوا الله) اى لقايه وثوابه، او رجاء چي دلته په معنى د يقين ده او يقين لري پر راتگ د قيامت والثواب بالجنة والعقاب بالنار.

**فائده:** لمن كان بدل دى د من لكم څخه په دې ابدال سره اشاره وديٍ ته ده چي ايمان د مؤمنانو يقتضى الاقتداء بابراهيم ﷺ وتركه (اى الاقتداء به) يقتضي سوء العقيدة، ځكه وروسته خداى پاک داسي ووېل.

وَمَنْ يَّتَوَلَّ فَاِنَّ اللّٰهَ هُوَ الْغَنِيُّ الْحَمِيْدُ ۝

كه څوک رو گرداني وكړي د ملة ابراهيم څخه چي ملة بر حق دى د ټولو انبياء عليهم السلام وروسته تر ده، په تحقيق خداىٴ غني دى يعني محتاج نه دى د چا عبادت ته. بل عن كل شيئٍ بلكې منفعت د تاسي يعني اقتداء بالانبياء عليهم السلام فائدة راجع و اقتداء كونكي ته (الحميد) او محمود دى لاهل طاعته، قال البغوي خداى جل جلاله چي مؤمنان امر كړه په عداوت سره د كافرانو وعادى المؤمنون اقربائهم يعني الكافرين و اظهروا اى المؤمنون العداوة منهم والبرائة علم الله شدة وجد اى الهم بذالک اى بالعداوة و البرائة من اقاربهم الكافرين فانزل تسلية لهم اى للمؤمنين هذه الآية.

عَسَى اللّٰهُ اَنْ يَّجْعَلَ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَ الَّذِيْنَ عَادَيْتُمْ مِّنْهُمْ مَّوَدَّةً ؕ

شايد چي خداى عزوجل پيدا كړي په مابين كي ستاسي ايها المؤمنون او په مابين د هغو كسانو چي تاسي عداوت ورسره كاوه له كفارو څخه محبت او دوستي دا وعده خداىٴ پوره كړه فان هذه الآية نزلت قبل فتح مكة وبعد الفتح اسلم من كان بمكة من المشركين وصاروا اولياء المؤمنين او عداوت او برائت د دوى تر منځ قطع سو كان لم يكن من الامر الا من قتل يوم الفتح كالحويرث بن نفيل قتل كافرًا وغيره.

**پوښتنه:** كلمة الذين عاديتم خو عام وه تقتضى مودة جميع الذين عاديتم او سره ددې چي د من عاديتم څخه ډېر كسان ووژل سو ده؟

**ځواب**: دا قانون دی چي ګاهي عام ذکر سي مراد ځني خاص وي چنانچه ویل کېږي ما من عام الا وقد خص منه البعض (نسته داسي عام چي نه دي وي بعض الخاص له هغه څخه) او بل جواب دا دی چي ګاهي يو فعل مسند و تړوله قوم ته وي او سره ددې چي فاعل يې بعض وي لکه چي وايي: بنوا فلان قتلوا او قاتل يو وي، يا په دې قول کي د رب جليل په شان کي د قتل د اوښي د صالح علیه السلام فكذبوه (ای صالح) فعقروها (اوښه يې قتل کړه) سره ددې چي قاتل د اوښي قذار بن سالف و من معه لا جميع قوم صالح.

**سوال**: قوله في الجواب الاول ما من عام الا وقد خص منه بعض، په دې عام کي نه جاري کېږي کل انسان ناطق (ای مدرک) نو به ګونګي سوال نه واردېږي، وكل حمار ناهق کي هم نه جاري کېږي؟

**ځواب**: دا قانون بناء پر عرف اکثر دی.

وَاللّٰهُ قَدِيْرٌ ۚ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ۝

او الله قادر دی (على ذالک ای القاء المودة او على كل شيء) او خدای غفور او د لوی حلم څښتن دی لما فرط من موالاتهم قبل النهي ولما بقى في قلوبهم ميل الرحم، بخاري په خپل سند د اسماء بنت ابي بکر رضي الله عنها څخه روايت کړی دی چي زما مور مديني ته راغله چي دا راغبه وه د اسلام څخه يعني مسلمانه نه وه، نو ما پوښتنه د نبي صلى الله عليه وسلم څخه وکړه چي زه ددې سره وسيله رحمي وکړم؟ قال: نعم، فانزل الله تعالى.

لَا يَنْهٰكُمُ اللّٰهُ عَنِ الَّذِيْنَ لَمْ يُقَاتِلُوْكُمْ فِى الدِّيْنِ

تاسي خدای نه منع کوي (يعني د وسيله رحمي او د قرابت پالني څخه) د هغو کسانو د قرابت پالني څخه چي ستاسي سره يې جنګ نه وي کړی په دين کي، او احمد او البزار والحاكم د عبد الله بن الزبير رضي الله عنهما څخه روايت کړی دی چي راغله قتيلة بنت عبد العزى خپلي لور اسماء بنت ابی بکر په مدينه منوره کي او دا ښځه ابو بکر رضي الله عنه به جاهليت کي طلاقه کړې وه، نو دې قتيله ډيري هدايا د لور لپاره يعني اسماء بنت ابی بکر ته راوړي وې، نو لور يې منع وکړه له قبول څخه د

هدایاؤ ددې او دغه رنګه يې منع وکړه له ورتګ څخه د مور ددې و کور ته حتی چې اسماء خپلي خور عائشې څوک ور واستول چې ته د علیه الصلوة والسلام څخه پوښتنه وکړه زما د مور په باره کې، نو علیه الصلوة والسلام دې ته وویل یعني په وساطت د عائشې چې هدایا قبولې کړه او مور دې کور ته پرېږده. فانزل الله تعالی لاینهاکم الله الی قوله تعالی.

وَلَمْ يُخْرِجُوكُمْ مِّنْ دِيَارِكُمْ

او تاسي نه یاست ایستلي د خپلو کورو څخه چې مراد څني مشرکین د مکې دي یعني باعث د سبب ستاسي د وتلو نه ورګرځېدلي، د عنایت وجه داده چې کفارو د مکې خو دوی نه وه ویلي چې له مکې څخه ووزی لکن چونکه په ډکه پیمانه ازاروته يې مسلمانانو ته رسول چې مسلمانان يې و هجرت او جلا وطنی ته مجبوره کړل، نو ځکه نسبت د اخراج يې و کفارو ته وکړی.

أَنْ تَبَرُّوهُمْ وَتُقْسِطُوا إِلَيْهِمْ ۚ إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُقْسِطِينَ ۝

چې تاسي احسان ورسره وکړئ قولاً په ښه راغلې سره وفعلاً به مهمان نوازی سره، قسط و عدل ته وايي یعني په نظر د عدالت ورته وګورئ یعني قریب يې و بولئ، د خدای پاک خوښ دي عدل کونکي خلک یعني که نر وي او که ښځې کما فیما نحن فیه.

**پوه سه:** چې ان تبرؤهم بدل اشتمال دی من الذین.

إِنَّمَا يَنْهَاكُمُ اللَّهُ عَنِ الَّذِينَ قَاتَلُوكُمْ فِي الدِّينِ

تاسي نه نهي کوي مګر هغه کسان چې ستاسي سره يې جنګ کاوه (وهم مشرکی مکة کما في بدر واحد) په دین کې د اسلام یعني په سبب د دین.

وَأَخْرَجُوكُمْ مِّنْ دِيَارِكُمْ وَظَاهَرُوا عَلَىٰ إِخْرَاجِكُمْ أَنْ تَوَلَّوْهُمْ ۚ

تاسي يې ایستلاست له کورو څخه یعني په مکه مکرمه کې وهم اهل مکة، او یو د بل سره به يې کومک کاوه ستاسي پر اخراج باندې، بعضو کوشش کاوه ستاسي پر اخراج باندې او بعضو به کومک کاوه د مجرمینو سره، چې تاسي موالات او دوستي ورسره کوئ.

**پوه سه:** چي ان تولوهم بدل اشتمال دی له موصول څخه يعني انما ينهاكم سبحانه عن تتولوهم (چي محبت او دوستي ورسره کوی)

وَمَنْ يَّتَوَلَّهُمْ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ ۞

نو دغه کسان چي موالات او دوستي کوي د ذکر سوو کسانو سره دوی دي ظالمان، کلمه د هم ضمير فصل دی لباره د حصر يا د ظالمون معنا داده چي پر خپلو ځانو ظلم کوي چي ځانونه و عذاب ته د خدای اماده کوي، يا معنی چي ظلم په اصل کي ايښول د شي دي بې ځايه، دوی هم موالات بې ځايه کښېښو، ولي چي ځای د موالات مؤمنان وه دوی موالات د مشرکانو مختاره کړی.

**فائده:** دا ايت مفهوم مخالف نه لري چي له غير څخه د الذين قاتلوكم الخ د نورو کفارو سره موالات روا دی، ولي چي د اهل کفارو سره چي په وطن کي د مسلمانانو اوسېږي او جزيه ورکوي هم موالات نه دي روا لعموم قوله لا تتخذوا عدوي وعدوكم اولياء نو اهل ذمه خو هم د خدای او د مؤمنانو دښمنان دي وان لم يقاتلوهم، وقال الله تعالى لا تتخذوا اليهود و لا النصارى اولياء، دا هم عام دی يعني مثل د الذين قاتلوكم آه نه دی، ويقول رسول الله ﷺ المرء مع من احب (ای في القيامة) په حديث کي چي روايت يې بخاري او مسلم دواړو کړی دی راغلي دي چي په حديبيه کي چي په مابين کي د رسول الله ﷺ او د قريشو د مکې په نمائيندګی د سهيل بن عمرو صلح په مابين کي راغله، سهيل دا شرط ولګاوه چي که د مکې يو سړی زموږ له خوا که څه هم ستا پر دين وي درغلی او موږ سړی درواستوی هغه مؤمن به ته په لاس ورکوې وخل بيننا وبينه، فكره المسلمون ذالک الشرط، او سهيل بېله دې شرطه د صلحې څخه اباء وکړه او عليه الصلوة والسلام دا شرط ورسره ومنی او د صلح په کاغذ کي يې دا شرط نوشته کړی او په دې ترڅ کي ابو جندل چي د سهيل زوی ؤ او مسلمان ؤ سهيل ته يې رد کړی ولم ياتيه من الرجال المؤمنين الى المدينة الا رده ﷺ اليهم ای مشرکی مکة ته اذا طلبوه لکن د ښځو په باره کي يې هيڅ شی نه وويل سوه، وروسته مؤمنات مهاجرات راغلې په دې ترڅ کي ام کلثوم بنت عقبة بن ابی معيط را مهاجره سوه او عليه الصلوة والسلام ته راغله او دا په دغه وخت کي پېغله وه، نو اقرباء پسي راغله او عليه الصلوة والسلام ته يې

وویل چي دا موږ ته په قرار د صلح رد کړه، نو علیه الصلوة والسلام په لاس ور نه کړه لما انزل الله فیهن یعني د ښځو په باره کې هذه الآیات.

**يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ إِذَا جَآءَكُمُ ٱلْمُؤْمِنَٰتُ مُهَٰجِرَٰتٍ فَٱمْتَحِنُوهُنَّ ۖ ٱللَّهُ أَعْلَمُ بِإِيمَٰنِهِنَّ ۖ**

ای هغه کسانو چي ایمان یې راوړی دی چي تاسي ته راسي مؤمنات یعني ښځي هجرت کونکي له مکې څخه، نو تاسي امتحان څني واخلئ چي دوی په رشتیا سره لکه په خوله چي وایي چي موږ ایمان لرونکي یو په زړه کې یې هم ایمان سته چي ستاسي پر غالب الظن دا درځي چي مؤمنات دي او په خوله چي وایي په زړو کي یې هم هغه سته یعني الایمان و التصدیق.

**فائده:** دروېش غالب الظن ووایه لان الایمان الحقیقي صفة القلب ولا یعلم بما في الصدور الا الله العلیم الخبیر بالبواطن کالظواهر.

**فَإِنْ عَلِمْتُمُوهُنَّ مُؤْمِنَٰتٍ فَلَا تَرْجِعُوهُنَّ إِلَى ٱلْكُفَّارِ ۖ**

که ستاسي علم پر راغلی یعني حتی الامکان چي مراد څني ظن غالب دی پر خلکو بطهور امارات الایمان القلبي کالصلوات الخمس وغیرها.

**سوال:** د علم تفسیر خو علماء داسي کړی دی اعتقاد جازم مطابق للواقع، نو ما یحصل بالامارات خو داسي نه دی، نو تعبیر په علم یې ولي څني وکړی؟

ځواب: لپاره د تنبیه پر دې چي ظن غالب لکه علم دی في وجوب العمل به و وقع علیه الاجماع.

**فائده في امتحان المهاجرات:** اخرج ابن المنذر والطبراني في الکبیر وابن مردویة بسند حسن وجماعة عن ابن عباس رضي الله عنهما چي ده وویل په کیفیت کې د مهاجراتو ښځو چي یوه ښځه به چي علیه الصلوة والسلام ته مهاجره راغله، نو عمر رضي الله عنه د علیه الصلوة والسلام له خوا پر داسي قسم ورکولو مسلط ؤ بالله ماخرجت رغبة لارض عن ارض (ستا دي قسم په خدای وي چي ته خو لپاره د رغبت و مدیني ته چي به معتدله هوا یې ده له مکې څخه چي هوا یې ډېره ګرمه ده نه یې راغلې) و بالله ما خرجت لبغض زوجک (ستا دي قسم په خدای وي چي تا

خو به په سبب د بغض د میړه هجرت نه وي کړی) و بالله ما خرجت لا لتماس الدنیا (ستا دي قسم په خدای وي چي تا خو به هجرت لپاره د طلب د دنیا نه وي کړی، یعني چي انصار د مدیني د مهاجرینو سره ډېري مرستي کوي) و بالله ما خرجت الا حبًا لله ورسوله (ستا دي قسم په خدای وي چي ته بېله محبت د خدای او د رسول د خدای بل غرض په زړه کي نه لري)

"فلا ترجعو هن الی الکفار" مه ور استوئ دوی و کفارو ته (یعني د دوی میړونه په مکه کي کافران دي دلیل یې وروسته ایت دی)

لَا هُنَّ حِلٌّ لَّهُمْ وَلَا هُمْ يَحِلُّوْنَ لَهُنَّ

نه دوی مسلمات ښځي روا دي دوی کافرانو مړو ته (ولي چي د کافر او مسلماني ښځي نکاح سره قطع کېږي بمجرد الخروج من دار الحرب عند الامام الاعظم رحمه الله) او نه دوی یعني میړونه روا کېږي پخوانیو ماینو ته د دوی بتجدید النکاح لعدم جواز نکاح الکافر بالمسلمة.

**مسئله:** مذکور امتحان چي به دوی ورکړی په حدیث کي د عائشه رضي الله عنها راغلي دي چي علیه الصلوة والسلام دې ښځي هري یوې ته داسي قد بایعتک کلاما زما ستا سره بیعت دی صرف په خوله، عائشه رض وایي چي نه دی مسه کړی لاس د علیه الصلوة والسلام لاس د ښځي په بیعت لک د نرو سره چي به علیه الصلوة والسلام بیعت کاوه.

وَاٰتُوْهُمْ مَّآ اَنْفَقُوْا

تاسي ورکوئ (الضمیر راجع الی الکفار او مراد ځني میړونه د دغو مهاجراتو مسلماتو ښځو دي) هغه مال چي دوی مصرف کړی دی پر دغو یعني المهرو.

**درویش وایي:** چي په دې کي اختلاف دی چي په صلح کي د حدیبیې یوازي رجال یاد سوي دي که عامه صلح وه رجال او نساء دواړه پکښې شامل وه، مظهری رح وایي چي صلح پر دواړو وه لکن چونکه رد د ښځو منع سو بقوله تعالی فلا ترجعوهن الی الکفار، نو هغه عام حکم منسوخ سو یعني د صلح نامه په دې ایت سره لعدم جواز نکاح المسلمة للکافر ابتداء وبقاء، نو حکم د رد هنوز خدای ج نازل کړی واتوهم

اجورهم، قال البغوي" قال الزهري" ولو لا الهدنة (اى الصلح) والعهد بين رسول الله ﷺ وبين قريش يوم الحديبية لامسک (اى رسول الله ﷺ) ولم يروا الصداق (اى المهر ايضاً) او بعض مفسرين وايي چي صلح د حديبيې يوازي پر رجالو وه.

**درويش وايي:** چي د كتاب الصلح څخه داسي معلوميږي چي رد نر او ښځه دواړو ته شامل ؤ وهذا عبارت كتاب الصلح چي په حديث كي راغلي دي چي وروسته تر صلح عليه الصلوة والسلام امر كړى علي ﷺ چي كتاب الصلح نوشته كړه، حضرت علي ﷺ داسي نوشته كړه باسمک اللهم هذا ما صالح عليه محمد بن عبدالله و سهيل بن عمرو واصطلحها علي وضع الحرب عشر سنين تامن فيه الناس ويكف بعضهم عن بعض على ان من اتى محمد آمن قريش بغير اذن وليه رده عليه الى اخير كتاب، والمراد من نقل عبارت كتاب الصلح هو قوله على ان من اتى محمداً الخ لان كلمة من عامة شاملة للرجال والنساء، والله اعلم.

**درويش وايي:** چي روح المعاني په دې ايت كي ډېر طويل بيان كړى دى او روح البيان وايي چي عقد د صلح د حديبيه يوازي پر رجال ؤ دون النساء لان النساء المسلمات لوردون الى ازواجهن الكافرون لا تستطيع دفع الزوج الكافر عن انفسهن لضعفهن، هغه بعض مفسرين چي ما دمخه ذكر كړه مراد څني صاحب د روح البيان ؤ.

**پوښتنه:** حضرت علي ﷺ ولي بسم الله الرحمن الرحيم نه نوشته كاوه؟

**ځواب:** حضرت علي ﷺ خو نوشته كړى لكن سهيل بن عمرو يې مانع سو او و يې ويل چي رحمن او رحيم موږ نه پېژنو، نو هغه سي نوشته كړه چي موږ به پخوا نوشته كاوه يعني باسمک اللهم لكن دې لفظ د شريعت سره منافات نه درلودى نو ځكه علي ﷺ بدل كړى يعني بسم الله يې پرېښول.

**سوال:** حضرت علي ﷺ ولي فقط نوشته كړه هذا ما صالح عليه محمد بن عبدالله، ولي يې داسي نه نوشته كول هذا ما صالح عليه رسول الله ﷺ؟

**ځواب:** د دغه عبارت مانع هم سهيل بن عمرو وګرځېدى او و يې ويل كه ته ما رسول الله پېژندلاى نو ولي مي له مكې څخه منع كولې بلكې محمد بن عبدالله نوشته كړه، عليه الصلوة والسلام و سهيل ته وويل والله اني رسول الله واني محمد بن عبدالله، علي ﷺ ته يې وويل چي محمد بن عبدالله نوشته كړه.

**تنبيه:** د دې صلح څه فائده وه چي سره د درنو شرطو ذکر سوه او عليه الصلوة والسلام پر ځان برداشتول؟

**ځواب:** په دې لسو کلو کي چي آمد و رفت د مسلمانانو مکې ته او آمد و رفت د کافرانو و مدينې ته تاريخ وايي چي دومره کافران د قريشو مسلمانان سوه چي تر هجرت دمخه دومره کسان د قريشو په ايمان نه وه مشرف سوي، ولي چي مشافهة بې د عليه الصلوة والسلام سره خبري کولې د عليه الصلوة والسلام د مبارکي خولې خبرو به تاثير پر وکړی او ايمان به يې راوړی، وهذا هو سر في نزول سورة الفتح يعني انا فتحنا لک فتحًا مبينًا الى اخير السورة په وخت کي د رجوع د عليه الصلوة والسلام مدينې ته بعد الصلح په لاره کي نازل سو، فافهم هداک الله تعالى.

## وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ أَنْ تَنْكِحُوهُنَّ

او ګناه نسته پر تاسي ايها المؤمنون چي تاسي دغه مهاجرات په نکاح کړی، لکه سبيعه چي مؤمنه مهاجره وه حضرت عمر ﷺ په نکاح کړه او هغه دمخه د دې مېړه چي مسافر الاسلمي نومېدی ولور يې ورکړی، او دغه رنګه اميمه بنت بشر چي د حسان ماينه وه چي مهاجره سوه مدينې ته راغله سهيل بن ضيف په نکاح کړه او مېړه کافر ته يې د دې ولور ورکړی چي د هغې څخه يې عبد الله بن سهيل زوی راوړی.

**پوښتنه:** دې ښځو چي هجرت به يې وکړی دستي بل مېړه ورته روا ؤ د سابق مېړه څخه عده تېرېدو ته ضرورت نه ؤ او که څرنګه؟

**ځواب:** په راوتلو سره د ښځي مؤمنه له دار الحرب څخه د دې او د مېړه تر مابين فرقت راغلی او عده تېرول په نېز د امام اعظم نسته خلافًا لصاحبيه ابو يوسف و محمد.

## إِذَآ آتَيْتُمُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ وَلَا تُمْسِكُوا بِعِصَمِ الْكَوَافِرِ

چي تاسي ورکړئ مهرونه د دوی (د مهر شرط چي يې ولګاوه د دې لپاره چي هغه پيسې چي د دې کافر مېړه ته ورکړل سوي وې هغه په ځای کي د مهر د مېړه نه دريږي.

**پوه سه:** چي مراد له ايتاء څخه د مهرو د دې ښځو چي مسلمانان يې په نکاح کوي ايتاء بالفعل ته ده بل التزامها والتعهد بها (اى بالمهور) او (عصم) جمع د

عصمت ده وهي ما اعتصم به من عقد الموالات والنكاح وغيره.

روايت كړی دی ابن ابی منيع من طريق الكبي" عن ابي صالح عن ابن عباس رضي الله عنهما اسلم عمر بن الخطاب رضي الله عنه وهاجر الى المدينة وتاخرت زوجه في المشركين فانزل الله هذه الآية. او (كوافر) جمع د كافرة ده، والمراد نهى الله سبحانه وتعالى عن المقام (اى الثبات على نكاح المشركات) البغوي" وايي په روايت د ابو هريرة رضي الله عنه قال لما نزلت هذه الآية طلق عمر رضي الله عنه امرئتين بمكة مشركتين قريبة بنت ابى امية بن المغيرة فتزوجها بعده معاوية بن ابى سفيان، وهما (يعني ميره او ماينه) على شركهما في مكة، او اروى بنت ربيعه بن الحارث بن عبد المطلب ماينه د طلحة بن عبيد الله فهاجر طلحة رضي الله عنه او ماينه يې پر دين د قوم مشركه وه ففرق الاسلام بينهما، فتزوجها في الاسلام خالد بن سعد بن العاص، او الشعبي" وايي چي زينب بنت رسول الله ماينه وه د ابى العاص بن امية اسلمت ولحقت بالنبي ﷺ او ابو العاص چي ددې ميړه وُ په مكه كې مشرك پاته سو وروسته يې ميړه ابو العاص پسي راغلى مدينې ته او اسلام يې راوړی فردها عليه الصلوة والسلام، يعني ابو العاص ته يې وسپارل.

وَسْـَٔلُوا مَآ أَنفَقْتُمْ وَلْيَسْـَٔلُوا مَآ أَنفَقُوا

تاسي غوښتاى سئ ايها المسلمون (ما انفقتم) يعني مهر د هغې ښځي ستاسي چي مرتده سي او مشركانو ته ولاړه سي اذا منعوها ممن تزوجها منهم، او غوښتاى سي كافران من مهور ازواجهم المهاجرات (ما انفقوا) يعني ممن تزوجها منكم.

**پوښتنه:** واسئلوا امر دی وليسئلوا هم امر بالام دی، تا يې ترجمه د اول په تاسي غوښتاى سئ وكړه او ترجمه د دوهم دي داسي وكړه او غوښتاى سي كافران، دوې ترجمې خو اخبار دي يعني جمله خبريه دي سبب يې څه دی؟

**ځواب:** فقير يې ترجمه په لازم سره وكړه لپاره د يوې باريكی. فتدبر.

ذَٰلِكُمْ حُكْمُ ٱللَّهِ ۖ يَحْكُمُ بَيْنَكُمْ ۚ وَٱللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ﴿١٠﴾

دغه (اى جميع ما ذكر في الآية) حكم د خداى" دی چي حكم كوي په مابين

کي ستاسي يعني د مسلمانانو او د مشرکانو، او خداى ښه خبر دى په مصالحو د بندګانو، هغه شى تاسي ته بيانوي چي ستاسي خير پکښې وي، او خداى پاک په هر کار او حکم کي حکمت لري.

وَإِن فَاتَكُمْ شَيْءٌ مِّنْ أَزْوَاجِكُمْ إِلَى الْكُفَّارِ

که ستاسي څخه وتښتېدلې. مراد له شي څخه ماينه ده کما سيصرح به، ستاسي له ماينو څخه و کفارو ته يعني مرتده سوه، تعبير د ښځي يې په شي سره وکړى لپاره د تحقير او يا د مبالغې په تعميم کي يعني هر څوک چي وي او يا يې معنا داده چي فوت سي ستاسي څخه يو شى له مهرو څخه د ماينو ستاسي چي کفار چي ستاسي مرتده ماينه يې کړې ده نه يې وي در کړې تاسي ته ايها المؤمنون، ابن ابى حاطم د الحسن" څخه روايت کړى دى چي دا آيت نازل سوى دى په ام الحکم بنت ابى سفيان کي چي مرتده سوه يو سړي د بني ثقيف په نکاح کړه، راوي وايي ولم ترتد امرئة غيرها من قريش.

**پوه سه:** چي البغوي" وايي: قال المفسرون معنى (فعاقبتم) غنمتم واصلبتم من الکفار، والعقبى هي الغنيمة، وقيل معناه ظفرتم وکان العاقبة لکم يعني الفتح وقيل معناه اجتمعتموهم في القتال بعقوبة حتى غنمتم.

**درويش وايي:** چي دد ې ټولو تفسيرو مآل يو دى، فرق يې داسي دى: دو جاى کنيد، بل وايي: دوه ځايه کړه، بل وايي: دو حصه کرو، والصحيح مانقله البغوي" عن المفسرين.

فَعَاقَبْتُمْ فَآتُوا الَّذِينَ ذَهَبَتْ أَزْوَاجُهُم مِّثْلَ مَا أَنفَقُوا

يعنى مرتدات الى الکفار منکم من الغنائم التي صارت في ايديکم. يعني مثل د ما انفق المؤمنون چي د دوى ماينې مرتدات تللي دي يعني مهور د هغو ماينو د غه مؤمنانو ته ورکړئ د غنيمت له اموالو څخه تاچي د دوى مهور لغوه نه سي.

**درويش وايي:** چي البغوي" له ابن عباس ﷺ څخه روايت کړى دى چي شپږ ښځي د مؤمناتو مهاجراتو د مشرکانو سره ملحق سوې، البغوي" نوم په نوم راوړي او مظهري هم را نقل کړي دي او احکام د دوى يې بيان کړي دي ولا فائدة في نقلها الا لاطناب ان شئت فارجع الى تفسير المظهري.

وَاتَّقُوا اللّٰهَ الَّذِیْۤ اَنْتُمْ بِهٖ مُؤْمِنُوْنَ ⑪

او ویرېږئ له خدای ﷻ څخه هغه خدای ﷻ چي تاسي پر هغه ایمان راوړی دی، ولي چي ایمان پر خدای ﷻ باعث دی پر ویره په ترک کي د اوامرو د خدای او په اتیان کي د محرماتو د خدای ﷻ.

یٰۤاَیُّهَا النَّبِیُّ اِذَا جَآءَكَ الْمُؤْمِنٰتُ یُبَایِعْنَكَ عَلٰۤی اَنْ لَّا یُشْرِكْنَ بِاللّٰهِ شَیْـًٔا

ای نبي چي راسي تاته مؤمنات ښځي په داسي حال کي چي ستا سره بیعت کوي یعني علی الایمان والاسلام، دا چي دوی به شریک نه کړځوي د خدای سره هیڅ شی یعني بتان او نه ملکي الی غیر ذالک.

**پوه سه:** چي (یا ایها النبی آه) حال دی د مؤمنات څخه، کلمه د علی متعلق ده په یبایعنک پوري.

وَلَا یَسْرِقْنَ وَلَا یَزْنِیْنَ وَلَا یَقْتُلْنَ اَوْلَادَهُنَّ وَلَا یَاْتِیْنَ بِبُهْتَانٍ

او غلا به نه کوي (یعني نه د مېړه څخه او نه د بل چا څخه) او نه به زنی کوي او نه به وژني اولاد خپل (یعني پر عادت د جاهلیت چي د دوی چي به لوڼي پیدا سوې ژوندۍ به یې په خاورو کي ښخولې) او راتګ به نه کوي په بهتان سره.

**پوه سه:** چي غیبت چي کبیره ګناه ده دې ته وایي چي هغه عیب چي په مسلمان کي وي په غیاب کي د هغه یې خلګو ته بیانوی لنفرة الخلق منه کما هو المعتاد في الزمان الحاضر فی العلماء والطلباء اغلب من العوام، او بهتان ناحقه عیب په مسلمان پوري تړل او بیا خلګو ته بیانول وهذا اشد من الغیبة کما فسره الله تعالی.

یَّفْتَرِیْنَهٗ بَیْنَ اَیْدِیْهِنَّ وَاَرْجُلِهِنَّ

چي دوی دا بهتان جوړوي (بین ایدیهن وارجلهن) یعني هیڅ مصداق نه لري په واقع کي لکه غیبت چي د رلوی بلکې دوی له ځانو څخه جوړ کړی وي.

**درویش وایي:** چي د (بین ایدیهن وارجلهن) په معنی کي اختلاف دی، بعض محققان د علماء وایي معناه لا یاتین ببهتان من قبل انفسهن والید والرجل کنایة عن الذات، او په کشاف کي وایي کني بالبهتان المفتری بین یدیها ورجلیها عن الولد یعني چي دا ښځه خو ولد الزنی راوړي مګر کذبًا وایي چي دا زما د مېړه

زوی دی، وذالک لان الولد الذي في بطنها بين اليدين دی وفرجها بين الرجلين دی الذي تلد منه الولد.

**درويش وايي:** چي پر هر تقدير حمل د آيت پر ما ذكر هو الذي ذكره الاكثرون وروی ذالک عن ابن عباس رضي الله عنهما وقيل غير ذالک.

وَلَا يَعۡصِينَكَ فِي مَعۡرُوفٖ

اوستا ښځه به عاصيان نافرماني نه کوي په معروف کي يعني د شريعت اسلام په لار کي چي اتيان د هغه کار دی چي ته يې امر کړې او پرهېز دی له بد کار ښځه چي ته يې ځني نهي کړې دوی، مجاهد[۱] وايي چي مراد له معروف ښځه دا دی چي ښځه دي خلوت نه کوي د نا محرمه سړي سره، او سعيد بن المسيب[۲] او کلبي او عبدالرحمن بن زيد رحمهم الله وايي چي مراد له معروف ښځه په زوره ژړل دي پر مرګ د قريب چي نوح يې بولي په عربي، يا د واويلا نارې وهي يا کالي پر ځان څيري عند المصيبة يا وېښتان شکوي يا مخ منګاچي کوي، او د نامحرم سره دي سفر نه کوي.

**درويش وايي:** چي مراد له محرم ښځه محرم ابدي دی، نو د ښځي د خور مېړه محرم نه دی، ولي دا ښځه چي مړه سي يا يې مېړه طلاقه کړي دد ې د خور سره دد ې د مېړه نکاح روا ده، لکن خلک يعني نران خوښينه داسي بولي لکه محرمه په لڅ مخ د خوښيني سره ناست وي بلکې په سفر يې بيايي او ښځه هم د خور مېړه چي اجنبی يې بولي لکه محرم داسي بولي يوازي په خونه کي بې حجابه ورسره ناسته وي، وروی مسلم عن ابی مالک الاشعري رضي الله عنه قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم اربع من امتي (څلور خويه دي زما په امت کي) من امر الجاهلية لايتركونهن (چي دوی يې نه پرېږدي يعني بالاعتبار الاغلب) (۱) الفخر بالاحساب چي فخر په امور دنيويه کوي من كثرة المال والجاه والجلال او بنګلې وغيرها (۲) والطعن عيب وايي د بعضو خلګو پر نسب يعني فلانی جټ دی فلانی استا کار دی فلانی مسلي دی، الی غير ذالک (۳) طلب د باران کوي په ستورو مثلاً نن فلانی ستوری دی باران کېږي (۴) النياحة: وقال صلى الله عليه وسلم که نائحه توبه ونه کاږي د نوح ښځه نو به په دې يعني په ورځ د قيامت واغوستل سي پرتوګ د قطران او قميص د ګرګ د بدن.

فَبَايِعْهُنَّ وَاسْتَغْفِرْ لَهُنَّ اللَّهَ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿١٢﴾

نو بيعت ورسره وکړه او ضمان د ثواب ورکړه که چېرې دوی وفا په مذکوره شرطو وکړه (فبايعهن) جزاء ده د اذا جائک آه يعني بعد اخذ الشروط المذکورة) او طلب د بخښنې کوه له خدای څخه و دوی ته. په تحقيق خدای بخښونکی د ګنهو دی او مهربان دی سره د بخښنې يعني نور ثواب هم ورکوي، روی البخاري عن عائشة ﵂ کان النبي ﷺ يبايع النساء بالکلام بهذه الآية لايشرکن بالله الآية، قالت ﵂ وما مست يد رسول الله ﷺ يد امرئة مګر لاس د خپلې کور والا يا د مينځې، البغوي روايت کړی دی.

**درويش وايي:** چې صحيح حديث چې روايت يې البغوي کړی دی چې يوه ښځه چې نوم يې اميمة بنت رقيقة ؓ دا وايي چې ما بيعت وکړی د رسول الله ﷺ سره نورې ښځې هم موجودې وې، نو ما ورته وويل يا رسول الله زمونږ سره لاس په لاس بيعت وکړه (ددې قصد دا ؤ لکه د نورو سره چې بيعت کوي) عليه الصلوة والسلام راته وويل: اني لا اصافح النساء وانما قولي لامرئة کقولي لمائة امرئة.

**درويش وايي:** چې روح المعاني وايي چې مبايعة وقعت غير مرة په مکه کې مبايعت وروسته تر فتح د مکې او په مدينه کې هم واقع سوې دی و ممن بايعته رسول الله ﷺ هند بنت عتبة زوج ابی سفيان، چنانچه په حديث کې د اسماء بنت يزيد بن السکن راغلي دي کنت في النسوة المبايعات وکانت فی النساء هند بنت عتبة متنکرة چې مخ يې پټ کړی ؤ، نو عليه الصلوة والسلام دوی ته وويل: فلما قال على ان لايشرکن بالله شيئًا هند ورته وويل کيف نطمع ان يقبل منا ما لم يقبله من الرجال؟ فلما قال ولايسرقن هند وويل ان ابا سفيان رجل شحيح يعني بخيل ؤ خامخا دده د مال بعض شيان ما غلا کړي دي، دې وويل چې زه نه پوهېږم چې هغه به ما ته روا وي او که څرنګه؟ ابو سفيان چې دلته حاضر ؤ: ما اصبت من شيئ فيما مضى يا تر دې وروسته هغه ټوله تاته حلال دي زما له خوا، عليه الصلوة والسلام وخندل او هند يې پېژندل چې د ابو سفيان مابينه ده، وقال وانک لهند بنت عتبة؟ قالت نعم مونږ ته عفوه وکړه د هغو کارو چې ستا پر خلاف موږ د مخه کړي دي، قال عفا الله عنک، فقال ولا يزنين فقالت او تزنى الحرة، دې دا خبره پر

غالب کول په وخت کي د جاهلیت چي زنا به مینځیانو کول یعني ان الحرة لا تزنی غالبًا وانما یزني في الغالب الاماء.

**فائده:** قید د غالب ددې لپاره وویل سو چي هغه زانیات چي پر کورو بې بیرغونه ولاړ وه د زنا لپاره هغه تولي حرات وې. فقال ؒ ولا یقتلن اولادهن، هند ورته وویل: ربیناهم صغارًا و قتلهم کبارًا (موږ تربیه کړه کوچنیان تا مړه کړه لویان) دې اشاره ودې ته وکړه چي ددې زوی حنظلة بن ابي سفیان چي په بدر کي قتل سوی وُ، نو عمرؓ دومره ډېر وخندل چي ستني ستخ غځار سو وتبسم رسول اللهﷺ، او په بل روایت کي راغلي دي چي هند وویل: قتلت الآباء وتوصینا في الاولاد (زموږ پلرونه دي را مړه کړه ته اوس وصیت د اولادو راته کوې) فضحک رسول اللهﷺ، فقال ؒ ولا یأتین ببهتان فقالت ان البهتان لامر قبیح لا یأمر الله الا بالرشد (په رشتیا سره) ومکارم الاخلاق، فقال ؒ لایعصینک في معروف فقالت والله ما جلسنا مجلسنا هذا وفي انفسنا ان نعصیک (موږ په دې مجلس کي نه یو کښېنستلي چي زموږ دي عصیان ستا غرض وي.

**پوښتنه:** رسول اللهﷺ د هند بنت عتبه زوج ابو سفیان سره څو مره ډېري خبري وکړې چي د بلي ښځي سره یې په لسمه د دغو خبرو نه وکړې؟

**ځواب:** دا په اعتبار ددې چي ام حبیبهؓ چي د هند لور وه د علیه الصلوة والسلام په نکاح کي وه، والله اعلم.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَتَوَلَّوْا۟ قَوْمًا غَضِبَ ٱللَّهُ عَلَيْهِمْ

ای هغه کسانو چي ایمان یې راوړی دی تاسي دوستي او محبت مه کوئ د هغه قوم سره چي پر هغو د خدای ؒ غضب سوی دی، یعني الیهود کما یدل علیه ما اخرج ابن المنذر من طریق ابن اسحاق عن محمد عن عکرمة عن ابن عباسؓ قال کان عبد الله بن عمرو و زید بن الحارث یوادون رجالاً من یهود فانزل الله هذه الآیة، وکذا قال البغوي ؒ چي بعض خلک له فقراؤ څخه د مسلمانانو یخبرون الیهود اخبار المسلمین چي په دې ذریعه دوی یعني الفقراء په دوی پوري یعني الیهود ځانونه پیوندول چي د دوی د باغو مېوې وخوري فنهاهم الله عن ذالک، وقیل المراد به عامة الکفار.

قَدْ يَئِسُوا مِنَ الْآخِرَةِ

چي نا اميده دي د آخرت څخه (اى من ثواب الله في الآخرة)

**پوه سه:** چي که مراد يهودان وي، نو دوى پر دې علم درلودى چي محمد ﷺ نبي بر حق دى او مؤيد په معجزات کبيره ؤ سره دى او مکتوب دى په کتاب کي د دوى چي تورات دى او دوى سره د هغه انکار کاوه له رسالت څخه دده عنادًا او حسدًا چي شيطان د دوى په زړو کي اماني باطله ورواچولې مثلاً ستاسي ابا او اجداد خو نبيان دي تاسي چي هر څه وکړى هغه ستاسي شفاعت کوي په ورځ د قيامت، نو په دې سبب دوى نا اميده دي له نعمتو څخه د آخرت مع اعتقادهم بالآخرة ونعمائها فما اصبرهم على النار نعوذ بالله من ذالک، او که مراد عام کفار سي فهم يئسوا من الآخرة لعدم ايمانهم بالغيب والثواب والعقاب.

كَمَا يَئِسَ الْكُفَّارُ مِنْ أَصْحَابِ الْقُبُورِ ﴿١٣﴾

لکه مشرکان چي نا اميده دي د من في القبور څخه چي دا اهل القبور به بيرته ژوندي کيږي.

**پوه سه:** چي که مراد له قوم غضب الله عليهم په دمخه آيت کي عامة الكفار سي نو دلته د الكفار لفظ وضع د ظاهر په ځاى کي د مضمر ده للدلالة على ان الكفر يئسهم.

**درويش وايي:** چي په توفيق د خداى عزوجل له تفسير څخه د سورة الممتحنة پر يوه نيمه بجه د ورځي د يکشنبې يعني وقت آذان الظهر پر اتلس تخمينًا د ربيع الثاني د سنه (١٤٣٣) هجري قمري فارغ سوم، فلله الحمد والمنة وعلى رسوله الف الف السلام والتحية وعلى آله وصحبه الكملة البررة وعلى ازواجه امهات المؤمنين بالمحبة التامة.

سُوْرَةُ الصَّفِّ مَدَنِيَّةٌ وَّهِيَ اَرْبَعَ عَشْرَةَ اٰيَةً وَّفِيْهَا رُكُوْعَانِ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

رب سهل على عبدك الذليل الفقير تفسير هذه السورة الجليل بالخير والعافية.

**پوه سه:** چي روح المعاني وايي چي دا سورة سورة عيسى ﷺ هم بولي، او سورة الحواريين يې هم بولي، وهو مدنية في قول جمهور المفسرين" ولا اعتبار لغير ذالک مما قيل فيه، او د اول قول قائلين عبدالله بن الزبير او عبد الله بن عباس او عكرمة ﷺ والحسن وقتادة ومجاهد ﷺ دي، ترمذي او الحاکم سره د تصحيح روايت کړی دی له عبدالله بن سلام ﷺ څخه چي يو څو نفره موږ له اصحابو څخه د رسول الله ﷺ سره کښېنستلو په خبرو کي مو وويل چي که موږ پوهېدلای چي کوم يو له اعمال صالحه وُ څخه احب الى الله دی نو به موږ هغه عمل کولای فانزل الله تعالى.

سَبَّحَ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ۚ وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ۝١

تنزيه له هر عيب څخه وايي خدای عزوجل لره هغه شيان چي په آسمانو کي دي من الملائكة او هغه چي په مځکه کي دي من الثقلين يعني الانس والجن، او خدای پاک غالب دی د مشيت مانع يې څوک نسي کېدلای او په هر کار کي حکمت لري عبث کار خدای عزوجل نه کوي.

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لِمَ تَقُوْلُوْنَ مَا لَا تَفْعَلُوْنَ ۝٢

ای هغه کسانو ولي هغه خبري کوی چي فعل يې نه کوی يعني عمل نه په کوی، دا آيات عليه الصلوة والسلام موږ ته قرائت کړی حتى ختمها، او بغوي" قول د مفسرينو" داسي ذکر کړی دی چي قال المؤمنون لو علمنا احب الاعمال الى الله عزوجل لعملنا موږ به عمل په کولای وبذلنا فيه اموالنا وانفسنا فانزل الله تعالى ان الله يحب الذين يقاتلون في سبيله صفا يعني احب د اعمالو وِ خدای" ته جهاد في سبيل الله دی، نو خدای عزوجل په دوی ابتلاء وکړه د هغې خبري د دوی وبذلنا فيه انفسنا و اموالنا په ورځ کي د احد چي ولوا مدبرين يعني شکست يې وکړی و الرسول يدعوهم في اخراهم، فانزل الله تعالى لم تقولون ما لاتفعلون، او ابن جرير د ابي صالح" څخه روايت کړی دی چي صحابه کرامو ﷺ وويل لو کنا نعلم ای

الاعمال افضل مونږ به عمل په کړی وای، فنزلت یا ایها الذین آمنوا هل ادلکم علی تجارة تر پایه پوري چي په هغه ایت کي د نورو عملو سره جهاد في سبیل الله هم ذکر سوی دی فکرهوا الجهاد فنزلت یا ایها الذین آمنوا لم تقولون ما لا تفعلون.

**درویش وایي:** چي مظهری ؒ وروسته تر بسم الله الرحمن الرحیم متصل هغه د ترمذي او الحاکم قول راوړی دی چي عبد الله بن سلام ﷺ الخ کما مر، وروسته یې دا ویلي دي فانزل الله هذه الآیة سبح لله الآیة، نو پوښتنه داده چي د سبح لله آه د شان نزول سره چي مظهري ذکر کړی دی څه علاقه سته؟

**ځواب:** اصل مراد په روایت کي د ترمذي والحاکم خو اخیره حصه د ایت ده یا ایها الذین آمنوا لم تقولون آه، او سبح لله تمهید د وروسته ایت ده یعني لم تقولون آه لکه مصنفین چي په خپلو کتابو کي اول حمد او ثناء د خدای ؒ وایي وروسته په مطلب شروع کوي، لکن بیا هم صنیع د روح البیان او روح المعاني تر صنیع د مظهري اولی ده، ولي هغو صرف د سبح لله آه ترجمه کړې ده او د هغه آیت سره یې هغه شان نزول چي مظهري اولا راوړی ؤ یعني یا ایها الذین آمنوا لم تقولون الآیة ذکر کړی دی فتدبر و خذ ما صفی ودع ما کدر، او محمد بن کعب ؒ داسي روایت کړی دی چي خدای ؒ د شهداء د بدر په باره کي ثوابونه د دوی بیان کړه نو هغو کسانو چي په بدر کي نه وه حاضر سوي داسي وویل لئن لقینا بعده قتالاً لنفرغن فیه وسعنا (که په بل قتال سره مونږ مخامخ سوو مونږ به خپل طاقت پکښي وښندو، دوهم کال چي د احد غزاء راغله دوی شکست وکړی، نو خدای عزوجل دوی ته پیغور ورکړی یا ایها الذین لم تقولون ما لا تفعلون، والله اعلم.

كَبُرَ مَقْتًا عِنْدَ اللَّهِ أَنْ تَقُولُوا مَا لَا تَفْعَلُونَ ﴿۳﴾

المقت اشد الغضب او مقتا منصوب دی علی التمییز من نسبة کبر الی فاعله وهو ان تقولوا، په دې کي دلیل پر دې دی چي د دوی دغه قول مقت دی خالص کبیر عند الله الذي یحقر دونه کل عظیم او په دې کي مبالغه په منع کي ان یقولوا کذبًا ما لا یفعلوه.

**درویش وایي:** چي حسین الکاشفي ؒ په تفسیر حسیني کي چي یو قدیم تفسیر دی په فارسي ژباړه داسی ویلي دي: ونزد بعض علماء این ایت عامست هر که سخن گوید ونکند درین عتاب الهی داخل است ویا ان علماء را نیز شامل است

كه خلق بعمل خير فرمايند وخود ترك ان خير را مى كنند، چنانچه شاعر ميگويد:

واعظان كه اين جلوه درمنبر و محراب ميكنند
چون بخلوت ميروند آن كار ديگران ميكنند

او سعدي شيرازي قدس سره وايي:

از من بگوی عالم تفسير گوی را .... گردر عمل نكوشي نادان مفسري
بار درخت علم ندانم بجز عمل .... باعلم اگر عمل نكني شاخ بی بری

إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الَّذِينَ يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِهِ صَفًّا كَأَنَّهُم بُنْيَانٌ مَّرْصُوصٌ ④

صفًا مصدر دی په معنی د مصطفين حال دی له فاعل څخه د يقاتلون يا حمل يې مبالغة دی مثل زيد عدل.

**پوه سه**: چي رص اتصال دی د بعض د بنا په بعض پوري او ښه يې سره محكمه كوي لكه بنايان چي يو دېوال وهي خښتي يو په بلي دننه كوي نه دېوال كږيږي نه نړيږي هر څومره چي يې پورته كوي بخلاف چي خښته پر خښته دی لكه بناء محكمه يعني يو د بل سره چي قرار نه كوي چي به منځ كي يې چاك پيدا سي.

وَإِذْ قَالَ مُوسَىٰ لِقَوْمِهِ يَا قَوْمِ لِمَ تُؤْذُونَنِي

او (ياد كړه) كله چي موسیٰ خپل قوم ته وويل (چي بني اسرائيل وه) ای قومه ولي تاسي ماته ازار رسوئ په نافرمانی سره زما له امر څخه او ناحقه بهتان راباندي واياست چي موسی چوره دی، دوی دا بهتان هغه وخت پر موسیٰ وواية چي دی به د قوم سره يو ځای لځ نه لمبېدی، او دوی به په بېحايي لځ پځ سره لمبېدل، نو دوی وويل چي موسی چي زموږ سره لځ نه لمبېږي يا ادرة لري يعني چوره دی يعني خايه يې پړسېدلي دي يا پيس دی.

وَقَد تَّعْلَمُونَ أَنِّي رَسُولُ اللَّهِ إِلَيْكُمْ

او تاسي علم لری چي زه رسول د خدای يم وتاسي ته چي ما راتگ كړی دی بالمعزات كاليد البيضاء والعصاء، او تاسي ته ما نجات دركړی له فرعون طاغي څخه چي يسومونكم سوء العذاب يذبحون ابنائكم ويستحيون نسائكم وجاوزت بكم البحر، والعلم بالنبوة يدعوكم الى التعظيم ومنع الايذاء.

فَلَمَّا زَاغُوٓا أَزَاغَ اللّٰهُ قُلُوبَهُمْ ۚ وَاللّٰهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْفٰسِقِينَ ﴿٥﴾

نو كله چي دوى عدول وكړى له حق څخه او د موسى ؑ له ايذاء څخه منع نه سوه، نو خداى ؑ كاږه كړه د دوى زړونه له حق څخه الى الميل الى العصيان جزاء لهم بما كانوا يكسبون، او خداى هدايت نه كوي (اى هداية موصلة الى المطلوب) و فاسق قوم ته چي خارجين وي له حق څخه و باطل ته او له طاعت څخه و عصيان ته.

**درويش وايي:** چي په نقل كي د قصې د موسى ؑ او دده د قوم تسلي ده و عليه الصلوة والسلام ته چي ستا قوم اهل مكه هم ستا سره ورته كارونه كوي، والعاقبة للمتقين.

وَإِذْ قَالَ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ يٰبَنِيٓ إِسْرٰٓءِيلَ إِنِّي رَسُولُ اللّٰهِ إِلَيْكُمْ

او (ياد كړه) كله چي وويل عيسى ابن مريم اى بني اسرائيلو زه د خداى ؑ له خوا رسول سوى يم تاسي ته.

**فائده:** عيسى ؑ بني اسرائيلو ته داسي نه وويل يا قوم لكه موسى ؑ چي ورته وويل لانه لا نسب لهم فيهم يعني عيسى ؑ خو له قوم څخه د بني اسرئيلو نه ؤ.

مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيَّ مِنَ التَّوْرٰىةِ

تصديق كوم د هغه كتاب چي تر ما د مخه نازل سوى دى چي هغه تورات كتاب د موسى ؑ دى.

يَدَيَّ مِنَ التَّوْرٰىةِ وَمُبَشِّرًا بِرَسُولٍ يَأْتِي مِنْ بَعْدِي اسْمُهُ أَحْمَدُ

او زه تاسي ته زيرى كوم د رسول چي تر ما وروسته به تاسي ته راځي چي نوم به يې احمد ﷺ وي.

**فائده:** احمد نوم د عليه الصلوة والسلام دى په كتب متقدمه ؤ كي چي مشتق له حمد څخه دى پر صيغه د اسم تفضيل والمعنى ډېر ويونكى د حمد تر نورو انبياء ؑ كه څه هم ټوله حمد ويونكي د خداى ؑ دي لكن احمد اكثر حمداً تر نورو لكه محمد پر صيغه د اسم مفعول چي نوم د عليه الصلوة والسلام دى اى محمود، انبياء ؑ څه هم ټوله محمود دي لكن رسول الله ﷺ اكثر محمودية دى تر نورو كما يدل عليه باب التفعيل چي لفظ د محمد څني مشتق دى لان من خواص باب التفعيل الدلالة على التكثير في المصدر المبني للمفعول اى المحمودية.

فَلَمَّا جَآءَهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ قَالُوْا هٰذَا سِحْرٌ مُّبِيْنٌ ﴿٦﴾

كله چي راتگ وكړي هغه (بعض مفسرين وايي چي ضمير راجع دى و عيسىؑ ته بعض وايي راجع دى و احمد (ﷺ) ته) البينات اى المعجزات الظاهرة، كه ضمير عيسىؑ ته راجع سي نو مراد له بيناتو څخه ابرأ الاكمه (مور زاده ړوند) واحياء الموتى والابرص، او كه ضمير احمد ته راجع سي نو قرآن كريم دده لويه معجزه ده چي كر الازمان ومر الدهور به باقي وي، كريمه: ان كنتم في ريب مما نزلنا على عبدنا (اى محمد ﷺ) فأتوا بمثله الى اخير الآية ثم اكد عدم الاتيان بقوله تعالى ولا يأتون بمثله وان كان بعضكم لبعض ظهيرًا، وقد كان كذالك الى يومنا هذا وشق القمر وغير ذالك مما لايخفى "قالوا هذا سحر مبين" وويل هغو (يعني كفار بني اسرائيل ان كان الضمير راجعًا الى عيسىؑ او كفار قريش وغيرهم ان كان الضمير راجعًا الى احمد ﷺ) دا ښكاره جادو او سحر دى، حمزهؒ يې داسى وايي (ساحر مبين) نو پر دي تقدير اشاره په هذا سره و عيسىؑ او احمد ته ده عليهما الصلوة والسلام.

وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ وَهُوَ يُدْعٰٓى اِلَى الْاِسْلَامِ ؕ

څوک دى لوى ظالم (والاستفهام للانكار اى لا احد اظلم) يعني بنسبة الشريک اليه تعالى في العبادة ككفار قريش او نسبة الولد اليه تعالى يعني عيسى ابن الله او قالوا ما انزل الله من شيئ لكه كفار د يهودانو چي په وخت كي د غضب وويل او يهودانو به ويل شريعة موسىؑ مؤبدة الى يوم القيامة الى غير ذالک من خرافات بني اسرائيل (وهو يدعى الى الاسلام) الضمير راجع ممن افترى آه، ته او دغه من اظلم را بلل كيږي و اسلام ته، دا جمله حال ده له فاعل څخه د افترى، يعني بلنه و اسلام ته چي خير د دنيا او آخرت پکښي سته دوى يې بايد اجابت كړى واى لكن دوى يعني كفارو د يهودانو او د نصارى ؤ په ځاى كي د اجابت افترى على الله مختاره كړه او تكذيب د رسولانو لكه عيسى او احمد عليهما السلام مختاره كړى او يا د ټولو رسولانو لان الانبياء عليهم السلام متفقين في الدعوة الى توحيد الله عزوجل وعدم الولد له تعالى وغير ذالک من العقائد الحقة، البته په فروع كي فرق سره لري.

وَاللّٰهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ ۝۷

او خدای پاک هدایت نه کوي هغه قوم ته چي په علم ازلي کي ظالمان يعني کافران وي، نو خدای دوی ته د رشد او هدایت يعني امر تکويني نه ور ښيي لان المقبول عند الله هو الايمان الاختياري۔

يُرِيْدُوْنَ لِيُطْفِـُٔوْا نُوْرَ اللّٰهِ بِاَفْوَاهِهِمْ ؕ وَاللّٰهُ مُتِمُّ نُوْرِهٖ وَلَوْ كَرِهَ الْكٰفِرُوْنَ ۝۸

دوی اراده لري (دا جمله حال ده له قوم ظالمين څخه) چي مړ کړي نور او روښنايي د الله ای دينه الاسلام په خپلو خولو سره يعني په اقول کاذبه وُ سره چي د دوی خيال دا دی چي مونږ به په خپلو افتراوُ نور د اسلام له منځه محوه کړو لکن هيهات، ددې مثال داسي دی لکه يو سړی چي پر لمر يا سپوږمۍ پوه کړي چي نور يې زائل کړي۔

**پوه سه:** چي کلمه د لام لپاره د بيان د علت ده او مفعول به د يريدون محذوف دی، والتقدير يريدون الافتراء (هذا هو المفعول المحذوف د يريدون)

هُوَ الَّذِيْٓ اَرْسَلَ رَسُوْلَهٗ بِالْهُدٰى وَدِيْنِ الْحَقِّ لِيُظْهِرَهٗ عَلَى الدِّيْنِ كُلِّهٖ

هغه داسي ذات دی چي استولی يې دی خپل رسول يعني محمدا ﷺ په هدايت سره (ای بما يهتدي به الحق چي قرآن دی يا معجزات باهره دي) او په حق دين سره (يعني بالملة الحنيفية المائلة من الباطل الى الحق چي (السهلة) چي اسانه دی نسبت و نورو اديانو ته (البيضاء) چي روښانه دی خفيها کجلي غيرها، (ليظهره) چي ښاهره يې وګرځوي بالحجة او السيف.

**پوه سه:** چي دين اسم جنس دی څکه يې تاکيد په ګله سره وکړی ای على الاديان کلها.

**درويش وايي:** چي دا وعده خدای پوره کړې ده حيث قال: اذا جاء دين الاسلام لم يبق دين من الاديان الا وهو مقهور بدين الاسلام.

وَلَوْ كَرِهَ الْمُشْرِكُوْنَ ۝۹

که څه هم دا د مشرکانو نه دی خوښ لانه نفس التوحيد وابطال الشرک چي د دوی مسلک ابا عن جد.

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا هَلْ أَدُلُّكُمْ عَلَىٰ تِجَارَةٍ تُنجِيكُم مِّنْ عَذَابٍ أَلِيمٍ ﴿١٠﴾

اې هغه کسانو چي ايمان يې راوړى دى آيا دلالت او ښوونه زه ونه کړم تاسي ته پر يو تجارت (اطلاق د تجارت پر ما سيجئ مجاز دى) چي تاسي ته نجات درکړي (په ورځ د قيامت) له عذاب درد ورکونکي څخه اى النار، ابن ابى حاتم له سعيد بن جبير" څخه نقل کړى دى چي دا ايت چي نازل سو قال المسلمون لو علمنا هذه التجارة موږ په هغه تجارت کي خپل انفس قربان کړي واى فنزل قوله تعالى.

تُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ

چي ايمان به راوړئ پر خداى او پر رسول د خداي چي اولى او تر ټولو عظيمه سرمايه د تجارت ده چي په دمخه تجارت کي ذکر سوه.

وَتُجَاهِدُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ بِأَمْوَالِكُمْ وَأَنفُسِكُمْ

او جهاد به کوئ د کافرانو سره په لار کي د خداى (لا لغرض الغنيمة وغيرها من الاغراض) په خپلو مالو او ځانو سره يعني په سر ښندنه سره او د وينې په تويولو سره.

**پوښتنه:** دې ته يې ولي تجارت وواېه؟

**ځواب:** ما دمخه اشاره ورته وکړه چي دا اطلاق مجاز دى چي تفصيل د هغه دا دى چي لکه په تجارت کي چي مبادلة المال بالمال ده دلته هم لويه مبادلة فى العوضين ده چي مبادلة الاموال والانفس ده وهذا هو الثمن بنعيم الاخرة ورضوان الله چي دا گويا اعلى وانفس مبيع ده وقد ربح المؤمنون في هذه التجارة ربحًا عظيمًا. او دغه رنگه مبادله د عقائد باطله وُ چي ثمن قليل او ذليل دى بالعلوم الحقة وفيه ايضًا مرابحة عظيمة صريحة، ولهذا قال الصحابة رضوان الله تعالى عليهم اجمعين ربح البيع لانقيل ولا نستقيل وفيه اشعار بمدح الصحابة الكرام ﷺ بانهم معتادون بذالک.

**فائده:** عبارت د آيت اخبار دى لکن په معنى کي مراد امر دى بذالک فافهم، حافظ شيرازي" وايي:

فدائی دوست نکردم عمر ومال دريغ.... که کار عشق زما اين قدر نمی آيد

ذٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿١١﴾

دغه (اى الجمع بين الايمان و المجاهدة بالاموال والانفس) خير دى ستاسي لپاره (من الاهواء والانفس والاموال) كه تاسي پوهيږئ په خبل نفع او ضرر.

**پوښتنه:** كلمه د ان شرطيه ده، جزاء يې څه ده؟

**ځواب:** جزاء يې له ما قبل څخه فهميږي اى فأتوا به ولا تتركوه.

يَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ وَيُدْخِلْكُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ

خداى به وبخښي تاسي ته ګنهونه ستاسي او داخل به كړي تاسي و جنتو ته چې بهيږي لاندې تر هغو ويالې.

**پوه سه:** چي يغفر مجزوم دى جواب د امر مفهوم دى من قوله تؤمنون بالله الآية كمامر انه خبر بمعنى الامر (ويدخلكم آه) عطف على قوله يغفرلكم، او دا ويالې چي د جنت تر درختو لاندې به بهيږي څلور به وې يعني اوبه، شيدې، عسل او شراب، لا كخمر الدنيا لان خمر الجنة لا غول فيها ولا هم عنها ينزفون كما جاء في موضع اخر من القرآن العزيز.

وَمَسَاكِنَ طَيِّبَةً فِي جَنَّاتِ عَدْنٍ

او ځايونه د اوسېدو به پاك او صاف وي من الادناس (هذا من عطف الجزء على الكل)

**پوه سه:** چي عدن استقرار او ثبات ته وايي، قال العرب عدن بمكان كذا اى استقر فيه ومنه المعدن المستقر للجوهر.

**درويش وايي:** چي په دې معنى ټوله جنتونه جنات عدن دي، لكن جنت عدن معنى علمي هم لري يعني چي د يو خاص جنت نوم دى كما قال القرطبي في تفسيره قيل: الجنات سبع (۱) دار الجلال (۲) دار السلام (۳) دار الخلد (۴) جنت عدن (۵) جنت المأوى (۶) جنت نعيم (۷) جنت الفردوس، كذا روى عن ابن عباس رضي الله عنهما وروى عنه ايضاً چي جنتونه اته دي بزيادة دار القرار على السبع المذكورة.

**درويش وايي:** چي اته والى د جنتو هو الاشهر على السنة العوام والخواص، والله اعلم او فقيه ابو الليث السمرقندي وايي چي جنتونه څلور دي فقط.

ذٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ ﴿۱۲﴾

دغه (ای المغفرة وادخال الجنة) کامیابي ده لویه چي نسبت ودې کامیابی ته همه و همه د دنیا کامیابي حقیره او ذلیله ده، ګویا اطلاق د کامیابی پر هغو مجاز دی فافهم.

وَأُخْرَىٰ تُحِبُّونَهَا ۖ نَصْرٌ مِّنَ اللَّهِ وَفَتْحٌ قَرِيبٌ ۗ

او بل نعمت چي ستاسي خوښ دی کومک دی د خدای ؒ له خوا پر کافرانو او فتح ده نژدې، الاشهر انه فتح مکة یا فتح د خیبر، وقال عطاء ؒ فتح د فارس او روم ده که څه هم دا دوې فتحي په زمانه کي د حیوة د رسول اللهﷺ نه دي واقع سوي لکن بشارت یې من الاخبار بالغیب دی، وقد وقع ذالک فیما یستقبل ففیه معجزة ظاهرة لصدق رسول اللهﷺ في دعوی الرسالة.

**پوه سه:** چي مفسرین وایي چي اخری مبتداء ده، مظهري وایي چي خبر یې محذوف دی ای ذالکم نعمة عاجلة، او یا اخری منصوب محلاً دی عامل یې محذوف دی ای یعطیکم نعمة اخری (تحبونها) صفت دی د اخری.

**فائده:** په (تحبونها) سره اشاره ودې ته ده چي د خلکو طبعًا عاجل پر آجل خوښ وي، دا بیان دی د نعمت اخری.

وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِينَ ﴿۱۳﴾

او زیری وکړه یا ایها الرسول و مؤمنانو ته په ما وعدهم الله سره في الدنیا والاخرة (وبشر) عطف دی پر قل چي مقدر دی دمخه تر یا ایها الذین آمنوا او التقدیر قل یا ایها الذین آمنوا الخ.

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُونُوا أَنصَارَ اللَّهِ كَمَا قَالَ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ لِلْحَوَارِيِّينَ

ای هغه کسانو چي ایمان یې راوړی دی وګرځئ کومک کونکي د دین د خدای (بحذف المضاف لانه تعالی لایحتاج الی النصرة) لکه چي وویل عیسی بن مریم و حورایینو ته.

**فائده:** دا تشبیه په اعتبار د معنی ده، والمعنی قل یا محمد (ﷺ) یا ایها الذین کونوا انصار الله کما قال عیسی بن مریم؛ او یا معنی داده کونوا انصار الله

كما قال الحواريون في جواب عيسى؏، حيث قال.

مَنْ اَنْصَارِيْٓ اِلَى اللّٰهِ ۭ قَالَ الْحَوَارِيُّوْنَ نَحْنُ اَنْصَارُ اللّٰهِ

څوک دي انصار (اى متوجهًا الى نصر دينه) وويل حواريينو (هم اول من آمن به چي دوولس نفره وه) موږ انصار د دين د خدایؒ يو.

**پوښتنه**: په قول کي د عيسى؏ انصاري راغلی يا اضافت يې و ځان ته وکړی او په جواب کي حواريون انصار الله وويل فكيف التوفيق؟

**ځواب**: روح المعاني يې داسي تطبيق کړی دی چي په قول کي د انصاري ترجمه يې داسي کړې ده من جندي متوجهًا الى نصرة الله (څوک دی زما لښکر چي متوجه و نصرت ته د خدایؒ وي مطابق قولهم نحن انصار الله) او بعض مفسرين وايي چي نسبت و عيسى؏ ته په من انصاري کي اضافت دی د احد المتشارکين يعني په دين کي و هغه بل متشارک ته، او اضافت و خدایؒ ته په انصار الله کي اضافت د احد المتشارکين يعني په دين کي و هغه بل متشارک ته، او اضافت و خدایؒ ته په انصار الله کي اضافة الفاعل الى المفعول لان المراد به انصار دينه فتدبر هداک الله.

**فائده**: علماء د تاريخ قديم وايي حواريين چي بولي مشتق دی له حور څخه وهو البياض الخالص وهم اول من امن بعيسى؏، مقاتلؒ وايي چي عيسى؏ ته خدای وويل اذا دخلت القرينة فائت النهر الذي عليه القصارون (دوبيان چي د خلګو کالي ور مينځي او سپينوي يې يعني په مزدورۍ) نو ته سوال د نصرت ځني وکړه نو عيسى؏ هم دغسي وکړه، وقال من انصاري الى الله فقالوا نحن ننصرک فصدقوه ونصروه، حسين کاشفيؒ وايي و في الواقع نصرت کردند دين عيسى را بعد از رفع او به آسمان و خلق را بخدا دعوت نمودند آه، نو بعض علماء وايي چي حواريين يې په سبب د صفا د عقائدو د دوی بلل عن التردد، وقيل يظهرون نفوس بافادتهم الدين والعلم عن الشرک الجلي والخفي (اى الرياء)

**درويش وايي**: چي وړاندي په سورة آل عمران کي تحقيق د بيان د دوی تېر سوی دی.

فَاٰمَنَتْ طَّآئِفَةٌ مِّنْۢ بَنِیْٓ اِسْرَآءِیْلَ وَكَفَرَتْ طَّآئِفَةٌ ۚ

نو ايمان راوړی يوې ډلې د بني اسرائيلو په تعليم د حواريونو، او کافران سوه د عيسى په دين سره يوه ډله د بني اسرائيلو.

فَاَیَّدْنَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا عَلٰی عَدُوِّهِمْ فَاَصْبَحُوْا ظٰهِرِیْنَ ﴿۱۴﴾

نو موږ تائيد وکړی د الذين آمنوا يعني بالحجة او بالحرب (على عدوهم) پر دښمن د دوی چې کافران (يعني وروسته تر رفع د عيسى الى السماء) نو دوی وګرځېدل (په تائيد او نصرت د خدای غالبه پر کافرانو) البغوي وايي چې ابن عباس وايي چې عيسى چې اسمانو ته پورته کړه سو، قوم يې درې ډلې وګرځېدل، يوې ويل چې عيسى خدای و اسمانو ته ولاړی، بلې ويل چې عيسى د خدای زوی و بيرته خدای ځان ته وبلی، او بلې ډلې ويل چې کان عبد الله ورسوله فرفعه الى السماء لحكمة، ددې ډلو د هرې يوې تابعان سوه په عقيده کې، نو قتل و قتال د دوی تر منځ جاري و او هغه دوې ډلې چې کافران وه پر مؤمنانو غالب سوه په جنګو کې حتى بعث الله محمدا ﷺ فظهرت الفرقة المؤمنة على الطائفتين الكافرتين وذالک معنى قوله تعالى فايدنا الذين آمنوا الآية والله اعلم بالصواب واليه المرجع والمآب.

**درويش وايي**: چې د سورة الصف له تفسير څخه په توفيق د خدای عزوجل پر يوه نيمه بجه د ماپښين په خپل حجره کې د ربيع الثاني پر شپاړس تاريخ تخمينًا فارغ سوم، اوس په دغه تاريخ شروع کوم ان شاء الله تعالى په تفسير د سورة الجمعة خدای ﷻ دې توفيق راکړي او راته آسانه دې کړي مع الصحة والسلامة واخلاص النية والقبول في جنابک لهذه الخدمة.

سورة الجمعة مدنية وهي بسم الله الرحمن الرحيم احدى عشرة اية وفيها ركوعان

**درويش وايي:** چي مدني والى ددې سورة الجمعة مروي دى له ابن عباس و ابن الزبير و عكرمة ﷺ و الحسن و مجاهد و قتادة ﷺ واليه ذهب جمهور المفسرين والقراء او ابن يسار وايي دا سورة مكي دى وحكى ذالک عن ابن عباس ومجاهد والاول هو الصحيح لما في صحيح البخاري وغيره عن ابي هريرة ﷺ چي موږ ناست وُ د رسول الله ﷺ سره حين انزلت سورة الجمعة، او د ابو هريرة ﷺ اسلام په مدينه كي دى بمدة بالاتفاق، او دغه رنګ دا ايت چي ورسو ته به راسي قل يا ايها الذين هادوا ان زعمتم آه حتمًا په مدينه كي وُ، ولي چي په مكه مكرمه كي مخاطب يهود ان كله وه بالاتفاق.

يُسَبِّحُ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ الْمَلِكِ الْقُدُّوْسِ الْعَزِيْزِ الْحَكِيْمِ ①

تسبيح يعني پاكي وايي خداى لره (د تولو ما لا يليق بجانبه تعالى) هغه شيان چي په اسمانو كي دي من ذوي العقول كالملائكة او يا غير ذوي العقول وي كالشمس والقمر والكواكب او هغه شيان چي په مځكه كي دي من ذوى العقول كالانس والجن يا غير ذوى العقول كالحيوانات والاشجار والنباتات والاحجار والجبال وغيرها لكن علماء د ظاهر وايي چي تسبيح د غير ذوى العقول كه په مځكه كي وي او كه په اسمانو كي وي تسبيح حالي ده يعني د دوى حال چي امكان او حدوث دى پر دې دلالت كوي چي دوى لره خالق سته، قادر مطلق سته چي پر ما شائه باندي قادر دى او د امكان او حدوث او عجز او له شريک څخه مبرأ دى الى غير ذالک من صفات الجمال ومن الصفات الجلال وهذا هو السبيح الحال لكن صحيح داده چي مراد تسبيح قولي ده، واي چي د رب جل وعلا سره هر ممكن سر د حيات لري ويدل عليه قوله تعالى و ان من شيئ الا يسبح بحمده ولكن لا تفقهون تسبيح هم، وجه الدلالة ان الستبيح الحالي يعلمه كل عالم و عاقل، او له ابن مسعود ﷺ څخه روايت دى چي يوه ورځ موږ د رسول الله ﷺ سره پر كاسه ناست وُ موږ او ريدل تسبيح د كاسې او په صحيح حديث كي راغلي دي چي رسول الله ﷺ وويل چي زه

هغه درخته اوس هم پېژنم چي زه به غار حرا ته تلم دې به راته ويل السلام عليكم يا نبي الله، او دغه رنګه ابو جهل يو څو شيګي د عليه الصلوة والسلام د امتحان لپاره په موټه کي نيولي وې او عليه الصلوة والسلام ته يې وويل چي دا زما په لاس کي څه شی دي؟ عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي ښوونه خو اسانه ده که ستا د لاس شيانو کلمه وويل تې وايي؟ ابو جهل وويل چي دا خو به اعجب وي، نو هغه ؤ چي شيګو د ابو جهل په لاس کي لآ اله الا الله محمد رسول الله وويل، ابو جهل شيګي وغورځولې او ويې ويل چي پر دې دي هم سحر وکړی.

**درويش وايي**: وامثال ذالک كثيرة يطول بذكرها على الاستيعاب الكتاب وفيما ذكرناه كفاية لاولى الالباب فثبت ان المراد بالتسبيح في الآية التسبيح القولى.

هُوَ الَّذِي بَعَثَ فِي الْأُمِّيِّينَ رَسُولًا مِّنْهُمْ

چي مراد ځني عرب دي، ولي چي اکثره د عربو لا يكتبون ولا يقرئون، منسوب الى الام يعني لکه مور چي زېږولی دی پر هغه حال دی يعني کتابت او قرائت يې نه دی زده (رسولاً منهم) اى من جملتهم اميًا مثلهم.

**درويش وايي**: چي اميت د عليه الصلوة والسلام معجزه ده چي پر ده خدای ﷻ سره له اميته داسي کتاب راواستاوه چي فصحاء د عدنان او بلغاء د قحطان يې په اتيان د مثل عاجزه پاته سوه، کريمه: وان كنتم في ريب مما نزلنا على عبدنا فأتوا بمثله الى اخير الآية، نو دا معجزه د قرآن كريم به باقي وي كر الازمان ومر الدهور.

يَتْلُوا عَلَيْهِمْ آيَاتِهِ وَيُزَكِّيهِمْ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ

تلاوت کوي پر دوی باندي آياتونه (مع كونه اميًا چي چا دده قرائت او تعلم نه ؤ ليدلی) او پاکوي (من دنس الشرک والخبائث) يعني له خيرو څخه د شرک او له نورو افعال خبيثه ؤ، او ور ښيي دوی ته کتاب اى القرآن المعجز چي که ټول له انس او جن جمع سي پر دې چي اتيان په مثل د قرآن وکړي لا يأتون بمثله ولو كان بعضهم لبعض ظهيرًا (يعني يو د بله کومک هم سره وکړي په اتيان د مثل د قرآن) والحكمة يعني الشريعة المحكمة الموافقة لشرائع الانبياء في اصول الدين چي

هغه په ټولو کتابو کي د انبياء علیهم السلام مثل سوی شريعت ؤ نو انکار له شريعت څخه د ده ﷺ انکار دی له شرائع مقدمه ؤ څخه چي په هغو کي يو شريعت د ابراهيم ﷺ دی او سره ددې چي مشرکان وايي چي موږ پر شريعت د ابراهيم ؑ يو بلکې يهودان او نصاری هم ورته دعوې کوي چي خدای ﷻ په دغه ايت سره چي لکن پکښې مذکور دی رد د ټولو دغو دعواوو رد کړی دی ما کان ابراهيم يهوديًا ولا نصرانيًا ولکن کان حنيفًا مسلمًا وما کان من المشرکين الآية.

وَإِنْ كَانُوا مِنْ قَبْلُ لَفِي ضَلَالٍ مُبِينٍ ۝

په تحقيق دوی وه د مخه تر بعثت د عليه الصلوة والسلام په ښکاره ګمراهی کي وه، ان مخفف د مثل څخه دی اسم يې محذوف دی يعني انهم، د کانوا څخه مراد عرب دي (لفي ضلال مبين) خبر دی د ان يعني دوی په ښکاره ګمراهی کي وه وهو عبادة الاصنام التي جمادات لا تضر لمن لا يعبدوهم ولا تنفع لمن يعبدونهم ويأكلون الجيف (مردار شيان) ولي چي يو حيوان به حتف انفه مردار سو دوی به ويل چي دا خدای وژلی دی، د هغو حيواناتو تر غوښو چي دوی به ذبح کړه هغي مرداري غوښي ته يې ډېر اعتبار ورکاوه.

وَآخَرِينَ مِنْهُمْ

عطف دی پر ضمير منصوب په يعلمهم کي ای ويعلم اخرين (منهم) ای من جنس الاولين چي د اولينو پر مسلک به وه ويدينون بدينهم او رفتار به يې د اولينو پر لار ؤ، قال عکرمه ومقاتل التابعون، وقال ابن زيد هم جميع من دخل في الاسلام الی يوم القيامة، وقال عمرو بن سعيد وليث عن مجاهد هم العجم الحديث ابی هريرة ﷺ کنا جلوسًا عند النبي ﷺ اذ نزلت سورة الجمعة فلما قرء وآخرين لم يلحقوا بهم قال رجل من هؤلاء (ای الذين لم يلحقوا بهم؟) رسول الله ﷺ جواب ورنه کړی حتی دوه يا درې واره هغه سړي پوښتنه څني وکړه او په موږ کي سلمان فارسي هم ناست ؤ، قال ابو هريرة ﷺ فوضع النبي ﷺ يده علی سلمان ثم قال لو کان الايمان عند الثريا (يعني پيروني) اتا له رجال من هؤلاء وفي رواية رجل من هؤلاء ای اهل فارس حتی يتناوله.

**درویش وايي:** چي اهل العلم مع قطع النظر عن التعصب په يوه خوله وايي چي د رجل څخه مراد ابو حنيفة النعمان رحمه الله دی، ولي په اهل فارس کي په علم، اجتهاد او تقوی کي مثل د ابو حنيفه رحمه الله بل څوک نه دی پيدا سوی او دی مبارک له تابعينو څخه دی پر صحيح روايت کما في رد المحتار او له رجال څخه دي صاحبين دده ابو يوسف رح او محمد رح او په خير القرون کي داخل دي. غير مقلدين يا سلفيان يا اهل حديث چي د ابو حنيفه رحمه الله په باره کي څه د بې شرمۍ خبري کوي هغه له کمزورۍ څخه د علم د هغو دي، ولي چي په پوره تاريخ د امام الائمة ابو حنيفة رحمه الله نه دي خبر. ابن المبارک رح چي لوړ محدث دی په يوه قصيده کي د امام اعظم رحمه الله په باره کي په يو دوو خوږو بيتو کي داسي وايي:

لقد زان البلاد ومن عليها ..... امام المسلمين ابو حنيفة

فما بالمشرقين له نظير .... ولا بالمغربين ولا بكوفة

که څوک پوره مستند تاريخ د امام ابو حنيفه رحمه الله غواړي نو شرح د فقه الاکبر چي تصنيف د عاصي دی په سالم دماغ دې مطالعه کړي، ومن الله التوفيق.

**درویش وايي:** چي اجماع کړې ده فقهاؤ چي تقليد د يوه مذهب من المذاهب اربعه څخه واجب دی او مخالفت د ټولو مذاهبو باطل بالاجماع دی.

**حکايت:** د کوټي د سلفيانو يو جماعت د ملايانو د دوی څو کاله دمخه ماته راغلی ؤ لپاره ددې چي د تقليد په باره کي زما سره مناظره بحث او مناظره وکړي وخت د ماپښين د لمانځه ؤ زه چي د لمانځه لپاره له کور څخه مسجد ته ورتلم نو د جامع مسجد ومخ ته يو موټر ولاړ ؤ پر نوشته وه جامعه سلفيه، خير وروسته تر لمانځه چي مو روغبړ سره وکړی نو دوی راته وويل چي مولوي صاحب چايي موږ ته راکوې؟ فقير ورته وويل هو! نو پټک ته سره راغلو وروسته تر چايو ما وار پر دمخه کړی يو څو کسه طالبان هم راغله، نو فقير دوی ته وويل چي تاسي خو به سلفيان ياست؟ دوی وويل هو! ما ورته وويل چي سلفيان څه صيغه ده دوی راته وويل چي ته د صرف او نحو خبري پرېږده علمي خبري به وکړو ما ورته وويل چي له دغه ځايه څخه علمي خبرو ته ځان رسوو، خو دوی دومره بې علمه خلک وه چي دا يې نه سوه ويلای چي جمع ده، ما ورته وويل چي دا به زه درونبيم چي جمع د سلفي ده دوی وويل هو، ما ورته وويل چي د سلفي څه معنا ده؟ دوی بيا وويل چي دا خبري پرېږده علمي خبري به وکړو، ما

ورته وویل چي علمي خبرو ته به ژر ورسېږو ان شاء الله، نو له دې جوابه هم دوی عاجزه پاته سوه، ما ورته وویل چي دا به هم زه درو ښیم چي په سلفي کي یا د نسبت ده یعني منسوب و سلف ته ده، بیا ما ورته وویل چي د سلف څه معنا ده خو دوی بیا وویل چي علمي خبري به و کړو، خیر بیا ما ورته وویل چي سلف جمع د سالف ده، د سالف څه معنا ده؟ خیر خو دوی بیا هغه د مخه خبره تکرار کړه، ما ورته وویل د سالف معنا ده متقدم شخص، ما ورته وویل چي له سلفو څخه ستاسي صحابه کرام ﷺ مراد دي؟ دوی وویل یا، ما ورته وویل تابعین مو مراد دي؟ دوی وویل یا، ما ورته وویل تبع تابعین مو مراد دي؟ دوی وویل یا. ما ورته وویل چي خیر القرون کما جاء في الحدیث الصحیح دغه دي، تاسي ګویا تبع د ما سوی د خیر القرون یاست یعني محمد بن عبد الوهاب النجدي او ابن تیمیه الحراني، دوی وویل هو، ما ورته وویل چي موږ د خیر القرون تابعان یو او تاسي د شر القرون تابعان یاست، نو زموږ او ستاسي تر منځ علمي فیصله وسوه چي موږ تر تاسي پر حق یو، نو دوی حیران سوه چي دا یې څرنګه فیصله زموږ زد و کړه، نو یې بحث قطع کړی، وروسته یې وویل چي موږ تا مېلمه کوو په جامعه سلفیه کي نوري خبري به هوري سره و کړو، ما ورته وویل چي زه یې وقوف نه یم چي ستاسي مهماني به قبلوم، ولي که زه درسم دو دی به را کړئ او بحث هم نسئ کولای بلبه ورځ به نشریات عامه لکه اخبارات، جرائد یا راډیوګانو کي به دا شائع کړئ چي مولوي عبید الله زموږ جامعه سلفیه ته راغلی ؤ زموږ د مدرسې ډېر تحسین یې و کړی او زموږ تعلیمات یې ډېر خوښ کړه، نو دا ؤ بیان د حال د سلفیانو د کوتي.

لَمَّا يَلْحَقُوا بِهِمْ ۚ وَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴿٣﴾

چي د دوی زمانه یې نه ده نیولې بلکي په زمانه کي وروسته دي (او بعض مفسرین وایي چي لم یلحقوا بهم في الفضل والثواب لان التابعین ومن بعدهم لا یدرکون فضل الصحابة ﷺ) او خدای غالب دی مانع د ماشاء یې څوک نسي مانع کېدلای او حکیم دی چي ده مختار کړی رسول کریم ﷺ من کافة البشر لتعلیم الناس الدین المبین.

ذَٰلِكَ فَضْلُ اللَّهِ يُؤْتِيهِ مَن يَشَاءُ ۚ وَاللَّهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيمِ ﴿٤﴾

دغه (ای بعثته وتعلیمه ﷺ وزکی الناس عن الضلالات) فضل دی د خدای ورکوي یې و هغه چا ته چي د ده خوښ وي یعني لیس اعطاء النبوة مربوط بکثرة

المال والجاه والجلال كما يزعمونه المشركين، او الله تعالى د لوى فضل خاوند دى چي د خداى ﷻ لوى فضل په مقابل كي هر نعمت حقير دى.

مَثَلُ الَّذِيْنَ حُمِّلُوا التَّوْرٰىةَ ثُمَّ لَمْ يَحْمِلُوْهَا كَمَثَلِ الْحِمَارِ يَحْمِلُ اَسْفَارًا

اى علموها وكلفوا العمل بما فيها (مثال د هغو كسانو چي دوى ته بنوول سوى دى تورات او دوى مكلف كړه سوي دي په عمل سره د ما في التورات، روح المعاني وايي چي تحميل په دې معني كي چي ذكر سول شائع دى يلحق بالحقيقة يعني كنه څه هم معنى لغوي د تحميل بار كردن ده لا العلم والتكليف فافهم، او مراد له دې څخه يهودان دي (لم يحملوها) يعني عمل يې نه دى په كړى چي په تورات كي د مكلف والي عملونه دي چي د هغو په جمله كي هغه آيات د تورات دي چي په باره كي د حقيت د رسالت د رسول كريم ﷺ دي چي دوى يا پټ كړي له عوام الناس څخه د يهودانو يا يې تغيير وركړى دى خوفًا على قطع الارزاق چي له عوامو څخه دوى تر لاسه كاوه او پر عوام اليهود باندي يې خپل رياست ساته.

(كمثل الحمار يحمل اسفارًا) لكه حال د خره چي پر ده باروي كتابونه د علم نو خر خو تكليف د بار د كتابو د علم برداشتوي لكن نفع نه ځني اخلي او په دې هم نه پوهيږي چي پر ما بار لركي دي او كه كتابوه د علم دي.

**فائده:** يحمل اسفارًا صفت د حمار دى.

**سوال:** حمار خو معرفه دى په الف ولام سره او جمله يحمل په حكم كي د نكره دى كما صرح به النحات؟

**ځواب:** الف لام د عهد ذهني دى چي حكم يې د نكره دى عند النحاة، ولي حمار معين خو مراد نه دى فيكون من قبيل قول الشاعر: ولقد امر على اللئيم يسبني.

**درويش وايي:** چي د هر عالم چي په علم خپل عمل نه كوي د غه يې حال دى، قال رسول الله ﷺ اللهم اني اعوذ بك من علم لا ينفع ... بيت:

تعلم يا فتى فالجهل عار .... ولا يرضى به الاحمار

بِئْسَ مَثَلُ الْقَوْمِ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ

بد دى حال او مثال د هغه كسانو چي تكذيب يې كوي دى چي قرآن عزيز دى مراد

لہ قوم څخہ یہودان دي چي دوی تکذیب د قرآن کړی دی بلکې تکذیب د آیاتو د تورات هم کړی دی چي په هغو آیاتو کي بیان د حقیت د رسالت د رسول اللہ ﷺ دی.

**فائده:** مخصوص بالذم یې محذوف دی و التقدیر بئس مثل القوم المکذبین مثلهم.

وَاللّٰهُ لَا یَهۡدِی الۡقَوۡمَ الظّٰلِمِیۡنَ ۝

او خدای هدایت نه کوي هغه قوم ته چي ظالمان وي و قت اختیار هم الظلم والدوام علیه وهم الیهود ایضًا، شیخ سعدي ؒ درباب علم بې عمل چه خوش گفته است:

علم چند انکہ بیشتر خوانی ..... چون عمل در تو نیست نادانی
نہ محقق بود نہ دانشمند ..... چارپایی برو کتاب چند
آن تهی مغز را چی علم و خبر ..... که برو هیز مست یا دفتر

کاشفي ؒ ابیات علم بی عمل گفته:

گفت ایزد یحمل اسفاره ..... باز باشد علم کان نه بود زهو
علمهای اهل دل حمال شان ..... علمهای اهل تن احمال شان
علم چون بر دل زند یاری بود ..... علم چون بر سر زند ماری بود

قُلۡ یٰۤاَیُّهَا الَّذِیۡنَ هَادُوۡۤا اِنۡ زَعَمۡتُمۡ اَنَّكُمۡ اَوۡلِیَآءُ لِلّٰهِ مِنۡ دُوۡنِ النَّاسِ

او ووایہ یا محمد (ﷺ) هغو کسانو ته چي په دین کي د یهودیت داخل دي، که ستاسي زعم وي (تعبیر په زعم سره و کړی چي معنا یې گمان دی سره ددې چي د دوی خو داغه یقین ؤ تنبیهًا علی فساده) لکه دوی چي به ویل نحن اولیاء الله واحبائه "من دون الناس" یعني من دون محمد ﷺ واصحابه ﷺ.

فَتَمَنَّوُا الۡمَوۡتَ اِنۡ كُنۡتُمۡ صٰدِقِیۡنَ ۝

نو خدای ؒ ته خواست و کړئ د خپلو ځانو د مرګ (حتی تنتقلوا من دار البلیة (ای الدنیا چي سرای د بلاؤ ده) الی دار الکرامة چي جنت دی لان الموت جسر (پل دی) یوصل الحبیب الی الحبیب) که چیري تاسي یاست صادقین في زعمکم ذالک فتمنوه شرط مستغني عن جوابه بما قبل یعني فتمنوا الموت.

**فائده:** خدای پاک امر کړی رسول خپل چي دوی ته دي داغه خبره و کړي لیظهر کذبهم، ولي چي دوی به ویل نحن ابناء الله واحبائه، او دا بې هم ویل چي لن یدخل

الجنة الا من كان هودًا، په صحيح حديث كي راغلي دي چي لما ظهر رسول اللهﷺ (اى هاجر الى المدينة) كتب اليهود المدينة الى يهود الخيبر (چي هورې د دوى احبار موجود وه) ان اتبعتم محمدًا اتبعناه وان خالفتمونه خالفناه، كه يې تاسي متابعت وكړى موږ يې هم متابعت كوو او كه يې تاسي مخالفت وكړى موږ يې هم مخالفت كوو. يهودانو د خيبر دوى ته داسي جواب نوشته كړى نحن ابناء خليل الرحمن ومنا عزيز ابن الله والانبياء فينا ولما كانت النبوة في العرب ونحن احق بها من محمد فلا سبيل الى اتباعه فنزلت قل يا ايها الذين هادوا آه.

وَلَا يَتَمَنَّوْنَهٗٓ اَبَدًا بِمَا قَدَّمَتْ اَيْدِيْهِمْ ؕ

او دوى يعني يهودان تمنى د مرګ نه كوي ابدًا په سبب د دې چي د مخه كړى لاسو د دوى (چونكه غالب كارونه په لاسو كېږي نو په دې سبب يې لاسونه ذكر كړه ورنه كفر خو د زړه كار دى) يعني دوى په دې پوهېږي چي موږ مستحق د نار كبرىٰ يو په سبب د كفر او معاصيو او تحريف د آياتو د قرآن الناطقة بنبوة محمد ﷺ فكيف يتمنون الموت چي دوى دي اورته ورسوي بلكې دوى احرص دي تر تاسو پر ژوند بلكې تر مشركينو هم احرص دي ولي مشركين جنت او دوږخ نه مني او يهودان خو يې مني حتى چي دوى به يو بل ته ويل عش انف سنة.

**فائده:** بعض علماء وايي چي دا مختص يعني عدم تمنى د مرګ خاص دى په هغو يهودانو كي چي په دې ايت كي مخاطب وه. لكن په صحيح حديث كي راغلي دي چي رسول اللهﷺ دوى ته وويل والله الذي نفسي بيده لايقولها احد منكم الا مات بريقه (چي په ستونو كي ناړي ودرېږي او موت به يې په خپلو ناړو سره وي) فلا يتمنه احد منهم. ولي د دوى خو يقين دى چي محمدﷺ رسول د خداى دى هر څه چي وايي هغه رشتيا وايي نو كه موږ تمنى د موت وكړو دستي پر موږ عذاب نازلېږي او په خپلو ناړو به مړو او عذاب ته د جهنم به داخلېږو.

**درويش وايي:** چي دا د عليه الصلوة والسلام معجزه وه چي دوى تمنى د موت نسواى كولاى لخوفهم من لحوق العذاب بهم كما قال عليه الصلوة والسلام.

وَاللّٰهُ عَلِيْمٌۢ بِالظّٰلِمِيْنَ ۝

خدای (ﷻ) خبر دی په ظالمانو سره.

**سوال:** ځای خو د ضمیر ؤ یعني بهم، نو د الظالمین په راوړلو کې څه حکمت الهي ؤ؟

**ځواب:** لاظهار کونهم ظالمین فیما قالوا وفعلوا، او بل حکمت دا دی چې نورو ظالمانو ته هم شامل سي.... بیت:

چه خوش گفت یکروز دارو فروش ....... شفا بایدت دوایی تلخ نوش

قُلْ اِنَّ الْمَوْتَ الَّذِيْ تَفِرُّوْنَ مِنْهُ فَاِنَّهٗ مُلٰقِيْكُمْ

ته ورته ووایه یهودانو ته چې هغه مرګ چې څني تښتئ ای تخافون اشد الخوف له دي سببه چې په خپلو اعمالو سیئهؤ به مو خدای پاک ونسي او تاسي پر تمنی د هغه مرګ دلاوري هم نسئ کولای،، نو هغه مرګ پر اجل موعود ستاسي خامخا ملاقي کېږي فائده نه کوي فرار ستاسي له مرګ څخه، الجملة الثانیة خبر لان.

**فائده:** مکرر راوړی خدای عزوجل کلمه د انّ لکمال التاکید نظر علی اصرارهم (ای دوامهم) علی الکفر والمعاصي الذي کانه هو الدلیل علی شدة کراهتهم الموت.

ثُمَّ تُرَدُّوْنَ اِلٰى عٰلِمِ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ فَيُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ۝

وروسته به تاسي رد کړه سئ و هغه خدای ته چې خبر دی په غیب سره یعني د خلکو څخه والا فلا غیب عن الله، او په شهادت سره یعني چې د خلکو په حضور کي تاسي ګنهونه کړي دي یعني پر پټو ګناهو ستاسي او پر ښکاره ګناهو ستاسي به جزاء اوفی درکړي، قال المولوي المعنوي جلال الدین الرومي" في المثنوي:

بس رجـال از نـقل عالم شادمان ...... وزبقایش شادمان این کودکان
چونکه آب خوش ندید آن مرغ کور ...... پـیش کـوثر نماید آب ستور

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا نُوْدِيَ لِلصَّلٰوةِ مِنْ يَّوْمِ الْجُمُعَةِ

ای هغه کسانو چا چي ایمان راوړی دی کله چي اواز (یعني اذان وسي) د لمانځه لپاره د جمعې په ورځ.

**پوه سه:** چي مراد له نداء څخه آذان اول دی، او کلمه د من په نېز د بعض مفسرينو په معنی د في ده يعني في يوم الجمعة كما في قوله تعالى اروني ما ذا خلقوا من الارض (اى في الارض)

**فائده:** د علماؤ اختلاف دی چي دا ولي ورځ د جمعې بولي، مع الاتفاق چي دا ورځ يې په جاهليت کي العروبة بلل چي معنی يې اليوم البين المعظم ده، بعض مفسرين وايي چي اول سړی چي ورځ د جمعې يې مسمی کړه كعب بن لوی وُ وهو اول من قال اما بعد، چي كعب بن لوی ته به جمع کېدل په دغه ورځ قريش نو ده به وعظ او تبليغ ورته کاوه او زېری به يې ورته کاوه په مبعث د رسول اللهﷺ چي دی زموږ له اولاد څخه دی، ويأمرهم باتباعه والايمان به او كعب بن لوی به بعض اشعار هم ويله چي يو بيت يې دادی:

يا ليتني شاهدًا نجواء دعوته ...... اذا قريش تبتغي الحق خذلانا

**فائده:** اولاد د اسماعيل عليه السلام تاريخ يې له بناء څخه د الكعبة الشريفة کاوه چي كعب بن لوی وفات سو تاريخ يې بدل کړی، او ورځ د وفات د كعب بن لوی حتی كان عام الفيل (چي تفصيل به يې په سورة الفيل کي راسي ان شاء الله العزيز) چي دغه عام الفيل ورځ د ولادت باسعادت د رسول اللهﷺ هم وه، بيا خلکو تاريخ و عام الفيل ته واړاوه الى آن هاجر رسول اللهﷺ الى المدينة چي تر اوسه پوري په قمري حساب سنه هجري بولي.

**تاريخ وايي:** چي په مابين کي د وفات د كعب بن لوی او د مبعث د رسول اللهﷺ پنځه سوه شپېته (۵۶۰) کاله وه، وقال فيه اى في يوم الجمعة خلق د آدم عليه السلام سوی دی كما روى احمد والنسائي وابن خزيمة وابن حبان عن سلمان الفارسي رضي الله عنه ان رسول اللهﷺ قال اتدرون ما يوم الجمعة (اى وجه تسمية هذا اليوم بالجمعة) قلت الله ورسوله اعلم حتى چي درې واره رسول اللهﷺ دا خبره وکړه، قال في الثالثة جمع فيه ابوكم (يعني آدم الى اخير الحديث) قال الحافظ ابن حجر رحمه الله وهذا اصح.

**درويش وايي:** چي په مناسبت د يوم الجمعة بيان او قصه د هجرت د نبي ﷺ او د ابو بکر رضي الله عنه په به ګډه سره واورو، تاريخ صحيح وايي چي رسول كريمﷺ د

دوشنبې په ورځ يا شپه زېږېدلی دی او د دوشنبې په ورځ وحې ورت راغلې دي او هم د دوشنبې په شپه له مکې څخه د هجرت کولو په نيت وتلی دی او هم د دوشنبې په ورځ مدينې ته رسېدلی دی او هم د دوشنبې په ورځ د ربيع الاول پر دوولسمه نېټه د دار الفناء په قصد د رفيق اعلی وفات سوی دی، انا لله وانا اليه راجعون.

شاه ولي الله الدهلوي المحدث الكبير" وايي چي دا ټولي واقعات چي په ورځ يا په شپه د دوشنبې سوي دي اشاره ورته ده مصرع:

بعد از خدا بزرگ توئی قصه مختصر

مقدم رسول اللهﷺ المدينة و اول صلوة الجمعة هكذا روى البخاري عن انس عن عائشة وابن سعد عن جماعة من الصحابةﷺ چي مسلمانانو د مدينې چي واورېدل چي رسول كريمﷺ په نيت د هجرة الى المدينة المنورة ته را روان دی، نو هره ورځ چي به دوی د سهار لمونځ وکړی په انتظار به وه د مقدم دده په الحرة (يعني ثنية الوداع) ته به راتله مسلح به را وتل او ورځې د دوبې وې چي سخته ګرمي به وه نو سايې به ټولي سوې ګرمی به په عذاب کړه کورو ته به ولاړل حتى چي يوه ورځ د ګرمی له سببه دوی کورو ته تللي وه يو يهودي چي د قلا پر برج ولاړ و د يوه كار لپاره مركب د عليه الصلوة والسلام يې وليدی، نو په لوړ اواز يې ناره وکړه يا قبيلة الانصار هذا صاحبكم الذي تنتظرونه قد جاء، مسلمانان وغورځېدل سلاح يې واخسته او د عليه الصلوة والسلام مخ ته ووتل او دغه ورځ د دوشنبې وه د مياشتي د ربيع الاول دوولسمه نېټه وه، نو چي سره يو ځای سوه دا بيت د ټولو په خولو کي و:

طلع البدر علينا من ثنيات الوداع .... وجب الشكر علينا ما دعاء الله داع

نو عليه الصلوة والسلام په قباء پر بني عمر بن عوف على كلثوم بن الهدمؓ باندي د نزول نيت و نو كلثوم ناره وکړه يو غلام ته يا نجيح نو عليه الصلوة والسلام و ابوبكرﷺ ته وويل د نېک فالی په توګه نجحت يا ابابكر (يعني كامياب سوې) او دغه كلثوم بن هدم په قباء كې يوه مځكه خالي درلوده چي دوی به د باغو خورماوي دا لته راوړې د وچېدو لپاره چي نوم د دغه ځای مربد و، نو رسول اللهﷺ د كلثوم بن هدم څخه د غه ځای وغوښتی د مسجد د جوړېدو لپاره، كلثوم ورته وويل چي صحيح ده، نو عليه الصلوة والسلام امر وکړی چي که په دا باغ کي وچ



Scanned by CamScanner

تیران یعنی لرګي د خورما وي را دې وړي، او که څوک څره لري د بري دي پر راوچلوي، خیر کار شروع سو او په ساده ډول د مسجد قباء بنیان علیه الصلوة والسلام کښېښو. په صحیح بخاري کي وايي چي علیه الصلوة والسلام بضعة عشر یوم هورې تېري کړې چي مسجد قباء تکمیل سو، له انس رض څخه روایت دی چي په څوارلس (۱۴) ورځي کي تکمیل سوی وهو اول مسجد في الارض چي بناء یې د مسلمانانو په لاس وسوه، وفیه نزل: ان اول مسجد أسس علی التقوی الآیة، او بعض راویان وايي چي دوه ویشت ورځي یې په کور کي د عمر بن عوف کي تېري کړې، بیا علیه الصلوة والسلام بني النجار ته وویل چي دده ماماګانو په توګوه وه ولي چي مور د عبد المطلب د دوی له قوم څخه وه، او بعض راویان وايي چي په خپله د علیه الصلوة والسلام مور د دغه قوم څخه وه والله اعلم، سرې یې ور واستاوه چي راسئ زه مدینې ته ځم نو بني النجار راغله توري یې په غاړو کي وې نو دوی علیه الصلوة والسلام او اصحابو ته وویل: ارکبوا آمنین مطاعین دا ورځ د جمعې وه فرکب رسول الله ﷺ پر خپله اوښه چي قصوی یې بلل، او بني النجار وغیرهم روان وه پر راسته جانب او پر چپه جانب او وروسته تر ده بعض سپاره بعض پیاده وه فخرج رسول الله ﷺ من قباء یرید المدینة المنورة نو خلګ چي مخ ته دده له مدینې څخه وتلي وه ناري یې وهلې الله اکبر جاء رسول الله ﷺ.

البیهقي له عائشې رض څخه روایت کړی دی چي ښځي او کوچنیان د بني النجار به داسي بیت وایه:

نحن بنات من بني النجار ....... یا حبذا محمداً من جار

البغوي رح وايي چي د جمعې د لمانځه په وخت کي په بني سالم بن عمرو بن عوف کي داخل سو، نو علیه الصلوة والسلام په هغه شپله کي د جمعې لمونځ وکړی، دا اول د جمعې لمونځ و چي علیه الصلوة والسلام و مدینې ته نژدې وګزاره، او اوله خطبه وه چي علیه الصلوة والسلام وویل چي وروسته خلګو یعني مسلمانانو هورې یو مسجد جوړ کړی دی چي مسجد جمعه یې بولي.

ثم اخذ عن یمین الطریق فمر علی بني ساعدة فقام الیه سعد بن عبادة والمنذر بن عمرو وابو دجانة ﷺ هلم (راسه) یا رسول الله الی العز والثروة (ای الغنا)

والقوة (يعني چي موږ يې لرو) و الجلد (عطف تفسير دى) فيقول رسول اللهﷺ
يا ابا ثابت (چي كنيت د سعد ؤ) د اوښي لار ايله كړه (يعني اوښه سعد تر مهار
نيولې وه) فانها مأمورة (زما اوښه مأموره ده) يعني د خداى له خوا هر ځاى چي
خداى ته منظور ؤ هورې به خپله چوكېږي، راوي وايي چي رسول اللهﷺ چي تر
دوى تېر سو په لاره كي سعد بن الربيع وعبد الله بن رواحة ولاړ وه فقالا يا رسول
الله (يعني د اوښي مهار يې ټينګ كړى) لا تجاوز عنا (تر موږ مه تېرېږه) يعني
زموږ سره اقامت مختاره كړه، هغو ته هم رسول اللهﷺ وويل خلوا سبيلها فانها
مأمورة، وروسته بيا زياد بن لبيد او فروة بن عمر په لاره كي ولاړ وه خو هغو هم
دعوت وركړى او عليه الصلوة و السلام ورته جواب وركړى، يعني فانها مأمورة
وروسته عليه الصلوة والسلام تېرېدى پر بني عدي النجار چي د عليه الصلوة
والسلام ماماګان وه فقال ابو سليط وصرفة بن ابي انيس يا رسول الله لا تجاوز عنا
نحن اخوالوک د قرابت په سبب او ثروة مو هم ډېر دى منعة او قوة مو هم ډېري دي
لا تجاوز عنا الى غيرنا، دوى ته هم رسول اللهﷺ هغه پخوانى جواب وركړى
خلوها فانها مأمورة. خير اوښه ورسېدله و دروازې ته د مسجد نبوي (يعني چي
وروسته به مسجد نبوي جوړ سي دغه ځاى به يې دروازه وي) اوښه په خپله چوكه
سوه، جبار بن صخر چي هر څو اوښه و چيخول چي ولاړه سي اوښه نه ولاړېدله، نو
عليه الصلوة والسلام ځني راكښته سو وقال اى بيوت اهلنا (اى اصحابنا) اقرب
فقال ابو ايو الانصاريﷺ خپل كور يې وریاد كړى وقال هذا المنزل. فقال رسول
اللهﷺ اللهم انزلنا منزلاً مبارکا وانت خير المنزلين څلور واره يې دغه دعاء وكړه،
الطبراني له ابن الزبيرؓ څخه روايت كړى دى چي عليه الصلوة والسلام په كور د
ابو ايوب الانصاريؓ سره د زيد بن حارثهؓ، او سدي" او ابن اسحاق" او ابن هشام"
په خپل تاريخي كتابو كي وايي چي دا كور تبع اول جوړ كړى ؤ.

**فائده:** تبع په اصطلاح د اهل اليمن هغه سلطان ته وايي چي ډېر تابعان لري د يو
معين سړي نوم نه دى نو ځكه تبع په اول سره مقيد سو، چي د تبع اول سره څلور سوه
(۴۰۰) احبار او علماء ورسره وه، هغو احبارو دا اتفاق سره وكړى چي موږ به له يثرب
(چي د مديني منورې پخوانى نوم ؤ) څخه نه وزو، نو تبع ته يې دا پېش نهاد وكړى

چي، نو تبع سِر (يعني خفيه راز ددې قصد د دوی) وپوښتی نو هغو احبارو ورته وويل چي موږ په خپلو کتابو کي ليدلي دي چي نبي چي نوم به يې محمد (ﷺ) وي دا ښار به د هغه دار الهجرة وي، نو موږ دلې اوسېږو شايد موږ يې و وينو، يا به موږ مړه سو زموږ اولادو ته به يې و ويني وهلم جرا، تبع اول هم دا اراده وکړه چي زه هم دلې پاته سوی وای د احبارو سره، وروسته يې فکر وکړی چي زما په مخ کي فتح د ه د نورو ملکو او هغه موعود تاريخ نه دی معلوم، نو دغو څلور سوه احبارو ته يې هر يوه ته د اوسېدو سرای جوړ کړی او څلور سوه مينځياني يې رانيولې او هر جبر ته يې يوه يوه په نکاح ورکړه او هر يوه ته يې ډېر نقود ورکړه او يو خط يې نوشته کړی د خپل اسلام پر محمد ﷺ، مضمون د خط دا ؤ: اشهد علی احمد انه رسول اللهﷺ که خدای عزوجل زما عمر دومره کړی چي ما دی وليدی زه به د ده وزير يم يا ابن عمه او کتاب يې مهر کړی په سرو زرو او مشر ته د احبارو يې ورکړی چي نبيﷺ ته دې ورکړي که ده وليدی والا فمن ادرکه من ولده و ولده وهلم جرا الی النبيﷺ او تبع د رسول کريمﷺ لپاره هم سرای جوړ کړی چي دی به پکښې واړوي که مدينې ته راغلی په مرور د زمانو هغه سرای د ابو ايوب الانصاريﷺ په لاس کي ؤ وهو من ولد ذالک العالم حتی دفعه الی رسول اللهﷺ.

**درويش وايي:** چي دا سِر د هغي خبري د عليه الصلوة والسلام دی چي زما او ښه مأمور ده، نو ابو ايوبﷺ هغه مکتوب د تبع و عليه الصلوة والسلام ته ورکړی عليه الصلوة والسلام وويل نعم العبد تبع يعني ده اسلام بالغيب قبول کړی.

**درويش وايي:** چي که دا قصه د تاريخ پوهانو صحيح وي، نو دا ډېره لويه معجزه ده د عليه الصلوة والسلام چي دې ته په عربي ژبه ارهاس وايي لکه ولادت با سعادت د عليه الصلوة والسلام په عام الفيل کي، والعلم عند الله العزيز العلام.

آفاقها گرديده ام بسيار خوبان ديده ام، اما تو چيزی ديگری

صبا مدینے میں مصطفٰی سے ہم غریبوں کا سلام کہنا
نہیں ہے کوئی بجز تمہاری بس میرا التایام کہنا

يعني په دنيا او آخرت کي بې له تا څوک نه لرو.

**فائده:** مراد له نداء څخه علی ما حکی في الکشاف الاذان عند قعود الامام علی

المنبر (ولي چي مسلمانان د هغه به هم على الوقت حاضر وه فلم يكن احتياج الى اعلام الغائبين) وكان لرسول الله مؤذن واحد نو عليه الصلوة والسلام چي پر منبر تشريف فرما سو هغه به اذان وكړی فاذا نزل عن المنبر اقامت بې وكړی، او ابوبكر او عمر رضي الله عنهما هم پر ده مسلک روان وه حتى چي عثمان رضي الله عنه خليفه سو او خلک ډېر سوه او كورونه يې لېرې سوه دوهم اذان يې زيات كړی چي اوس يې اول اذان بولي على داره الذي تسمى الزوراء. بيا چي عثمان رضي الله عنه پر منبر كښېنستی مؤذن ثاني به اذان وكړی، فاذا نزل اقام نو هيڅ چا د عثمان رضي الله عنه پر دغه كار عيب نه دی ويلی.

**درويش وايي:** چي پر هم دغه د عثمان رضي الله عنه پر عمل په بلادو كي د مسلمانانو عمل جاري دی، وفي الحرمين الشريفين الى يومنا هذا.

**مسئله:** سعي الى الصلوة الجمعة وترک البيع په نيز د بعض علماؤ په نداء ثاني پوري مربوط ده، والصحيح ان السعي وترک البيع ونحوه مربوط په اذان اول پوري لعموم قوله تعالى اذا نودي للصلوة من يوم الجمعة وصدقه على الاذان الاول ايضًا كذا قال المظهري، وفيه ان الاذان الاول لم يكن في عصر النبي صلى الله عليه وسلم فكيف يراد في القرآن العزيز النازل في عصر النبي صلى الله عليه وسلم فتدبر.

فَاسْعَوْا إِلَىٰ ذِكْرِ اللَّهِ وَذَرُوا الْبَيْعَ

**پوه سه:** چي مراد له سعي څخه معنى متعارفه نه ده چي ځغاسته يې په پښتو بولي، ولي له سعي څخه په مذكوره معنى نهي راغلي بالامر بالسكينة والوقار، و قرء عمر بن الخطاب رضي الله عنه فامضوا وكذا هو في قرائة ابن مسعود رضي الله عنه وقال الحسن رحمه الله ماهو بالسعي بالاقدام ولكن السعي بالقلوب والسعي بالخشوع والنية والخضوع، وفي الحديث آتوا الصلوة بالسكينة والوقار، وعن قتادة رحمه الله في تفسير هذه الآية انه السعي بالقلوب وعملكم المشي بالاقدام كما قال الله تعالى في حق اسماعيل عليه السلام فلما بلغ السعي معه اى المشي مع ابراهيم عليه السلام، وعن ابى هريرة رضي الله عنه قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم اذا اقيمت الصلوة فلا تسعون (راځغلئ مه) ولكن ايتوها تمشون وعليكم السكينة والوقار فما ادركتم فصلوا وما فاتكم فاتموا، رواه الصحاح الستة في كتبهم.

"الى ذكر الله" قال سعيد بن المسيب رحمه الله هو موعظة الامام والخطبة.

**پوه سه:** چي امر بالسعي لپاره د وجوب دی كما في روح المعاني او په دې سره دليل

ویل کیږي پر فرضیت د جمعې د لمانځه دی حتی چې هغه څوک چې پر هغه جماعت فرض نه وي لکه ښځې او نا بالغ هلکان سعي الی ذکر الله هم فرض نه ده وکذا ثبت فرضیة الجمعة بالسنة والاجماع حتی چې بعض حنیفیان وایي چې منکر د فرضیت څخه د جمعې د لمانځه کافر دی او جمعه فرض عین ده، کذا في روح المعاني والبغوي.

**پوه سه**: چې فرضیت یې پر رجال بالغین باندې دی.

**فائده**: تخصیص د بیع چې یې وکړی له دې سببه یې وکړی چې اکثره خلک بعد الزوال په بازارو کې په بیع سره مشغوله وي والا هر کار چې سړی مشغوله کوي د لمانځه او سماع الخطبة هغه فعل حرام دی لکه نوم وغیره که دوه کسه د جمعې د لمانځه لپاره را روان وه په دغه لار بیع یې وکړه حرامه نه ده لعدم الاشتغال به عن صلوة الجمعة والخطبة.

ذٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ۝

دغه (تګ د لمانځه او خطبې اوریدلو ته او ترک د ما یشتغل به منهما) بهتر دی تر بیع او شراء وغیرهما من الموانع (ان کنتم تعلمون) ای ان کنتم من اهل العلم په خپلو مصالحو سره (نو تعلمون نازل منزلة اللازم دی) او یا معفول محذوف دی یعني تعلمون مصالحکم شرط مستغني عن الجزاء بما قبله، وعن ابی عمرو وابی هریرة رضی الله عنه دوی وویل چې موږ واورېدل د رسول الله ﷺ څخه پر لرګیو د منبر لنتهین اقوام عن ودعهم الجمعات او لتضمن علی قلوبهم ثم لیکونن من الغافلین (خامخا به نهي کیږي قومونه د پرېښولو څخه د جمعې د لمونځو او یا به خدای مهر پر زړو د دوی ولګوي یا به ګرځي د غافلانو له ډلي څخه، رواه مسلم، وعن طارق بن شهاب قال قال رسول الله ﷺ الجمعة حق واجب علی کل مسلم الا علی اربعة مملوک (چې مریی وي) او امرئة او صبي او مریض رواه ابو داؤد، وعن عبدالله بن عمر رضی الله عنه عن النبي ﷺ من ترک الجمعة من غیر عذر کتب منافقا وفي بعض الروایات ثلثا دا حدیث ذکر کړی دی الشافعي رح.

**مسئله**: لایجب الجمعة علی مسافر اجماعًا وحکی عن الزهري والنخعي وجوبها علی المسافر اذا سمع النداء (ای الاذان)

**درويش وايي:** چي مظهري كما هو عادته د تفسير څخه فقه جوړه كړې ده چې اختلاف المذاهب الاربعة سره د دلائلو ذكر كوي او نقض او ابرام هم ذكر كوي، وما نه انكار ميكنم ونه اين كار ميكنم.

فَإِذَا قُضِيَتِ الصَّلٰوةُ فَانْتَشِرُوْا فِي الْاَرْضِ

چي لمونځ د جمعې اداء كړه سو، نو سره متفرق سئ په مځكه كي يعني يا كورو ته ولاړ سئ يا بازارو ته.

**پوه سه:** چي دا امر اباحت دی وروسته تر منع لاجل الصلوة كما هو القانون في اصول الفقه چي امر وروسته تر منع لپاره د اباحت دی، قال ابن عباس رضي الله عنهما ان شئت فاخرج وان شئت فاقعد وان شئت فصل الى العصر، او بعض مفسران وايي چي مراد انتشار في الارض نه دی لطلب الدنيا لكن لعبادة مريض وحضور جنازة وزيارة اخ في دينه.

**تنبيه:** قال البغوي قال الحسن رحمه الله وابتغوا من فضل الله هو طلب العلم، نو پر اقوالو دا امر د استحباب دی.

وَابْتَغُوْا مِنْ فَضْلِ اللّٰهِ وَاذْكُرُوا اللّٰهَ كَثِيْرًا لَّعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ﴿۱۰﴾

او تاسي طلب كوئ د فضل د خدای او ذكر كوئ د خدای ډېر يعني په ډېرو حالاتو كي من القيام والقعود والاضطجاع ولا تقصروا ذكره بصلوة الجمعة د عمر بن الخطاب رضي الله عنه څخه روايت دی ان رسول الله ﷺ قال من دخل السوق چي بازار ته سړی داخل سي فقال لا اله الا الله وحده لاشريك له وله الملك وله الحمد يحيى ويميت وهو حي لايموت بيده الخير وهو على كل شيئ قدير، كتب الله له الف الف حسنة ومحي عنه الف الف سيئة ورفع له الف الف درجة، رواه الترمذي.

**پوه سه:** چي لعل په معنى د لام كي دی ای لكي تفلحوا بخيرات الدارين.

**پوه سه:** چي بخاري او مسلم روايت كړی دی له جابر بن عبدالله رضي الله عنه څخه چي عليه الصلوة والسلام خطبه ويل په ورځ د جمعې يو قافله راغله چي غذائي مواد لكه غنم، اوربشي وغيره پكښې وې، ټول خلك ور ولاړ سوه او د عليه الصلوة والسلام سره دوه كسه پاته سوه، فانزل الله تعالى.

وَإِذَا رَأَوْا تِجَارَةً أَوْ لَهْوًا انفَضُّوا إِلَيْهَا وَتَرَكُوكَ قَائِمًا

او چي كله و ويني دوى تجارت او يو لهو شى (چي د عربو عادت دا ؤ چي قافله د مايحتاجون اليه به راغله دوى به ډول وډباوه) دوى متفرق سي ستا څخه يعني ولاړ سي.

**پوه سه:** چي په جمله شرطيه كي دوه شيان راوړه اى التجارة واللهو او په جزاء كي يې مفرد ضمير راوړى يعني اليها اشارة الى ان تفرق الناس كان للتجارة لا للهو يعني چي غذايي مواد رانسي لا اللهو، او الحسن و ابو مالك وايي چي اهل مدينه د غذايي موادو كمبود په سبب د ډېري لوږي سره مخامخ وه او نرخونه د غذايي موادو ډېر جګ وه، دحية بن خليفة الكلبي له شام څخه تجارتي مواد (په بعض روايتو كي زيت راغلي دي) او په بعض رواياتو كي غذايي مواد يعني اوړه او غنم وغيره او نبي ﷺ خطبه ويل نو خلك ټوله ولاړ سوه نو عليه الصلوة والسلام وويل چي كه تاسي ټوله تللي واى حتى لايبقى منكم احد. نو دا شېله به بهېدله د اوره څخه تاسي به پكښې واى.

**فائده:** دا ډول وهل لپاره د اعلان وه د يوې قافلې په راتګ سره، او په بل روايت كي راغلي دي چي كه تاسي ټوله ولاړ سوي واى د آسمان له خوا به پر تاسي ډېر باران سوى واى.

"وتركوك قائمًا" او دوى ته پرېښولې (يعني الاكثر) ولاړه د خطبې ويلو په حالت كي.

**پوښتنه:** چي اصحاب د رسول اللهﷺ چي خير الناس وه څرنګه يې عليه الصلوة والسلام پر خطبه ولاړ پرېښودى؟

**ځواب:** مقاتل بن حبان وايي چي په دغه وخت كي د لمانځه د جمعې خطبة بعد الصلوة وه كما في العيدين نو د اصحاب الكرام دا خيال سو چي لمونځ چي فرض ؤ يعني صلوة الجمعة خو مو اداء كړى د دوى په ګمان خطبه يو وعظ نبوي دى چي موږ يې بل وخت هم اورېدلاى سو، نو د غذايي موادو رانيول يې اهم وبلل كما مر آنفًا چي د غذايي موادو په مدينه كي كمبود ؤ، نو دوى چي ولاړه چي هغه غذايي مواد چي ډول يې دمخه وټكول سو خلاص نه سي، مقاتل وايي چي د هغې ورځي

څخه خطبتين د جمعې تر لمانځه دمخه سوې چې بيا نو هيڅ څوک د خطبې په وخت کي نسواى ولا ړيدلاى لبقاء الصلوة في زمتهم، فقير وايي چي دا قول د مقاتل بن حبان رح له حال سره د اصحابو رض ډېر مناسب دى او په ولاړېدو كې د دوى لاجل التجارة لوى او بهتر عذر د دوى دى اګرچه په واقع كي اوړېدل هم واجب وه فافهم.

**فائده:** عليه الصلوة والسلام په مابين كي د دوو خطبو جلسه خفيفه كول كما هو المعتاد الى يومنا هذا.

**فائده:** بعض اهل الله رح وايي چي ساعت خفيفه د اجابت د دعاء دى في يوم الجمعة كما ورد في الحديث الصحيح ځه وخت چي امام بين الخطبتين جلسه خفيفه كوي په دغه وخت كي يوه مهمه كوچنى دعاء دې سړى كوي، والله اعلم.

قُلْ مَا عِنْدَ اللّٰهِ خَيْرٌ مِّنَ اللَّهْوِ وَمِنَ التِّجَارَةِ ۚ وَاللّٰهُ خَيْرُ الرّٰزِقِيْنَ ﴿۱۱﴾

ته ورته ووايه چي ما عند الله من الثواب على الثبات مع النبي ﷺ بهتر دى تر لهو او تجارت (ولي ما عند الله من الثواب محقق، قوي دى بخلاف ما يزعمونها من التجارة) او الله عزوجل ښه رزق وركونكى دى، لانه تعالى يوجب الارزاق على نفسه بمقتضى و وعده وكرمه، نو د هغه خداى څخه رزق غواړئ.

**پوښتنه:** الرازقين يې جمع راوړى مع انه لا رازق الا هو؟

**ځواب:** دا جمع مبني پر عموم مجاز ده يعني مراد د رازق څخه عام دى من الرازق الحقيقي وهو الله تعالى، والمجازي كالوالد لاولاده فافهم، نو بايد د حقيقي رازق څخه رزق طلب كړل سي، كريمه: ادعوني استجبلكم.

**فائده:** مسلمانانو لره په كار دى اقتصاد يعني ماينه روئي ويكره الحرص وحب المال، د ابى الحميد الساعدي رض څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل اجملوا في طلب الدنيا فان كلكم ميسر لما خلق له، رواه الحاكم وابو الشيخ وابن ماجه، وعن ابى هريرة رض قال قال رسول الله ﷺ يا ايها الناس ان الغنى ليس عن كثرة العرض (اى المال سماه عرضا لسرعة زواله) لكن الغنى غني النفس چي نفس د سړي غني وي، وان الله يؤتي عبده ما كتب له من الرزق فاجملوا خذوا ما حل (اى ما حل الله له) و دعوا ما حرم، رواه ابو يعلى في مسنده، وعن كعب بن مالك رض قال قال رسول الله ﷺ ما ذئبان جائعان (نه دوه لېوان چي وږي هم وي) ارسلا في

غنم (چي ايله يې کړي په پسو کي) با فسد لها (پسو لره) من حرص المرء على المال والسرف اى الاسراف، ولي چي دوه وږي ليوان خوبه پسو نه فاسد کړي او حرص المال والاسراف د سړي دين ور فاسدوي، يعني حريص سړی نه حلال گوري او نه حرام، درواغ وايي ناحقه قسمونه اخلي، غلاوي کوي او اسراف په حلال او حرام کار کي کوي، كالزنى وغيره.

**درويش وايي:** چي په ورځ د چهار شنبې پر دوولس بجې له تفسير څخه د سورة الجمعة په توفيق د الله عزوجل د ربيع الثاني پر (۲۸) نېټه سنه (۱۴۳۳) هـ فارغ سوم، پر هم دغه تاريخ د سورة المنافقون شروع کېږي ان شاء الله تعالى.

سورة المنافقون مدنية وهي بسم الله الرحمن الرحيم احدى عشرة اية وفيها ركوعان

الله سهل وبسر وتممه بالخير والعافية

روى البخاري وغيره من زيد بن الارقم رضي الله عنه دى وايي ما واورېده د عبدالله بن ابي (رئيس د منافقانو چي ۳۰۰ وه) چي خپلو ملګرو هم مذهبو ته وويل لاتنفقوا على من عند رسول الله ﷺ پر هغه كسانو چي په نېژد رسول الله ﷺ دي (يعني من فقراء المهاجرين رض)

**فائده:** ابن ابی چي دی رسول الله و بولی پر زعم د مسلمانانو، ورنه دی عبدالله بن ابی خو د عليه الصلوة والسلام رسالت نه مانه يعني په زړه کي، حتى ينفضوا چي دده څخه منتشر سي يعني د لوږي له سببه چي موږ انفاق څني بند کړو، او بله خبره ابن ابی دا خبره وکړه لئن رجعنا (يعني دده سفره څخه چي په يوه غزاء کي منافقان د عليه الصلوة والسلام سره ملګري وه) الى المدينة ليخرجن الاعز (چي مراد يې خپله ډله وه) منها (له مديني څخه) الاذل هغه ذليله ډله چي مراد دده خبيث عليه الصلوة والسلام او مؤمنان وه، زيد بن ارقم رضي الله عنه دا خبري د عبدالله بن ابي و خپل اکا ته وکړې اکا دده دا خبري و عليه الصلوة والسلام ته وکړې، نو زيد بن الارقم رض وايي چي عليه الصلوة والسلام زه ور وغوښتم، نو ما د عبدالله بن ابی خبري و عليه الصلوة والسلام ته وکړې، نو عليه الصلوة والسلام ابن ابی او اصحاب دده را وغوښته او هغه خبري يې ورته وکړې چي زيد بن الارقم رض د دوی له خوا څخه عليه الصلوة والسلام ته کړي وې، نو دوی اشد قسمونه و عليه الصلوة والسلام ته واخسته چي موږ دا خبره نه دي کړي، زيد دروغ وايي، نو عليه الصلوة والسلام زما تکذيب وکړی يعني پر خلګو ناحقه دروغ ولي وايې او د دوی د قسمو تصديق يې وکړی، زيد رض وايي چي ما ته دومره لوی غم لاحق سو چي هيڅ وخت دومره نه وم غمجن سوی، نو زما اکا راته وويل چي ستا په دې خبر رساني کي دا ؤ چي عليه الصلوة والسلام دي تکذيب وکړي، زيد بن الارقم رض وايي چي زه له شرم څخه کور کښېنستم يعني هرچا چي به وليدم ويل به يې چي تا ولي دومره دروغ عليه الصلوة والسلام ته وويل چي هغه دي تکذيب وکړی حتى دا سورت نازل سو، نو عليه الصلوة والسلام ما ته سړی را واستاوه او دا سورت يې راته

قرائت كړى او داسي يې راته وويل: ان الله قد صدقک يا زيد يعني خداى ذي وكړې په هغو خبرو كي چي تا ماته كړي وې، زيد بن الارقم وايي چي ما د خداى سره عهد وكړى چي زه به تر تولو عمر دروا غ نه وايم.

**فائده:** رښتيا ويل لكه يوه ترخه دوا چي صحت بخښونکی وي اگر في الوقت ترخه وي، او دروا غ لكه خوږه دوا چي في الوقت ډېره خوږه وي او د سړي د نافع خيال پر كېږي لكن په حقيقت كي ضرر منده وي و مريض ته حتى بعض وقت مفضي و هلاک ته مريض يا شدت ته مرض د مريض مثلاً د شوكر مريضي چي يوه خطرناكه ناجوړي ده و هغه ته شهد يا شكر يعني د دغه قسم نور خواږه شيان ور كړي يا بې هلاک كړي يا به يې شوكر د پاى درجې ته ورسوي، يو شاعر وايي:

نگوی که شهد و شکر فائق است..... کسی را که سقمونیا لائق است

**إِذَا جَآءَكَ الْمُنٰفِقُوْنَ قَالُوْا نَشْهَدُ إِنَّكَ لَرَسُوْلُ اللّٰهِ**

چي تا ته راسي منافقان (يعني عبد الله بن ابى او ملگري)

**فائده:** منافقانو خپل قول په تاكيدات سره مؤكد كړى اول يې نشهد و وايه چي معنى يې اخبار دى د علم څخه د مشهود به علماً يقيناً، بيا يې مؤكد كړى په ان سره بيا يې لام د ابتداء راوړى، دا ددې لپاره چي زموږ ايمان د عليه الصلوة والسلام وزړو ته ولوېږي څكه خداى د مشهود به تصديق وكړى او د شهادت د دوى يې انكار وكړى، ولي چي شهادت خو اخبار من صميم القلب والاخبار عن علم يقيني چي په دوى كي نه ؤ.

**وَاللّٰهُ يَعْلَمُ إِنَّكَ لَرَسُوْلُهٗ ؕ وَاللّٰهُ يَشْهَدُ إِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ لَكٰذِبُوْنَ ۚ﴿۱﴾**

او خداى علم پر دي لري چي ته رسول دده يې "والله يشهد آه" لا في المشهود به چي انک لرسول الله بلكې په اخبار د دوى چي دا قول زموږ صادر دى عن علمهم واذعانهم حتى بصدق على قولهم هذا لفظ د شهاده لان لفظ الشهادة معناه انه صادر عن اعتقاد جازم وصميم القلب وليس فيهم ذالک، هذا على تقدير كون كلمة نشهد اخبارا وان انه اى لفظ د نشهد انشاء ده د شهادة فمعنى قوله والله يشهد ان المنافقين لكاذبون في زعمهم ان قولهم شهادة اذ يشرط في الشهادة اى انشائه مواطات القلب وليس فيهم ذالک وتفصيل ذالک في المطول.

اِتَّخَذُوْٓا اَيْمَانَهُمْ جُنَّةً فَصَدُّوْا عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ؕ اِنَّهُمْ سَآءَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ۝

دوی کړځولی دی دا حلف کاذب (یا دا شهادت د دوی لان المشهادة من الفاظ الایمان، معنی جنت یعني سپر او وقایه د ځان ساتني د قتل او د سبي څخه) "فصدوا" ای اعرضوا وامتنعوا (نو پر دي تقدیر صدوا لازمي دی او منعوا الناس عن الاسلام، نو متعدي دی) "عن سبیل الله" د لاري څخه د خدای ای الدخول في دین الاسلام "انهم سآء ما کانوا یعملون" په تحقیق بد دی دغه عمل چي دوی یې کوي من النفاق والصد.

ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ اٰمَنُوْا ثُمَّ كَفَرُوْا فَطُبِعَ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ فَهُمْ لَا يَفْقَهُوْنَ ۝

دغه (نفاق او کاذب قسمونه د دوی) "بانهم" ای بسبب انهم "آمنوا" ای اظهر والایمان په مخکي د مسلمانانو، یعني لپاره د حفظ من الناس من القتل والنهب "ثم کفروا" اذا خلوا الی شیاطینهم یعني رؤساء الکفر.

("فطبع" عطف دی علی کفروا) د خدای له خوا مهر ولګول سو پر زړو د دوی حتی سلب عنهم ادراک الحق، کلمة الفاء للسببية، نو دوی په حقیت د اسلام نه پوهېږي، ........ الشیاطین علی قلوبهم آه.

**فائده**: ثم لپاره اختیار د کفر علی الایمان او یا للتفاوت بین الحالین.

وَاِذَا رَاَيْتَهُمْ تُعْجِبُكَ اَجْسَامُهُمْ ؕ وَاِنْ يَّقُوْلُوْا تَسْمَعْ لِقَوْلِهِمْ ؕ

چي ته دوی و وینې یا محمد (ﷺ) یا مخاطب غیر معینه (عطف دی پر اتخذوا) تا په تعجب کي اچوي بدنونه د دوی (یعني پنډ پنډ بدنونه لوی لوی ځېټي او سپین مخان یې دي له ډېره استراحت څخه) او که دوی خبري کوي ته د دوی و خبرو ته غوږ نسي، قال ابن عباس ؓ کان ابن ابی جسیمًا فصیحًا چي ده به په خبرو شروع وکړه سمع النبي ﷺ قوله.

**پوښتنه**: په حدیث د ابن عباس ؓ چي یوه ورځ ابن ابی راغلی، او په قرآن کي رئیتهم اجسامهم وان یقولوا تول صیغې او ضمائر د جمع راغلي دي چي راجع و منافقینو ته دی لا الی ابن ابی فقط؟

**ځواب**: علماء وايي چي فعل د یوه و ډېرو ته یې نسبت روا دی په عربیت کي کما یقولون بنوا فلان قتلوا، د فلاني سړي زامنو سړی مړ کړی مع ان القاتل منهم

واحد، نو دلته هم چي ابن ابی د ټولو مخکښي وُ نو د ابن ابی احوال يې د ټولو منافقينو ته منسوب کړی فافهم.

كَأَنَّهُمْ خُشُبٌ مُّسَنَّدَةٌ ۖ يَحْسَبُونَ كُلَّ صَيْحَةٍ عَلَيْهِمْ ۚ

ګويا دوی پنډ تيران و دېوال ته تکيه کړي وه، پنډ والی يې د تيرانو خود دوی جسامت مشبه به دی او د تکيه والي و دېوال معنی دا ده چي لکه تيران چي علم او ادارک او فهم صحيح نه لري منافقين يې هم نه لري، ولي که يې فهم صحيح درلودای نو په ظاهر او باطن سره به يې ايمان راوړی وای "يحسبون کل صيحة عليهم" دوی ګمان کوي پر هره نعره چي په لښکر کي د عليه الصلوة والسلام چي به وسوه مثلاً يو چا به نعره وکړه چي د فلاني دابه ورکه ده چا به نه وي ليدلې چي دا نعره پر ضرر زموږ وي، بعض مفسران وايي چي د سبب د رعب في قلوبهم، او بعض مفسران وايي چي له بېري ددې چي زموږ نفاق لکه چي ظاهر سو يا ددې سببه چي د دوی ګمان به دا وُ چي زموږ د قتل اعلان به وُ كذا قيل.

هُمُ الْعَدُوُّ فَاحْذَرْهُمْ ۚ قَاتَلَهُمُ اللَّهُ ۖ أَنَّىٰ يُؤْفَكُونَ ۝٤

"هم العدو" جمله مستأنفه ده والضمير راجع الی المنافقين ای هم الکاملون في العداوة والراسخون فيها "فأحذرهم" د دوی څخه ته ويرېږئ يا محمد ﷺ ولي هغه تر ټولو دښمنانو ستا بالا دغه منافقين دي او د دوی په ظاهره غوره مالي ته مه خطا وزه "قاتلهم الله" پر دوی دي لعنت وي د خدای ﷻ او دوی طرد وي د لوبه رحمت څخه.

**فائده:** تعبير د لعنت څخه يې په قتل سره وکړی ددې سببه چي نهايت له شدائدو څخه د دنيا قتل دی وکذالک الطرد عن رحمة الله عزوجل.

**پوهنه:** چي دا طلب دی د خدای ؑ د خپل ذات څخه بلعنهم او تعليم دی مؤمنانو ته چي تاسي هم دغه دوی ته وايا ست "انی يؤفکون" يعني څرنګه دوی له حق دين څخه مصروف دي يعني قلباً، په صحيح روايت کي د ابن جرير او قتادة او ابن المنذر د عکرمه څخه راغلي دي چي يو چا ابن ابی ته وويل چي ته نبي ﷺ ته ورايه چي تا ته دعاء د بخښني د خدای ؑ وکړي، ابن ابی اعراض څني وکړی، فنزلت هذه الآية.

وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ تَعَالَوْا يَسْتَغْفِرْ لَكُمْ رَسُولُ اللَّهِ لَوَّوْا رُءُوسَهُمْ

چي وويل سي منافقانو ته تاسي راسئ چي طلب د بخښني ستاسي لپاره رسول د خدای څخه وکړي، نو دوی سرونه د ډېره تکبره څخه جگ ونسي.

وَرَأَيْتَهُمْ يَصُدُّونَ وَهُم مُّسْتَكْبِرُونَ ۝

او ته وينې (خطاب عام دی يعني ايها الحاضر عند ذالک القول) "يصدون" ای يعرضون عن الاستغفار "وهم مستكبرون" عن الاعتذار الى رسول الله ﷺ وطلب المغفرة منه، دا جمله حال ده له فاعل څخه د يصدون.

سَوَاءٌ عَلَيْهِمْ أَسْتَغْفَرْتَ لَهُمْ أَمْ لَمْ تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ لَن يَغْفِرَ اللَّهُ لَهُمْ

برابره ده و دوی ته (داسي يې نه وويل سواء عليک ولي رسول الله ﷺ پر تبليغ دوی ته ثواب ورکوي وان لم يؤمنوا)

**فائده:** سواء مصدر دی په معنی د مشتق دی مرفوع على الخبرية دی او استغفرت آء مبتداء ده.

**سوال:** فعل څرنگه مبتداء واقع کېدای سي؟

**ځواب:** ابتدائيه يې په تأويل د مصدر دی. و التقدير استغفارک لهم وعدم استغفارک لهم مستويان. وقد مر مزيد تحقيق السوال والجواب في سورة البقرة في تفسير قوله تعالى: سواء عليهم انذرتهم ام لم تنذرهم لا يؤمنون.

"لن يغفر الله لهم" بيان للاستواء ابن المنذر له عروة ؓ څخه داسي روايت کړی دی چي هغه ايت چي نازل سو چي په بل ځای کي د قرآن راغلي دي استغفر لهم او لا تستغفر لهم ان تستغفر لهم سبعين مرة، فان الله لا يغفر لهم، قال رسول الله ﷺ لازيدن على سبعين مرة فانزل هذه الآية سواء عليهم الآية.

إِنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْفَاسِقِينَ ۝

په تحقيق خدای پاک هدايت نه کوي و هغه قوم ته چي فاسقان وي يعني خارج وي د اصلاح کولو څخه (کما هو معنى الفسق وهو الخروج) يعني ډوب وي په کفر او نفاق کي.

**پوښتنه:** چي مراد له هدايت څخه دلالت موصله دی و مطلوب ته، فالمعنى ما داموا على الكفر والنفاق لا يهديهم الله بالامر التكويني لان مدار الثواب والعقاب على الايمان والكفر الاختياري كما لا يخفى.

هُمُ الَّذِيْنَ يَقُوْلُوْنَ لَا تُنْفِقُوْا عَلٰى مَنْ عِنْدَ رَسُوْلِ اللّٰهِ حَتّٰى يَنْفَضُّوْا ؕ

منافقان هغه کسان دي چي دوی به ویل و قوم انصارو ته دا علت د عدم المغفرة دی للمنافقين، تاسي نفقه مه ورکوئ و هغه کسانو ته، مراد ځني مهاجرين دي په نېز د رسول الله ﷺ.

**سوال:** منافقانو خو عليه الصلوة والسلام رسول الله نه باله، نو دلته يې ولي لفظ د رسول الله وو ايه؟

**ځواب:** اطلاق بناء دی پر دې چي دی ځان رسول الله بولي، لکه جهجاه وغيره من فقراء المهاجرين "حتى ينفضوا" د دې لپاره چي متفرق او جلا سي د عليه الصلوة والسلام څخه يعني د لوږي له سببه.

وَلِلّٰهِ خَزَآئِنُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَلٰكِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ لَا يَفْقَهُوْنَ ۝

او الله لره دي خزائن د اسمانو (يعني نعمتونه د جنت او باران او تقدير د ارزاقو) او د مځکي (من الارزاق يعني خوارکي مواد، والمراد لا يعطى احداً شيئاً الا باذنه لان بيده ملكوت كل شيئ، دا رد دی د هغه قول د منافقانو چي تاسي چي انفاق پر دوی ونه کړئ دوی به متفرق سي، حاصل د رد يې دا دی چي خزانې د ارزاق په قدرت کي د خدای دي يعطي منها ما يشاء ويمنع مايشاء) لکن منافقان په دې نه پوهېږي، که پوهېدلای دا خبري به يې نه کولای.

يَقُوْلُوْنَ لَئِنْ رَّجَعْنَآ اِلَى الْمَدِيْنَةِ لَيُخْرِجَنَّ الْاَعَزُّ مِنْهَا الْاَذَلَّ ؕ

دوی وايي (يقولون بدل دی د يقولون سابق څخه) که موږ رجوع وکړو له دې سفر څخه و مديني ته.

**پوه سه:** چي اسناد د دې قول او د اول قول خدای عزوجل ټولو منافقينو ته وکړی مع القائل واحد وهو عبد الله بن ابى بن سلول لرضاء الباقين بهذا القول الخبيث وقد مر مثاله فتذكر.

"ليخرجن الاعز منها الاذل" اللام للقسم، او نون ثقيله هم د تاکيد دی، هغه ډېر عزت مند چي مراد د خبيث خپل ځان دی د مديني له مديني څخه هغه ډېر ذليل سړی چي مراد د خبيث رسول الله ﷺ او مؤمنان وه.

وَلِلّٰهِ الْعِزَّةُ وَلِرَسُوْلِهٖ وَلِلْمُؤْمِنِيْنَ وَلٰكِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ۟

او خاص خدای لره ده غلبه او قدرت (دا جمله حال ده له فاعل څخه د يقولون الثاني) او رسول او مؤمنانو ته چي خدای عزوجل به غلبه او نصرت ورکړي و رسول ته خپل او مؤمنانو ته په اظهار د دين د اسلام ونصرهم على الاعداء.

**درويش وايي**: چي اخبار بالغيب دی او معجزه ده د قرآن عزيز او معجزه ده د نبي کريم ﷺ لانه قد کان کذالک "ولکن المناقفين لايعلمون" لکن منافقان علم نه لري پر عظيم قدرت د خدای عزوجل لغاية جهلهم وتکبرهم.

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تُلْهِكُمْ اَمْوَالُكُمْ وَلَاۤ اَوْلَادُكُمْ عَنْ ذِكْرِ اللّٰهِ

ای هغه کسانو چي ايمان يې راوړی دی، تاسي دي مشغوله نه کړي ستاسي اموال او اولاد يعني تدبير د اولادو او اموالو د ذکر څخه د خدای، عمومي مفسران وايي چي مراد له "ذکر الله" څخه پنځه لمونځونه دي، لکن زيات خبره داده چي لفظ د ذکر الله عام دی ټولو عباداتو ته شامل دی حتی الجهاد في سبيل الله ته هم شامل دی کما لايخفی.

وَمَنْ يَّفْعَلْ ذٰلِكَ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ۝

او که څوک دغه فعل وکړي نو دوی د پر تاوان وکړی، ولي چي جليل نعمت باقيه چي جنت او نعمت هنالک په حقير فاني چي نعيم د دنيا دی بدل کړه.

**فائده**: په ما سبق کي خدای بيان کړه بد کردار د منافقانو صراحةً او په دې ايت او په وروسته ايتو خدای عزوجل منع کړه مسلمانان د تشبه څخه د منافقانو ولي چي دا کارونه د منافقانو وه.

وَاَنْفِقُوْا مِنْ مَّا رَزَقْنٰكُمْ مِّنْ قَبْلِ اَنْ يَّاْتِيَ اَحَدَكُمُ الْمَوْتُ

او تاسي نفقه کوئ بعض د هغو اموالو چي موږ تاسي ته په رزق درکړي (سواء کان الانفاق فرضًا کالزکوة او واجبًا کصلة الرحم وغير ذالک) تر مخه د دې چي راځي يو ته ستاسي مرګ يعني علاماتي د مرګ من الامراض و کبر السن وغير ذالک نو په دې وخت کي وصيت کوي لفلان کذا ولفلان وقد کان لفلان "من قبل" ظرف دی د انفقوا، له ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي يو سړي د عليه الصلوة والسلام څخه پوښتنه وکړه

چي: اى الصدقة اعظم اجرًا؟ چي د كومي صدقې اجر ډېر دى، عليه الصلوة والسلام ورته وويل ان تصدق وانت صحيح شحيح (چي په صورت جوړيې او حريص د دنيا يې) تخشي الفقر وتأمل الغنى (له مسكنت څخه بېرېږې او ستا سره فكر د كثرت المال درسره وي) ولا تمهل حتى اذا بلغت الحلقوم (ته نه ځنډوې انفاق تر هغه وخته چي نفس كرنكي ته را ورسېږي) قلت لفلان كذا وقد كان لفلان، متفق عليه.

**فائده:** انفقوا عطف دى پر لا تلهكم باندي.

فَيَقُوْلَ رَبِّ لَوْلَآ اَخَّرْتَنِيْٓ اِلٰٓى اَجَلٍ قَرِيْبٍ ۙ فَاَصَّدَّقَ وَاَكُنْ مِّنَ الصّٰلِحِيْنَ ⑩

نو وايي اى زما ربه، يعني وروسته تر مرګ چي تصدق يې په ژوند كي نه وي كړى له ډېر افسوس څخه داسي وايي "لو لا اخرتني" ولي دي زه نه ځنډولم بتأخير الموت "الى اجل قريب" يعني تر لږ زماني پوري "فاصدق" اصل يې اتصدق وُ تا يې په صاد بدله كړه او ادغام يې وكړى، دا جمله جواب د هغه تحضيض دى چي د لولاء څخه وفهمېدى، والتقدير لولا كان منك يا الله تاخيري في الدنيا فتصدق مني يعني انفاق او تصدق كړى واى كه تا ماته تاخير د اجل راكړى واى "واكن من الصالحين" او كه به واى ستا د صالح بندګانو څخه.

وَلَنْ يُّؤَخِّرَ اللّٰهُ نَفْسًا اِذَا جَآءَ اَجَلُهَا ۭ وَاللّٰهُ خَبِيْرٌۢ بِمَا تَعْمَلُوْنَ ⑪

او هر ګز هيڅ مهلت نه وركوي خداى ؑ و هيڅ نفس ته كه يې څه هم نفس تمنى وكړي، دا جمله حال ده له فاعل څخه د فيقول آه.

**فائده:** مقاتل ؒ د صالحين ترجمه په مؤمنين سره كړې ده، دى او نوريو جماعت يې هم داغه ترجمه كوي، نو دوى دا آيت په شان كي د منافقينو نازل بولي، او بعض مفسرين وايي چي په شان كي د مؤمنينو دى نو مراد له صلاح څخه كول د ټولو فرائضو او واجباتو دى او ترك د منهايتو دى "اذا جآء اجلها" كله چي يې اجل ورسېږي يعني عمر يې پاى ته ورسېږي ضمير راجع دى و نفس ته چي مؤنث سماعي دى "والله خبير بما تعملون" او خداى ﷻ خبر دى په عملو ستاسي سره، كلمه د ما يا مصدريه ده يعني بعملكم په معنى مصدري، يا موصوله دى والعائد محذوف اى بما تعملونه.

**درويش وايي:** چي د پنجشنبې د ورځي په اول وخت كي د عصر د ربيع الثاني پر (۲۸) تاريخ تفسير د سورة المنافقون پاى ته ورسېدى، و لله الحمد والمنة.

سُوْرَةُ التَّغَابُنِ مَدَنِيَّةٌ وَهِيَ بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ثَمَانِيْ عَشْرَةَ اٰيَةً وَفِيْهَا رُكُوْعَانِ

**پوه سه:** چي روح البيان او مظهري وايي چي آيتونه دد پ سورة اتلس (۱۸) دي، او روح المعاني وايي تسع عشر (۱۹) بلا خلاف. والله اعلم بالصواب.

يُسَبِّحُ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ

تسبيح وايي د الله (عزوجل) هغه چي په اسمانو كي دي (كالملائكة) او هغه چي په مځكه كي دي (كالانس والجن)

**درويش وايي:** چي تفصيل دد پ ايت د مخه تېر سوى دى، او اختلاف د علماؤ دى چي مراد تسبيح حالي ده په غير ذوى العلم كي، او د علماؤ د باطن يعني الصوفية الكرام چي مراد تسبيح قولي دي په ټولو مخلوقاتو كي كه ذوى العلم وي يا غير ذوى العلم وي، او كه حيوانات وي او كه جمادات وي، او د غه رنګه دلائل دد پ چي مذهب حق دى هم تېر سوى دى فتذكر.

لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ۝۱

او د هغه لپاره ريښتوني بادشاهي ده او حمد دى (تقديم د جار او مجرور لپاره د حصر دى) او خداى ﷻ پر هر شي قادر دى، قدرة تامة حتى د مېږي او د اسمان د خداى په قدرت كي فرق نسته، لانه جلت قدرته اذا اراد شيئًا ان يقول له كن فيكون.

هُوَ الَّذِيْ خَلَقَكُمْ فَمِنْكُمْ كَافِرٌ وَّمِنْكُمْ مُّؤْمِنٌ ۭ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ ۝۲

هم هغه ذات دى چي تاسي يې پيدا كړي ياست، بيا څوک په تاسي كي كافر دى په خداى سره څوک مؤمن به تعالى.

**پوه سه:** چي دا تفصيل دى لما في خلقكم من الاجمال.

**فائده:** قدم الكافر على المؤمن لانه الاغلب "والله بما تعملون" من الايمان والكفر والطاعة والمعصية "بصير" خبر دى، نو تاسي ته به جزاء دركړي پر عملو ستاسي بالجنة او النار.

**درويش وايي:** چي مسئله د قدر من الله د مغلقو مسئلو څخه ده. وقد ضل فيها المعتزلة حيث يقولون چي بندګان خالق دي د عملو من الكفر والايمان

والطاعة والعصيان وهذا باطل، مخالف لقوله تعالى انا خلقنا كل شيئ ومخالف لاجماع الصحابة ﷺ ومخالف للاحاديث الصحيحة لكه حديث د بخاري او مسلم والترمذي و ابو داوٗد عن ابن مسعود ﷺ قال حدثنا الصادق المصدوق (اراد به النبي ﷺ لانه صادق فيما يقول و مصدوق فيما يقول يعني خداى عزوجل هم دده تصديق كړى دى، وما اتاكم الرسول فخذوه الآية) ان خلق احدكم يجمع في بطن امه اربعين يومًا نطفة ثم يكون (يعني يصير) ثم يكون علقة مثل ذالک (اى اربعين يومًا) ثم يكون مضغة مثل ذالک، وروسته خداى عزوجل ملكي ورته را واستوي باربع كلمات (چي څلور خبري نوشته كوي) رزقه (رزق دده نوشته كړي چي غني به وي كه فقير) و اجله (څومره به يې اجل وي يعني عمر) و عمله (چي څه عمل به كوي من العصيان والطاعة) وسعيد و شقي (يعني مؤمن به وي كه كافر) ثم ينفخ فيه الروح (بيا وروسته په ده كي روح پوه كړل سي، يعني داخل سي يعني انسان وګرځي) الى اخير الحديث.

**درويش وايي:** چي په دې باب كي احاديث كثيره سته كما روى مسلم عن عبدالله بن عمرو ﷺ مرفوعًا يعني الى النبي ﷺ كتب الله مقادير الخلائق قبل ان يخلق السموات والارض بخمسين الف سنة.

خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ بِالْحَقِّ وَصَوَّرَكُمْ فَاَحْسَنَ صُوَرَكُمْ وَاِلَيْهِ الْمَصِيْرُ۝

پيدا كړي يې دي اسمانونه او مځكه په حق سره (اى متلبسًا بالحق والحكمة البالغة دالة على صانع حكيم ... بيت:

برگ درختان سبز درنظر هوشيار ..... هر ورقى دفتريست معرفت كردگار

**درويش وايي:** چي د شنو درختو بلګونه د خداى عزوجل د پېژند ګلوى او د حكمت دفتر دي، فكيف لايكون خلق السموات والارض دالة على حكمت خالقها وصانعها " وصوركم " تاسي ته يې صورتونه دركړي دي ايها الناس او ډېر زيبا او قشنګ صورتونه يې دركړي دي تر ټولو حيواناتو، هم ظاهرًا ولي چي هر څو بدرنګه سړى وي خپل صورت په صورت د خره يا د بيزو نه بدلوي الى غير ذالک، او هم باطنًا باعطاء العقل والمعرفة والادراک والافعال الحسنة والنطق والفصاحة والبلاغة الى غير ذالک " واليه المصير " او خداى ته ستاسي رجوع

ده يعني يوم القيامة فيجازي كم على طاعاتكم و اعمالكم السيئة، والمراد چي تاسي چي ما پر احسن الصدر باندي پيدا كړي ياست نو تاسي خپل استعدادونه مه ضائع كوئ په اختيار كي د رزائلو حتى چي حشر مو پر اقبح الصور وكړي.

به روزی که دهشت خورد انبیاء ...... تو عذر گناه را چه داری بیا

يَعْلَمُ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ وَيَعْلَمُ مَا تُسِرُّوْنَ وَمَا تُعْلِنُوْنَ

خداى علم لري په هغه شيانو سره چي په اسمانو كي دي من الملائكة وغيرها او په هغه شيانو سره چي په مځكه كي دي من الحيوانات وغيرها، او علم لري پر هغو كارو چي تاسي يې په پټه كوئ يا يې په ښكاره كوئ.

وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ ④

او خداى په هغو شيانو چي تاسي يې په زړو كي كوئ، والمراد بما في الصدور هغه اسرار دي چي ستاسي په سينو كي يعني په زړو كي دي ... بيت:

برو علم یک زره پوشیده نیست..... که پوشیده و رسوا بنزدش یکی است

**فائده:** پوه سه چي تكرار د علم پر منزله د تكرار د وعيد دى على اتيان بما يخالف امره ورضاه.

**پوه سه:** چي قوله يعلم مع ما عطف عليه دريم خبر دى لقوله هو في قوله هو الذي خلقكم.

اَلَمْ يَأْتِكُمْ نَبَؤُا الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ قَبْلُ

آيا تاسي ته نه دى رسېدلى (ايها الكفار) خبر يعني قصه د هغو كسانو چي تر تاسي د مخه يې كفر كاوه مثل قوم نوح وعاد و ثمود و قوم لوط وغيرهم.

فَذَاقُوْا وَبَالَ اَمْرِهِمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ⑤

دوى وڅكى يعني، دوى ته ورسېدى ضرر د كفر د دوى په دنيا كي (من اهلاكهم بالمرة) او د دوى لپاره دى عذاب تل تر تله يعني في الآخرة وهو عذاب النار الدائم.

**فائده:** وبال په اصل كي ثقل ته وايي، ومنه الوبيل للطعام الثقيل على المعدة والوابل يعني تېز باران ته هم وايي چي غټ غټ څاڅكي يې وي.

ذٰلِكَ بِاَنَّهٗ كَانَتْ تَّاْتِيْهِمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ فَقَالُوْٓا اَبَشَرٌ يَّهْدُوْنَنَا

دغه (اى العذاب في الدنيا والآخرة هلاكًا في الدنيا وادخالاً في النار في الآخرة) "بانه" اى بسبب چي دوی ته به راتلک کاوه رسولانو د دوی په معجزاتو ظاهراتو والدلائل الواضحة "فقالوا ابشر آه" عطف على كانت و "ابشر" اسم جنس دی يطلق على الواحد والكثير چونکه مراد په ايت کي جمع ده يعني الرسل. نو ځکه يې ضمير د يهدوا جمع راوړی يعني داسي يې نه وويل يهدينا بصيغة المفرد، والاستفهام للانكار والتعجب من كون الرسل بشرًا، والتعجب من عقولهم انكروا كون الرسل بشرا ولم ينكروا كون المعبود حجرًا يعني الصنم.

فَكَفَرُوْا وَتَوَلَّوْا وَّاسْتَغْنَى اللّٰهُ ۭ وَاللّٰهُ غَنِيٌّ حَمِيْدٌ ۝

نو دوی کفر مختاره کړی او مخ يې واړاوه له فکر وهلو څخه په آياتو بيناتو کي؛ او بې پرواه دی خدای عزوجل (يعني د هر شي څخه فضلاً عن ايمانهم وطاعتهم) او خدای عزوجل غني دی له هر شي څخه "حميد" مستحق دی للحمد على صفاته الجميلة والجليلة وافعاله الحكيمة يعني که يې څوک حمد وايي که يې نه وايي.

**پوښتنه:** چي خدای عزوجل مستغني ؤ نو څه حکمت ؤ په ارسال د رسولانو؟

**ځواب:** ارسال الرسل تفضل او منية دی د خدای پر دوی لكن مقوله الراضي بالضرر لايستحق النظر اى اللطف من الله عزوجل.

زَعَمَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا اَنْ لَّنْ يُّبْعَثُوْا

او گمان فاسد دی د هغه چا چي کفر يې وکړی (يعني د کافرانو د مکې) دا چي مونږ به بعث يعني ژوندي نه سو بعد الموت.

قُلْ بَلٰى وَرَبِّيْ لَتُبْعَثُنَّ ثُمَّ لَتُنَبَّؤُنَّ بِمَا عَمِلْتُمْ ۭ وَذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ يَسِيْرٌ ۝

ته ورته ووايه "بلى" جواب دی د انکار د دوی د بعث بعد الموت او "ربي" تاكيد دی د جواب په قسم سره يعني وربي چي معنى يې داده چي زما دې په خدای قسم وي "لتبعثن" چي تاسي به بعث کېږئ، په لام د ابتداء، په نون ثقيله سره تاكيد د بعث بعد الموت يې وکړی "ثم لتنبؤن" وروسته تر بعث به تاسي ته

خبر در کړه سي په هغه شي سره چي تاسي يې عمل کړی دی من الکفر والمعاصي والاشراک بالله الواحد القهار، او دا بعث او حساب والجزاء پر خدای آسانه ده لکمال قدرته تعالی.

فَآمِنُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ وَالنُّورِ الَّذِي أَنزَلْنَا ۚ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ ⑧

(تفريع على وجوب البعث) نو ايمان راوړئ يا کفار مکه پر خدای بالوحدانية، او پر رسول د خدای (يعني محمد ﷺ بالرسالة) او پر هغه نور چي موږ نازل کړی دی يعني القرآن العظيم، او خدای ستاسي په عملو ښه خبر دی، يعني نو به جزاء درکړي بعد البعث.

**فائده:** قرآن کريم ته يې نور ووايه لانه ظاهر بنفسه په سبب د اعجاز، کريمه: قل ان کنتم في ريب مما نزلنا على عبدنا آه، او مظهر دی لغيره من الشرائع والاحكام كما هو معنى النور.

يَوْمَ يَجْمَعُكُمْ لِيَوْمِ الْجَمْعِ ۖ ذَٰلِكَ يَوْمُ التَّغَابُنِ ۗ

**پوه سه:** چي يوم يا منصوب دی په اذکر مقدر پوري يعني مفعول به دی وهذا الوجه هو المشهور في کل ظرف وقع في الابتداء او يا ظرف دی د مضمون د "بما تعملون خبير" (چي مضمون يې دا ؤ مجازئکم فالتقدير مجازيکم في ذالک اليوم او يا ظرف دی د لتبعثن "ليوم الجمع" چي جمع کيږي په هغه ورځ کي ملکي او انس او جن اولهم و آخرهم، او کلمه د لام لپاره د تعليل ده، والمعنى يجمعکم لاجل ما يکون في يوم الجمع من الحساب والجزاء.

**پوه سه:** چي تغابن باب د تفاعل دی مجرد يې غبن دی چي معنی د مجرد يې خطايسل د يو چا دي په يو عقد کي بالاخفی، او د تفاعل معنی يې دا ده چي خطايستل يو د بل سره چي په دې ورځ کي به مظلوم ته حسنات د ظالم ورکړل سي په قدر د ظلم د هغه، او مؤمنان به ځايونه د کافرانو او اشقياؤ اشغال کړي چي دا کافران سعداء او مؤمنان وايي، دا لفظ دلته مستعار دی من تغابن التجار بعضهم لبعض او الف او لام په التغابن کي لپاره د عهد دی ای التغابن الحقيقي دون التغابن الدنيوي، په صحيح حديث کي چي روايت يې عبد الرزاق او عبد بن



Scanned by CamScanner

حميد او ابن جرير او الحاكم ﷺ کړی دی له ابو هريرةﷺ څخه قال قال رسول اللهﷺ يرثون (اى المؤمنون) مساكنهم.

**درويش وايي:** چي اطلاق د يرثون پر خپلو ځايو مشاكلة دى لما بعده ومساكن اخوانهم (مراد له اخوة څخه اخوة دى په انسانيت كي فقط لا الاخوة الديني) يعني الاشقياء التي اعدت لهم لو اطاعوا الله.

واخرج سعيد بن منصور وابن ماجه وابن جرير وغيرهم بسند صحيح عن ابى هريرةﷺ قال قال رسول اللهﷺ ما منكم من الاوله منزلان منزل في الجنة (يعني كه دى مؤمن واى) و منزل في النار (كه دى كافر واى) فاذا مات فدخل النار ورث اهل الجنة منزله، نو دا معنى دده قول د خداى عزوجل اؤلئك هم الوارثون.

**فائده:** مراد له مؤمن او كافر څخه يوازي امت د رسول اللهﷺ نه دى، ولي مؤمن او كافر حصر په امت كي د رسول اللهﷺ نه دي بلكي مراد مؤمنان او كافران د ټولو امتو دي.

**سوال:** په حديث شريف كي خو منكم راغلى دى چي خطاب و امت ته د عليه الصلوة والسلام دى؟

**ځواب:** دا تعبير مبني دى پر تغليب د حاضر پر غائب بالذي فافهم.

وروى مسلم والترمذي عن ابى هريرةﷺ قال قال رسول اللهﷺ تاسي خبر ياست چي مفلس په تاسي كي څوک دى؟ دوى ورته وويل چي مفلس په موږ كي هغه څوک دى چي لا درهم له (ولا دينار) ولا متاع، قال رسول اللهﷺ چي مفلس زما د امت هغه څوک دى يأتي يوم القيامة بصلوة وصيام و زكوة لكن بښكنځل يې كړي وي يوه سړي ته وقذف هذا وسفک دم هذا (نسبت د زنى يې كړى وي چا ته چي ته زنى كاره يې، يا يې ويني بيولي وي د چا په قتل سره) او يو بل سړى يې وهلى وي فيعطى هذا من حسناته وهذا من حسناته او تمامي سي نېكۍ دده قبل ان يقضى ما عليه اخذ من خطاياهم (اى المظلومين) وطرحت عليه ثم طرح في النار. وفي الحديث الصحيح لا يلقى الله احد (يعني يوم القيامة) الا نادمًا (مګر د دنيا پر ژوند به پښېمانه وي) ان كان مسيئًا (نو پر دې به پښېمانه وي چي تا ولي د محسن كارونه كول) او كه محسن وي پر دې به پښېمانه وي چي د بر ښه كارونه دي ولي نه كول.

بعض علماء وايي چي سخت د خلګو په غبن کي دي (١) عالم علم الناس: نو خلګو د ده په علم عمل کاوه او ده په خپله عمل نه په کاوه نو فدخل غيره بعلمه الجنة وهو اذ لم يعمل بعلم دخل النار .... بيت:

واعظان كه اين جلوه در منبر و محراب ميكنند
چــون بخلوت ميروند كارى ديگران ميكنند

(٢) هغه مريى دى چي د خداى عبادت يي كاوه په نفقه د مال د ده د بادار و عصى الله سيده فدخل العبد الجنة بقوة مال سيده و دخل مالكه النار بمعصية الله.

(٣) ولد ورث مالاً من ابيه نو ده كارونه په هغه مال كول من اطعام لابن السبيل وصلة الرحم والزكوة وغيره فدخله الله الجنة وابوه كان شحيحًا (حريصًا اى بخيلاً) وعصى الله في ماله يعني زكوة يي نه وركاوه او صلة الرحم يي نه كوله الى غيره من افعال الخير فدخل النار ببخله.

وَمَنْ يُّؤْمِنْۢ بِاللّٰهِ وَيَعْمَلْ صَالِحًا يُّكَفِّرْ عَنْهُ سَيِّاٰتِهٖ وَيُدْخِلْهُ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَآ اَبَدًا ؕ

او څوک چي ايمان لري پر خداى (چي خالق العالم خداى سته) او متوحد دى في ذاته و صفاته، او عمل صالح كوي من الفرائض و الواجبات وغيرها هم كوي خداى به و بخښي و ده ته بعض ګنهونه چي له ده څخه صادر سوي وه، او داخل به يي كړي و جنتو ته (المراد به الجنس) چي بهيږي به لاندي تر درختو د هغو جنتو ويالي (يعني څلور) عسل مصفى وماء غير آسن و لبن خالص و خمر لا لغو ولا تأثيم لذة للشاربين، چي تل ترتله به وي دوى په د غه جنتو كي ابدًا بلا موت ولا هرم.

ذٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ۝٩

دغه (اى مجموع الامور المذكورة) كاميابي ده لويه، اللهم اجعلنا منهم.

وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَكَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَآ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ؕ وَبِئْسَ الْمَصِيْرُ ۝١٠

او هغه چي كفر يعني انكار كوي او تكذيب كوي زموږ په اياتو سره يعني دروغ يي بولي زموږ آيتونه (يعني آيتونه د قرآن عزيز) دوى اصحاب د اور دي

همېشه به وي په اور کي (د فيها ضمير راجع دی نار ته چي مؤنث سماعي دی) او بد ځای دی د ورتلو، مخصوص بالذم محذوف دی ای النار.

**درويش وايي:** چي کافرانو به ويل چي که مسلمانان پر دين حق وای نو ولي به دوی ته مصائب رسېدله يعني ناجوړي د بدن يا مرګ د اولادو يا فقر او مسکنت، فنزلت هذه الاية.

## مَآ اَصَابَ مِنْ مُّصِيبَةٍ اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ

لفظ د من زائد دی لپاره د استغراق د نفي دی نو لفظ د مصيبة که څه هم لفظًا مجرور دی په من جاره سره لکن مصيبة محلاً مرفوع دی فاعل د اصاب دی يعني نه رسېږي مصيبت هيڅ چا ته که مؤمن وي او که کافر وي مګر نه په تقدير او ارادې د خدای عزوجل.

## وَمَنْ يُّؤْمِنْۢ بِاللّٰهِ يَهْدِ قَلْبَهٗ ؕ وَاللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ۝١١

او څوک چي ايمان لري پر خدای ؒ او تصديق لري چي ما اصاب من مصيبة الا باذن الله او پر دې يې ايمان وي ان ما اصابک لم يکن ليخطئک وما اخطائک لم يکن ليصبک ... بيت:

تړوله اندازه د خير او شر بوله له خدايه څخه
کله پېښېږي نېک او بد د خپلي رايي څخه

"يهد قلبه" خدای ؒ به هدايت وکړي د ده زړه ته (يعني توفيق به ورکړي د صبر او د رضا په قضاء الهي سره او تسليم به سي د خدای ؒ و قضاء ته) او الله په هر شي سره عليم او باخبر دی حتی د زړه په حالاتو سره، د ابن الديلمي ؒ څخه روايت دی قال اتيت الی ابی بن کعب ؓ فقلت قد وقع في قلبي (يعني الوسوسة) في قدر الله فحدثني لعل الله يذهب عن قلبي، فقال ان الله لو عذب اهل سمواته (يعني الملائکة) واهل ارضه (يعني الانس والجن) عذبه وهو غير ظالم، ولو رحمتهم لکان رحمته خيرًا لهم من اعمالهم، ولو انفقت مثل احد ذهبًا في سبيل الله ما قبله الله منک حتی تؤمن بالقدر (يعني من الله بالقدر) وتعلم ان ما اصابک لم يکن يستخنک وما اخطاک لم يصيبک ولو مت علی غير هذه الحالة دخلت النار، ثم ايت ابن مسعود ؓ قال مثل ذالک قال ثم اتيت حذيفة بن اليمان ؓ فقال مثل ذالک ثم اتيت زيد بن ثابت ؓ

فحدثني ذالک عن النبي ﷺ، رواه احمد وابو داؤد وابن ماجه.

وَأَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ

او تاسي اطاعت کوئ د خدای او د رسول، يعني چي په هر شي مو امر کړي او يا مو له هر شي څخه نهي کړي.

فَإِن تَوَلَّيْتُمْ فَإِنَّمَا عَلَىٰ رَسُولِنَا الْبَلَاغُ الْمُبِينُ ﴿١٢﴾

او که تاسي اعراض وکړئ له اطاعت څخه د خدای ؏ او د رسول، نو په تحقيق زما پر رسول باندي دی (يعني پر محمد ﷺ) رسول د امر الله په ښکاره ډول، يعني ستاسي روی گرداني ضرر نه رسوي و محمد ﷺ ته هيڅ شی اذ ليس الواجب عليه الا التبليغ و وقد فعل.

اللَّهُ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ ۚ وَعَلَى اللَّهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُونَ ﴿١٣﴾

لفظ الله مبتداء ده وروسته جمله يې خبر دی، والمعنى نسته معبود مگر الله عزوجل لا استقلالاً و لا اشتراكًا.

**پوه سه:** چي جمله په ځای کي علت ده د امر بالايمان والطاعة، او تقديم د جار او مجرور لپاره د حصر دی. يعني خاص پر خدای ؏ توکل کوي مؤمنان، ولي چي په دمخه ايتو کي تقدير د خير او شر پر خدای ؏ حصر ؤ وجب حصر التوکل عليه دون غيره، اخرج الترمذي والحاكم عن ابن عباس ؓ ان رجالاً من اهل مكة اسلموا، نو دوی اراده د هجرت وکړه يعني مديني ته لان الهجرة كان فرضًا على مؤمني اهل مكة نو د هجرت د هغو ماينې او عيال يې مانع سوله، البغوي ؒ وايي چي ازواجو او اولادو دوی ته يې وويل چي موږ صبر وکړی ستاسي پر اسلام ولا نصبر على فراقكم فتركوا الهجرة، فنزلت.

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنَّ مِنْ أَزْوَاجِكُمْ وَأَوْلَادِكُمْ عَدُوًّا لَّكُمْ فَاحْذَرُوهُمْ ۚ

ای هغه کسانو چي ايمان يې راوړی دی ای ايمانًا خالصًا من النفاق په تحقيق بعض ستاسي د ازواجو او اولادو څخه ستاسي دښمنان هم دي چي له طاعت څخه د خدای عزوجل تاسي منع کوي لکه په دې ځای کي هجرت و مديني منورې ته، که څه هم ظاهري عداوت خو نه لري لکن لا عدو اقبح من الشخص الذي يمنع المرء من طاعة الله.

**پوه سه**: چي کلمه د من لپاره د تبعيض ده، ازواج جمع ده نر او ښځي دواړو ته شامل دی، بعض عوام الطبع ملايان وايي چي نر ته زوج وايي او ښځي ته زوجه وايي ويرده هذه الآية وقوله تعالى يا آدم اسكن انت و زوجک الجنة چي مراد ځني حوا ده، اولاد جمع ده زوی او لور دواړو ته وايي بخلاف الابن والبنت.

**فائده**: ازواج يې مقدم راوړتر اولاد يا له دې سببه چي ازواج اصول دي د اولاد يا له دې سببه چي ازواج محل د قضاء شهوت طبعي دي نو دوی جفت بقلوب الناس واشغل دي د زوج له عبادت ځخه، له هم دې سببه يې دوی د مخه کړه کريمه: زين للناس حب الشهوات من النساء الآية، وجاء في الحديث ليس عدوک الذي لقيته فقتلته واجرک الله (يعني الكافر) لكن عدوک (يعني اصل دښمن) نفسک التي بين جنبيک (يعني چي ستا سره هر ځای ملګري دي) وامرئتک التي تجاورک على فراشک "فاحذروهم" نو د دوی ځخه بېرېږئ چي منع د طاعت ځخه مو نه سي.

**سوال**: ضمير د جمع چا ته راجع دی؟

**ځواب**: عدو ته راجع دی فانه يطلق على الجمع ايضًا.

**حکايت**: تاريخ وايي چي د خسرو پرويز بادشاه د ماهي غوښي ډېري خوښي وې، نو راوي وايي چي يوه ورځ خسرو د خپلي مايني سره چي نوم يې شيرين وُ په ايوان بالاکي ناست وُ چي يو ماهي ګير دومره غټ ماهی راوړی چي تر دغه وخت د مخه پرويز نه وُ ليدلی، نو پرويز ته يې ډېر خوند ورکړی، نو پرويز ماهي ګير ته ځلور زره درهمه انعام نوشته کړی چي ورسه د بانک محلي ځخه يې واخله، ماهي ګير چي د بانک و خوا ته راهي سو، شيرين ورته وويل: بئس ما صنعت، ولي تر دې وروسته که ستا وزير يو لوی خدمت وکړي په ځلور زره درهمه نه خوشحال کېږي، ولي وزير به وايي چي دا خو دي د ماهي ګير انعام راکړی، خسرو ورته وويل صدقت (رښتيا دي وويل) لکن د بادشاهانو سره دا مناسبه نه ده چي خپله پېرزوينه او انعام د چا ځخه بيرته واخلي، شيريني ورته وويل چي تر اوسه يې د بانکه روپۍ نه دي اخستي بيرته يې را وغواړه او ورته ووايه چي ستا دغه ماهي نر دی او که ښځه ده، که يې ښځه ياده کړه ورته ووايه چي زما خو د نر ماهي غوښي خوښي وې بار کړه خپل ماهی دي رقعه د بانک ځني واخله، او که

بالعکس یعني که یې درته وویل چې نر ماهي دی هم ورته خبره ورته وکړه، نو خسرو دستي عسکر پسې راهی کړی ماهي ګیر یې راوګرځاوه او هغه خبره د شیرینې یې ورته وکړه، ماهي ګیر ورته وویل چې دا ماهي نر بنځی دی خسرو وخندل پر مکتوب یې څلور زره درهمه نور ور نوشته کړه، نو ماهي ګیر اته زره درهمه په یوې ګوني یا په هغه تبره کې چې ماهي یې پکښې راوړی ؤ واچول په شا یې کړه د وتلو اراده یې وکړه خپله پلنده یې په شا کړه، نو یو درهم له بوجې څخه ولوېدی، نو ماهي ګیر پلنده کښېښول او درهم یې راواخستی او بادشاه او شیرنه ورته ګوري، نو شیریني ملک ته وویل چې ته نه ګورې دې خبیث سړي ته چې د یوه درهمه لپاره یې د اتو زرو درهمو غوټه کښېښول او ور کوږ سو هغه یو درهم یې را واخستی، ولي یې نه پرېښاوه چې یو بل فقیر اخستی وای، نو ملک ته درد ورغلی او وه یې ویل لقد صدقت یا شیرین، بالفور یې عسکر پسې راهي کړی چې ورسه صیاد حاضر کړه، صیاد چې یې راوستی پرویز الملک ورته وویل یادني الهمة لست بانسان ما هذا الحرص، څومره حرص د دنیا اخستی یې پر یوه درهمه دې غوټه کښېښول، صیاد ورته وویل چې زه د یوه درهم وړی نه وم، بلکې ددې لپاره مې را پورته کړی چې پر یوه مخ د درهم د ملک عکس ؤ او پر بله خوا د ملک نوم ؤ، نو زه پر دې وېرېدم چې یو سړی په ناخبرتیا پښه پر کښې نږدي د ملک اهانت به وکړل سي، فتعجب خسروا الى كمال عقل الصياد فامر باربعة الاف اخرى وكتب وصية لرعيته، لا تطيعوا النساء اصلا ولا تعملوا برأيهن.

روى الترمذي والحاكم عن ابن عباس رضي الله عنهما چې هغه کسان چې ماینو او اولادو دوی له هجرت څخه منع کړي وه، وروسته چې مدینې ته راغله نور مهاجرین چې تر دوی د مخه یې هجرت کړی ؤ بنه احکام د دین او فقاهت یې حاصل کړی ؤ، نو هغه وروسته مهاجرینو اراده وکړه چې ازواجو او اولادو ته چې دوی یې د هجرت څخه منع کړي وه عقاب ورکړي، فانزل الله تعالى.

وَإِن تَعْفُوا وَتَصْفَحُوا وَتَغْفِرُوا فَإِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿١٤﴾

که تاسي عفوه وکړي خپلو ماینو او اولادو ته چې تاسي یې له خیر کثیر څخه د هجرت منع کړي واست، او سرزنش او منت نه پر وکړئ او ورو بخښئ ګناه د

دوی، نو په تحقیق خدای گناه بخښونکی او مهربان دی پر تاسي به خدای رحم وکړي او بخښنه به درته وکړي.

**درويش وايي**: چي ابن جرير له عطاء بن يسار څخه روايت کړی دی چي سورة التغابن ټوله مکي دی مګر نه دا وروسته آيتونه تر اخيره پوري د سورت دا په مدينه منوره کي نازل سوي دي په باره کي د عوف بن مالک الاشجعي رضي الله عنه وکان ذا اهل (يعني زوجة) و اولاد چي عوف به اراده د غزاء وکړه ماينې او عيال به يې ورته ژړل او داسي به يې ورته ويل الى من تدعونا موږ چا ته پرېږدې دده به زړه پر وسو او له غزاء څخه به پاته سو، فنزلت هذه الآيات.

**فائده**: الحطيئة چي يو معروف شاعر دی د سفر اراده يې وکړه، نو ماينې ته يې دا بيت نوشته کړی:. عدى السنين لغيبتي وتصبري... شمېره ای ښځي د پره کلونه د غائب والي زما او صبر کوه. ماينې يې داسي جواب ورکړی:

و اذكر صبابتنا اليک وشوقنا ..... و ارحم بناتک انهن صغار

ته در پياد کړه محبت زموږ له تا سره او زموږ شوق، او رحم وکړه پر لوڼو خپل چي کوچنياني دي.

**إِنَّمَآ أَمْوَٰلُكُمْ وَأَوْلَٰدُكُمْ فِتْنَةٌ ۚ وَٱللَّهُ عِندَهُۥٓ أَجْرٌ عَظِيمٌ**

په تحقيق سره اموال ستاسي او اولاد ستاسي فتنه دي (يعني امتحان دی د خدای له خوا څخه او ابتلاء ده، نو څوک حقوق د خدای او حقوق د خلکو پر ځای کړئ مع كثرة العلائق والموانع بعثه الله تعالى على منازل الابرابر وكان افضل ممن ادى حقوق الله تعالى بلا موانع و عوائق) او الله عزوجل لوی اجر لرونکی دی، نو تاسي طلب د اجر عظيم کوئ وآثروا محبته على محبة الاموال و الاولاد والسعي لهم.

**درويش وايي**: چي چونکه طاعت د خدای عزوجل مع العوائق والموانع افضل دی تر طاعت د خدای بدون العلائق والموانع والعوائق اجمع اهل السنة والجماعة على ان خواص البشر ای الانبياء عليهم السلام افضل دي من خواص الملائكة وعوام البشر اعني العلماء والصلحاء افضل من عوام الملائكة سبب يې دا دی چي ملکو لره عائق او مانع نسته من طاعة الله تعالى يعني لکه شغل د ملکو بالاموال و الاولاد و اداء الحقوق، او دغه رنګه ملکي باعثه کونکي پر

معاصيو يعني النفس والشيطان نه لري او پر تناول د حرام نه لري.

**فائده:** ذكر الله سبحانه وتعالى الازواج والاولاد او هوري يې كلمة د من تبعيضي راوړه لان بعض الازواج والاولاد ليسوا عدوًا للمؤمنين او في كونهم فتنة او دلته په دې ايت كې انما اموالكم آه كلمه د تبعيض نه ده راوړي لان الاموال والاولاد لا يخلوا عن اشتغال القلب بهم، اخرج ابن ابى حاطم عن سعيد بن جبير رحمه الله لما نزل قوله تعالى اتقوا الله حق تقاته اشتد على الصحابة الكرام رضي الله عنهم نو دوى دومره پر نوافلو لمونځو د شپې او ورځې مقيم سوه چې پښې يې و پړسېدلې د طول القيام له سببه او تنديان يې زخمي سوه د كثرة السجود له كبله، فانزل الله تعالى تخفيفًا للمسلمين هذه الآية.

فَاتَّقُوا اللّٰهَ مَا اسْتَطَعْتُمْ وَاسْمَعُوْا وَاَطِيْعُوْا وَاَنْفِقُوْا خَيْرًا لِّاَنْفُسِكُمْ ۗ

عطف على آمنوا و اطيعوا، كلمه د فاء لپاره د سببيت ده لان الايمان سبب للتقوىٰ ومعنى الآية چې په عبادت كې او په تقوىٰ كې خپل طاقت پر كار واچوي، كريمه: لايكلف الله نفسًا الا وسعها "و اسمعوا" مواعظ القرآن والرسول عليه الصلوة والسلام "و اطيعوا" او امره سبحانه "وانفقوا" يعني اموالكم في سبيل الله خالصة لمرضات الله عزوجل "خيرًا لانفسكم" منصوب دى په فعل مقدر سره اى افعلوا ما هو خير لانفسكم من اموال و اولاد، نو دا ايت تاكيد دى پر باعثه كولو پر امتثال د ما سبق من الاوامر فافهم وتذكر.

وَمَنْ يُّوْقَ شُحَّ نَفْسِهٖ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ۝

او هغه څوک چې وساتل كړه سي (يوق صيغه د مجهول ده) يعني خداى يې وساتي و يعصمه د بخل څخه د نفس خپل چې يو رزيل خوى او ملكه ده چې په خټه كې د هر انسان سته الا من عصمه الله، نو دغه كسان فائزون دي بكل مرام. وفي الحديث الصحيح كفى بالمرء من الشح ان يقول آخذ حقي لا اترك منه شيئًا، ترجمه: كافي ده سړي لره د بخل څخه دى وايي چې زه خپل حق غواړم نه پرېږدم خپل د حق هيڅ شى.... شعر:

فرومانده گانرا درون شاد كن .... ز روز فرومانده گى ياد كن
نخواهندهٔ بر در ديگران .... بشكرانه خواهنده از در مران

إِن تُقْرِضُوا اللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا يُضَاعِفْهُ لَكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ

**درویش وایي:** چي چونکه خداوند متعال بقرض محتاج نیست، نو ترجمه د آیت دا ده بحذف المضاف ای تقرضوا عباد الله، او المراد به صرف المال في طاعة الله رجاء الثواب والجزاء "قرضًا حسنًا" یعني مقرونًا بالاخلاص وطیب نفس چي د ریاء او سمعه څخه خلاص وي او د من او اذیٰ څخه هم خلاص وي (او د احسان اچولو څخه پر فقیر او زیرولو څخه د فقیر هم خلاص وي)

**پوهه:** چي قرضًا حسنًا منصوب مفعول دی د تقرضوا.

"یضاعفه لکم" خدای به مضاعف کړي دغه قرض ستاسي من عشر الی سبع مائة الی ما شاء الله تعالی قال الله عزوجل في کتابه الکریم: مثل الذین ینفقون اموالهم في سبیل الله یعني یا په جهاد کي د کافرانو سره یا یې فقیر ذا متربة ته ورکړي یا یې یتیم ذا مقربة ته ورکړي الی غیر ذالک من وجوه الخیر "کمثل حبة" (دا حبه د ایږدن تخم دی یا د باجري دانه ده) "انبتت سبع سنابل في کل سنبلة مأة حبة (اووه اوږي په هر وږي کي سل داني چي مجموع یې اووه سوه کېږي) والله یضاعف لمن یشاء (یعني الی ماشاء الله تعالی)

"ویغفر لکم" او تاسي ته به بخښه د ګنهو وکړي په برکت د انفاق.

وَاللَّهُ شَكُورٌ حَلِيمٌ ﴿١٧﴾ عَالِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴿١٨﴾

یعطی الجزیل بالقلیل "حلیم" حلم لري چي تلوار په عقوبت کي د عاصي نه کوي، عالم الغیب دی یعني علم کامل لري پر هغو شیانو چي د بندګانو څخه پټ وي یا دوی ته ښکاره وي، او یا معنی دا ده چي هغه شیان موجود في الحال و ما وجد من قبل یا ما سیوجد من بعد "العزیز" الغالب التام القدرة لا مانع لما اراه تعالی "الحکیم" په هر مخلوق کي حکمت لري یعني عبث بلا فائده کار خدای نه کوي که یې څه هم په حکمت څوک نه پوهېږي.

قد تم سورة التغابن بفضله تعالی وقت الظهر (۵) بجه یوم الاثنین ولله الحمد والمنة والصلوة والسلام علی خیر البریة وآله وصحبه البررة وتسمی سورة النساء القصری کما في روح البیان و روح المعاني.

سورة الطلاق مدنية وهي اثنا عشرة آية وفيه ركوعان بسم الله الرحمن الرحيم

يٰأَيُّهَا النَّبِيُّ إِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَاءَ فَطَلِّقُوهُنَّ لِعِدَّتِهِنَّ

**في هذه الآية مباحث** (۱) ندا یې خاصه کړه په علیه الصلوة والسلام پورې او خطاب د حکم یې عام کړی یعني "طلقتم" سِر (راز) یې څه دی؟

**جواب:** لانه ﷺ امام امته، داسې مثال یې دی لکه یو سړی یعني یو حاکم چې ناري کړي رئیس ته د قوم یا فلان افعلوا کذا وکذا چې په دې کې اظهار د ریاست او د التقدم دده دی، او اشاره ورته ده چې دی یوازې په حکم کې د ټولو دی ولهذا اختیر لفظ النبي، ولې لفظ د نبي دلالت پر علو کوي ففیه علو مرتبته ﷺ، او بعض مفسرین وايي چې نداء او خطاب دواړه و علیه الصلوة والسلام ته دی الا انه اختیر لفظ الجمع للتعظیم. او بعض مفسرین وايي چې په ایت کې تقدیر د قوم دی، فالمعنی والتقدیر یا ایها النبي قل لامتک اذا طلقتم وقیل غیر ذالک.

(۲) او مراد له ښځو څخه هغه ښځې ذوات الاقراء یعني چې عده یې په حیضو سره وي چې حامل ځنې ووزي ولې چې عده د هغې په وضع الحمل سره ده، او آیسه چې سپینې سرې وي حیض یې قطع سوې وي یا صغیره چې حیض نه وي ورغلی ولې د دوی دواړو عده په درې میاشتو سره ده.

(۳) د آیت تقدیر داسې دی اذا اردتم تطلیق النساء تا چې فطلقوهن جواب صحیح سي فهذه الآیة من قبیل قوله تعالی اذا قمتم الی الصلوة فاغسلوا وجوهکم الآیة ای اردتم الصلوة فاغسلوا الآیة.

**درویش وايي:** چې مذکور بیان له دغو تفاسیرو څخه مأخوذ دی، تفسیر روح المعاني للعلامة محمود البغدادي" والکشاف للعلامة زمخشري" و روح البیان للعلامة اسماعیل البروسوي" والعلامة ثناء الله الپاني پتي" وبحر العلوم للعلامة السمرقندي" فتذکرها.

"فطلقوهن لعدتهن" په نیز د حنفیه ؤ د آیت معنی داده مستقبلات لعدتهن متوجهات للعدة چې په نیز د حنفیه" درې حیضه دي فاللام متعلق بمحذوف دل علیه الکلام، روح البیان لاستقبال عدتهن.

**درویش وايي:** چې د استقبال د عدة صورت دا دی چې سړي ماينه په طهر کي نه وي وطي کړي طلاقه يې کړي، وروسته به اول حيض ورسي بيا دوهم بيا دريم نو د مېړه څخه خلاصه سي، دا احسن طلاق دی او د سنت سره برابر دی، ولي که مېړه وروسته تر يوه يا دوو حيضو پښېمانه سو پر طلاق رجوع به ورته وکړي او كه پښېمانه نه سو دريم حيض ته يې پرېږدي ښځه پر خپله لاره ځي، ولي که درې طلاقه دفعةً ورکړي بيا پښېماني فائده نه کوي بلکې تزويج د زوج آخر غواړي او وطي د هغه او بيا طلاق د زوج ثاني بيا د هغه عده تېرول.

**پوه سه:** چې طلاق بدعي پر څلور قسمه دی (۱) ان يطلقها في طهر جامعها فيه د دې سببه چې ده جماع ورسره وکړې دې ته دا نه معلومېږي چې زما عده په وضع الحمل سره وي که ما حمل اخستی وي او که به په حيضو سره وي که مي حمل نه وي اخستی (۲) طلاق يا په حيض يا نفاس کي ورکړي لما فيه من تطويل العدة پر مذهب د حنيفيانو، ولي چې د غه حيض چې مېړه طلاق پکښې ورکړی په عده کي نه دی حساب (۳) دا چې درې طلاقه په طهر واحد کي دفعةً ورکړي يا يې متفرقًا ورکړي يعني په يوه طهر کي.

**فائده:** منشاء د اختلاف د حنيفيانو او شافعيانو دا ده چې لفظ د قرء مشترک دی په مابين کي د طهر او د حيض، نو حنيفيه وايي چې معنی يې حيض دی د دوی پر مذهب چې سني طلاق يعني چې په طهر کامل کي يې ورکړي تطويل يا تنقيض د عدې نه راځي ولي چې درې حيضه پر له پسې به تېر کړي د مېړه څخه به خلاصه سي او د شافعيه پر مذهب تطويل يا تنقيص خامخا لازمېږي ولي طلاق سني چې د دوی په نېز هم دا دی چې په طهر کي يې ورکړي، نو د غه طهر چې څو ورځي وتلي وي دا حساب دی په عده کي نو عده د ښځي درې طهره پوره نه سوه بلکې طهرين و بعض طهر وهو الذي اوقع الزوج فيه الطلاق او که دا طهر حساب نه سي نو د ښځي عده اوږده سوه يعني ثلاثة اطهار و بعض طهر کما لايخفی فافهم.

وَأَحْصُوا الْعِدَّةَ ۖ وَاتَّقُوا اللَّهَ رَبَّكُمْ ۖ

ښه حساب ورته کوئ او په حفظ کي يې نسئ چې درې حيضه پوره سي کامل (دا د دې لپاره چې رجوع ورته ونه کړي دده په ګمان عده پاته ده او سره دد چې عده

په تېره سوې وي يا ښځه قبل انقضاء العدة بل مېړه ونه کړي چې دا دواړه کاره ناروا دي او ناجائز دي شرعًا) او وېرېږئ د خدای نه. دا خطاب دی و مړو ته چې پر مطلقه عده مه اوږدوئ او ماينې ته ضرر مه رسوئ، لکه په جاهليت کې چې دا عادت وُ چې ماينه به يې طلاقه کړه يو طلاق چې عده به يې تېرېدو ته نژدې سوه قولاً به يې رجوع ورته وکړه، بيا به يې بو طلاق ورکړی چې عده به يې نژدې سوه په قول به يې رجوع ورته وکړه بيا به يې طلاقه کړه چې د ښځې به درې قروء نهه قروء وګرځېدله.

## لَا تُخْرِجُوهُنَّ مِنْ بُيُوتِهِنَّ وَلَا يَخْرُجْنَ

تاسي مه باسئ دغه مطلقات ماينې که په رجعي طلاق طلاقي وي او که په بائن طلاق طلاقي وي "من بيوتهن" له خپلو خونو څخه چې په وخت کې د طلاق دوی پکښې وي (وهي بيوت الازواج حتى چې عدة يې پای ته ورسېږي) "ولايخرجن" او دوی دي په خپل اختيار هم نه وزي.

**فائده:** له دې آيت څخه دا ثابته سوه چې مطلقات که رجعيه وي او که بائنه وي د مېړه له کوره به نه وزي ليلاً ولا نهارًا الا بضرورة مثلاً ناجوړې وه طبيب ته ووتل لان الضرورات مثنات في العبادات شرعًا لان الضرورات تبيح المحذورات، والضرورات على اقسام (۱) مثلاً هغه خونه چې مطلقه پکښې اوسېدله ونړېدله (۲) خوف السرقة (۳) وجدان كراء البيت (۴) او يا خونه تنګه وه چې دا او مېړه په خونه کې اوسېدله (۵) يا يې مېړه فاسق وُ او طلاق بائن وُ ښځه پر دې بېرېدله چې د شپې به ناجائزه وطي راسره وکړي، ولم يكن في الدار قادرًا على الحيلولة بينهما او نحو ذالک.

**مسئله:** چې د ښځې مېړه مړ سي او دا په عده کې وي يجوز لها الخروج من بيت نهارًا (د ورځې) ولا يجوز ليلاً. البغوي" وايي چې په احد کې چې ډېر شيهدان وسوه نو د هغو زوجات و عليه الصلوة والسلام ته راغلې چې موږ يوازي په خونو کې بېرېږو نو عليه الصلوة والسلام دوی ته اجازه ورکړه چې تر وخته پورې د خوب ټولې په يوه خونه کې مجلس سره کوئ چې د خوب وخت راسي هره يوه دي خپلې خونې ته ولاړه سي.

## إِلَّا أَنْ يَأْتِينَ بِفَاحِشَةٍ مُبَيِّنَةٍ

مګر راتک وکړي په بد کار سره چې ښکاره وي چې مراد ځني زنا ده، قال ابن مسعود الفاحشة الزنى نو معتدة دي له کورو باسي لاقامة الحد بيا دې بيرته

کورته راولي، وقال ابن عباس الفاحشة المبينة دا ده چي معتدة و اقرباؤ ته د زوج پوچ و رد او شرارت پر کار واچوي فيحل اخراجها.

**پوه سه:** چي دا ستثناء مفرغ ده په محل کي د ظرف ای لاتخرجوهن في وقت الاوقات الا وقت ان يأتين بفاحشة مبينة قال ابن عمر والسدي و ابراهيم النخفي يجوز للفاحشة اخراجها من بيتها قبل انقضاء العدة وبه اخذ ابو حنيفة بقول ابن مسعود اخذ ابو يوسف.

وَتِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ ؕ وَمَنْ يَّتَعَدَّ حُدُوْدَ اللّٰهِ فَقَدْ ظَلَمَ نَفْسَهٗ ؕ

او دغه احکام مذکوره احکام د خدای دي او څوک چي تجاوز وکړي تر حدودو د خدای نو په تحقيق ده ظلم وکړی پر خپل ځان چي خپل ځان يې و عقاب ته د خدای عزوجل پيش کړی.

لَا تَدْرِيْ لَعَلَّ اللّٰهَ يُحْدِثُ بَعْدَ ذٰلِكَ اَمْرًا ①

ته نه پوهېږې ايها المخاطب شايد خدای به پيدا کړي وروسته تر دې يو شی، دا جمله تعليل د احصوا العدة ولا تخرجوهن، والمعنى لعل الله بعد بغضها واراده فراقها والنفرة عنها في قلب زوجها محبتها والرغبة فيها نو به دوی پښېمانه سي پر طلاق باندي و تريدون الرجعة اليها.

فَاِذَا بَلَغْنَ اَجَلَهُنَّ فَاَمْسِكُوْهُنَّ بِمَعْرُوْفٍ اَوْ فَارِقُوْهُنَّ بِمَعْرُوْفٍ

چي د مطلقاتو عده پوره سي.

**پوه سه:** چي ضمير د هن راجع دی و خاصو مطلقاتو ته يعني المطلقات الرجعية ذكر الله سبحانه وتعالى حكم الفرد الخاص من المطلقات اى الرجعية وان كان الصدر عامًا للرجعيات والمطلقات البائنة ولا يبطل عموم الصدر، ومعنى بلوغ الاجل قرب انقضاء الاجل بدليل قوله سبحانه وتعالى "فامسكوهن" اى راجعوهن "بمعروف" يعني بدون قصد الاضرار بهن بتطويل العدة كما مر "او فارقوهن" يعني عده به يې تېره سي او ستا سره به يې علاقه د زوجيت قطع سي.

وَّاَشْهِدُوْا ذَوَيْ عَدْلٍ مِّنْكُمْ وَاَقِيْمُوا الشَّهَادَةَ لِلّٰهِ ؕ

او تاسي شاهدان ودروئ يا پر رجعت يا پر وقت د وه کسه عادلان ستاسي



Scanned by CamScanner

ښځه تا چي قطع د تنازع د مېړه او د مايني راسي په آئينده کي مثلاً مېړه به وايي چي ما تا ته رجوع په عده کي وکړه ماينه به وايي چي تا ما ته رجوع بعد المضي العدة کړې ده "واقيموا الشهادة لله" تاسي اداء کوئ اى شاهدانو شاهدي چي تاسي ور وبلل سئ و اداء ته يې لپاره د خداى يعني د چا مراعات مه کوئ په عدم اداء کي د شاهدى بلکې د خداى د حکم مراعات وکړئ.

**يوه سه:** چي امر اشهاد يې لپاره د استحباب دى لايشترط الشهود للرجعة عند ابى حنيفة ومالک واحمد وعند الشافعي في اصح قوليه وفي قول الشافعي يشرط الشهود وايضًا الامر للايجاب دى.

فائدة جديدة في ايجاب العدة على الرجال في بعض المواضع:

(۱) يوه دا ده چي يو سړي څلور مايني درلودې يوه يې طلاقه کړه، نو ده ته نه ده روا بله ماينه تر هغو چي د مطلقې عده نه وي تېره سوې، ولي قبل مضي عدة المطلقة خو مانيې پنځه کېږي لان المطلقة زوجته في العدة.

(۲) دوهم دا صورت دى چي يو سړي مايني ته طلاق ورکړى تر څو چي د هغې عده نه وي تېره سوې د هغې خور ورته نا روا ده لانه يلزم الجمع بين الاختين وهو حرام بالاجماع.

(۳) يوه مينځه يې رانيول ده ته يې وطي نا روا دي تر څو هغې ته حيض ورنه سي يعني چي دا معلومه سي چي مينځه حمل نه لري، ولي چي د بل پر کښت اوبه لګول نا روا دي شرعًا.

(۴) ان تزوج حربية يعني من اهل الكتاب لا يجوز له وطيها قبل الاستبراء بحيضة ودليله مامر في صورة: ۳.

(۵) يوې ښځي ته چي د يو چا ماينه وه خبر ورسېدى چي مېړه دې په فلاني تاريخ وفات سو مثلاً په سفر کي يا په غزاء کي او د هغه تاريخ ددې د وفات الزوج عده پوره سوې وه نو دې بل مېړه وکړى او له هغه څخه يې ولد هم پيدا سو، وروسته يې اول مېړه ژوندى راغلى، نو دا ښځه د اول مېړه ماينه ده لانها منكوحته او د دوى تر منځ کوم شى د فرقت نه دى راغلى يعني طلاق نو دا پر نکاح سابق پاته ده، لکن اول مېړه به يې وطي نه ورسره کوي چي د دوهم مېړه څخه يې عده تېره سوې نه وي.

**سوال:** په مذکوره سورت کې خو د دوهم مېړه نکاح فاسده ده نو عده څه کوي؟

**ځواب:** وجوب د عدې پر صحت د نکاح نه دی موقوفه اذا وطيها الزوج الثاني، فاحفظ هذه المسائل لوجوب العدة على الرجل.

ذٰلِكُمْ يُوعَظُ بِهِ مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ ۬ۙ

دغه مذکوره احکام چې بيان يې تېر سو (نو تذکير د ذا سره ددې چې احکام خو ډېر ذکر سوه په تأويل د مذکور دی) پند اخلي په هغو سره هغه کسان چې ايمان پر خدای په معبوديت او توحيد سره لري او پر ورځ د آخرت يې هم ايمان وي.

**درويش وايي:** چې احکام د قرآن که څه هم عام دي لکن نفع اخستونکي مؤمنان دي والمقصود تذکير المؤمنين، له ابن عباس رضي الله عنه څخه په صحيح سند روايت دی چې عوف بن مالک الاشجعي رض عليه الصلوة والسلام ته راغلی او وې ويل يا رسول الله زما زوی دښمنانو نيولی دی او مور يې ډېره بې صبري کوي وفي رواية اشتكى الى رسول الله ﷺ الفاقة (ای المسكنت ايضًا) فما تأمرني فقال ؒ زه تا او ماينه امر کوم چې ډېر وايا ست لا حول ولا قوة الا بالله، عوف ؒ چې ماينې ته راغلی و ماينې ته يې د عليه الصلوة والسلام خبره وکړه هغې ورته وويل چې په ښه شي يې امر کړی يې فجعلا يكثران ما علمهما رسول الله ﷺ څو ورځو وروسته چې دښمن دده غافل سو د هغو دښمنانو پسونه يې را په مخ کړه پلار ته يې راوستل، البغوي ؒ وايي چې څلور زره پسونه وه، فنزلت ومن يتق الله الآية، نو پلار يې ورغلی بيان د خپل زوی او د غنيمت راوړلو يې عليه الصلوة والسلام ته بيان کړی او دا پوښتنه يې ځني وکړه چې دا مال مور ته حلال دی، فقال النبي ﷺ نعم.

وَمَنْ يَّتَّقِ اللّٰهَ يَجْعَلْ لَّهٗ مَخْرَجًا ۙ وَّيَرْزُقْهُ مِنْ حَيْثُ لَا يَحْتَسِبُ ؕ

که څوک له خدايه وېرېږي په مصيبت کې (او په فقر او مسکنت او صبر کې او جزع او شکايت نه کوي او ارتکاب د حرام نه کوي لکه سرقه) وبه ګرځوي خدای ؒ ده لره ځای د وتو له هغه مصيبت او بلا څخه، او په رزق به ورکړي يعني بعد فقره رزقًا حلالاً، له داسي جهته څخه چې دده به ګمان نه کېږي لکه عوف بن مالک الاشجعي رض ته چې يې ورکړی، عن ابن مسعود رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ

من انزل به فاقة (که چا ته ورسېږي مسکنت او فقر) فانزل علی الناس (يعني يوه سړي ته وايي زه مسکين فقير يم او بل سړي ته وايي) لم يسد فاقته (دا مسکنت به يې پای نه کړي پيدا) ومن نزلت به فاقة فانزلها با الله (يعني خدای ته زاري کوي) فيوشک الله ان يرزق عاجلاً او اجلاً، رواه ابو داؤد والترمذي وقال حديث صحيح، وعن ابی هريرة ﷺ قال قال رسول الله ﷺ من جاع او احتاج فکتمه الناس واقضی به الی الله کان حقًا علی الله ان يفتح له قوت سنة من حلال.

الطبراني له حديث څخه د عقبة بن عامر ﷺ داسي روايت کړی دی من انعم الله عليه من نعمة (نو دی يې اراده د بقاء د دغه لري) فليکثر من قوله لاحول ولا قوة، او بخاري او مسلم له ابو موسیٰ الاشعري ﷺ څخه داسي روايت کړی دی انها (ای کلمة لا حول ولا قوة) کنز من کنوز الجنة، وفي رواية النسائي من قال لا حول ولا قوة الا بالله کان دواءً من تسعة وتسعين داءً (ای مرضًا) ايسرها الهم.

وَمَنْ يَّتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ فَهُوَ حَسْبُهٗ ۭ اِنَّ اللّٰهَ بَالِغُ اَمْرِهٖ ۭ

که څوک توکل وکړي پر خدای باندي خدای بس او کافي دی يعني په مهماتو کي که دنياوي وي او که اخروي وي، وعن عمر بن الخطاب ﷺ قال سمعت رسول الله ﷺ لو توکلتم علی الله حق توکله (يعني په زړه کي دده بېله خدايه بل څه نه ورګرځي) لرزقکم کما يرزق الطير (چي له خپلي ځالګی څخه سهار ووزي وږی وي ماښام چي راسي موړ وي، رواه الترمذي.

**درويش وايي:** چي د توکل علی الله معنی دا نه ده چي سړی کسب، تجارت او مزدوري نه کوي او کښېنت دي هم نه کوي، بلکې معنی يې دا ده لکه علامه جلال الدين الرومي چي په مثنوي کي وايي ولنعم ما قال:

گر توکل ميکنی در کار کن ...... کشت پس تکيه بر جبار کن
رمز الکاسب حبيب الله شنو ...... از توکل در سبب کاهل مشو

په حديث صحيح کي راغلي دي چي يو سړی مسافر و عليه الصلوة والسلام ته راغلی، عليه الصلوة والسلام پوښتنه ځني وکړه چي پر څه شي سپور راغلې، هغه ورته وويل چي پر اوښ عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي اوښ دي څه په وکړه، هغه ورته وويل چي ايله مي کړی پر توکل د خدای عليه الصلوة والسلام

ورته وويل چي ورسره زنګون يې ورو تړه بيا يې پر توکل د خداى پر پرېږده، او كما قال رسول الله ﷺ، حاصل د كلام دادي چې داني د غنمو وغيره په مځكه كي وپاشه او حسب المعمول يوې يې كړه ماله پر تړه كړه، بيا به دي په زړه كي داوي چي منبت خداى عزوجل دى ليس الا الله.

"ان الله بالغ امره" په تحقيق خداى جلت قدرته رسوي خپل امر موافق د مايريد سره، يعني لا يفوته مراده ولا يرد قضائه، مسروق وايي چي معنى د ايت دا ده ان الله بالغ امره توكل عليه او لايتوكل غير ان المتوكل عليه تعالى رژوي خداى يعني وربخښي به ګناهونه دده ويعظم له اجرًا.

قَدْ جَعَلَ اللّٰهُ لِكُلِّ شَيْءٍ قَدْرًا ﴿۳﴾

په تحقيق خداى ګرځولى دى هر شي لره تقدير او مقدار، روايت كړى دى ابن جرير و اسحق بن راهوية والحاكم وغيرهم بسند صحيح عن ابى بن كعب قال لما نزلت الآية في سورة البقرة في عدة النساء (اى المطلقة وغيرهن) خلكو وويل يعني مؤمنانو چي څو قسم له ښځو څخه چي عده يې نه سوه ذكر الصغار چي بلوغ ته نه وي رسېدلي او يا ډېرې سالخوردې سپين سري يعني چي حيض يې قطع سوى وي يا حاملات وي، فنزلت هذه الآية.

وَالّٰٓـِٔيْ يَئِسْنَ مِنَ الْمَحِيْضِ مِنْ نِّسَآئِكُمْ

او ستاسي هغه (مطلقه) ښځي چي له حيضه نا اميده سوي وي.

**اعراب:** پوه سه: چي "والآئى" د موصولاتو څخه جمع د التي ده "المحيض" مصدر ميمي دى په معنى د حيض.

**پوه سه:** چي كبر سن ته بعض علماؤ (۵۵) كاله عمر اېښى دى، او بعض علماؤ (۶۰) كاله وضع كړى دى يعني دغه سن ته چي ورسېږي فبعد ذالک لورئت دمًا لايكون حيضًا يقال امرئة آسن اذا يأسها من الحيض ولا يقال آيسة بتاء التانيث لان تاء التانيث للفرق عن المذكر والايس صفة خاصة للمؤنث فهذا اللفظ كالحائض والحامل.

اِنِ ارْتَبْتُمْ فَعِدَّتُهُنَّ ثَلٰثَةُ اَشْهُرٍ ۙ

كه تاسي په شک كي واست د دوى په عده كي، نو د دوى عده درې مياشتي ده. قوله والائى مبتداء ده فعدتهن يې خبر دى، ان ارتبتم جمله معترضه ده.

**درویش وایي:** چې ارتیاب یې په ان د شک راوړی اشاره وده ته ده چې عدة آیس د دې استنباط کولای سوای چې په هغه ایت کې یې فکر او غور کړی وای "والمطلقات یتربصن بانفسهن ثلثة قروء" ولې چې درې حیضه غالبًا په درو میاشتو کې پیدا کېږي، فاذا لم توجد القروء کما في الآیس یجب اعتبار ازمنة ثلثة قروء وهي ثلثة اشهر.

وَّالِّٰٓـيْ لَمْ يَحِضْنَ ۭ وَاُولَاتُ الْاَحْمَالِ اَجَلُهُنَّ اَنْ يَّضَعْنَ حَمْلَهُنَّ ۭ

او هغه ښځې چې حیض نه وي ورغلی که صغیره وي که مراهقه وي یعني نژدې و بلوغ ته یا د سن له کبله بالغه وي لکن حیض نه وي ورغلی، مبتداء ده خبر یې محذوف دی چې دلالت ما سبق پر کوي یعني کذالک عدتهن ثلثة اشهر.

**پوښتنه:** یوه ځوانه ښځه چې حیض یې څو واره لیدلی هم وُ، نابېره یې حیض بند سو بعذر من الاعذار، د دې ښځې عده په څه شي تېرېږي؟

**ځواب:** قالا ابو حنیفة والشافعي "لاتنقضی عدتها حتی یعودها الدم فتعتدی بثلثة قروء یا به یې ر دوي عمر ته د آیساتو نو به عده درې میاشتې تېروي کذا في روح البیان وکتب الفقه والمظهري.

"و اولات الاحمال" او هغه ښځې چې حمل لري او مېړه یې طلاقې کړي نو عده د دوی دا ده چې ایږدي حمل خپل یعني لنګېږي.

**پوهسه:** چې دا حکم عام دی مطلقاتو لره او هغو ښځو لره چې مېړه یې مړ وي حتی که د مېړه تر طلاق وروسته یا د مېړه تر وفات وروسته په ادنی وخت کې دا ښځه د واړه قسمه عده یې تېرېده چې وضع الحمل یې وسو دستي د مېړه سره نکاح ورته روا ده.

وَمَنْ يَّتَّقِ اللّٰهَ يَجْعَلْ لَّهٗ مِنْ اَمْرِهٖ يُسْرًا ۝

څوک چې بېرېږي له خدای څخه په اجراء کې د احکامو د خدای، نو آسانه به کړي و ده ته امر د دنیا او آخرت و یوفقه للخیر.

ذٰلِكَ اَمْرُ اللّٰهِ اَنْزَلَهٗٓ اِلَيْكُمْ ۭ وَمَنْ يَّتَّقِ اللّٰهَ يُكَفِّرْ عَنْهُ سَيِّاٰتِهٖ وَيُعْظِمْ لَهٗٓ اَجْرًا ۝

دغه (ای الاحکام المذکورة، مبتداء ده) امر دی د خدای (امر الله خبر دی) چې نازل کړی یې دی و تاسې ته (انزله الیکم، جمله حال ده له امر الله څخه او

عامل معنی د اشیر دی چي د ذالک څخه و فهمېدی کذا في کتب النحو) او څوک چي له خدایه ېرېږي في اجراء احکامه تعالی من الاوامر والنواهي، نو خدای به دده ګناهونه ور وبخښي او لوی به ور کړي ثواب.

اَسْكِنُوْهُنَّ مِنْ حَيْثُ سَكَنْتُمْ

"اسکنوهن" متصل بقوله لاتخرجوهن جمله مستانفه ده په جواب کي من قال این یسکنوهن، والضمیر راجع الی المطلقات المذکور في اول السورة.

**فائده:** دا آیت شامل دی رجعیانو مطلقاتو ته او بائناتو ته صغیرات کړن او حائضات او آیسات ته او حرائر او مینځیانو ته چي د چا ماینې وي او طلاقې يې کړي "من حیث سکنتم" کلمه د من زائده ده، والمعنی چېري چي تاسي اوسېږئ او یا لپاره د تبعیض ده یعني په بعض حصه کي د هغه مکان چي تاسي پکښي اوسېږئ.

مِّنْ وُّجْدِكُمْ وَلَا تُضَآرُّوْهُنَّ لِتُضَيِّقُوْا عَلَيْهِنَّ ۭ

چي د طاقت سره مو پوره وي که کوټه وي او که ساده سرای وي، او ضرر مه ور رسوئ په سکنٰی کي، چي تاسي تنګي جوړوئ پر دوی ببعض الاسباب چي داسي څوک ددې سره ملګری کړئ چي د دوی نه وي خوښ، یا ددې خونه و بل چا ته ور کړئ چي و تلو ته مجبوره سي.

وَاِنْ كُنَّ اُولَاتِ حَمْلٍ فَاَنْفِقُوْا عَلَيْهِنَّ حَتّٰى يَضَعْنَ حَمْلَهُنَّ ۚ

که وي دا مطلقات خاوندانې د حمل نو نفقه د دوی به ور کوئ تر هغه وخته چي وضع الحمل کوي یعني لنګېږي.

**فائده:** مطلقه که په طلاق رجعي طلاقه وه نو پر مېړه يې نفقه او سکنٰی سته باجماع الفقهاء ما دامت في العدة، نو که سرای د زوج ملکي سرای وُ پر مېړه دا واجب ده چي له سرایه ووزي او سرای دي ماینې ته پرېږدي په ور ځو کي د عدې ددې که يې اراده د رجوع نه درلوده، او که سرای د کرایې وُ فالاجرة علی الزوج، واما المعتدة البائنة بالخلع او الطلقات الثلث او بکنایات الطلاق کما هو مذکورة في کتب الفقه الشریف علی مذهب ابی حنیفة رحمه الله نو دا مطلقې حق د سکنٰی پر مېړه نه لري که حامل وي او حمل نه لري چي په عربي يې حائل بولي عند اکثر اهل العلم لعموم لقوله

تعالى اسكنوا هن من حيث سكنتم من غير فرق بين المطلقات المذكورات.

فَإِنْ أَرْضَعْنَ لَكُمْ فَآتُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ وَأْتَمِرُوا بَيْنَكُم بِمَعْرُوفٍ

يعني كه مطلقاتو وروسته تر وضع الحمل و تمام العدة و اولادو ته ستاسي شيدې وركولې، نو تاسي وركوئ دوى ته مزدوري د رضاع د ولد ستاسي.

**پوه سه:** چي په سورة البقرة كي ددې آيت په تفسير كي والوالداة يرضعن اولادهن تېر سوه چي ارضاع د ولد واجب ده پر مور باندي نو كه يو سړى مزدوري وركوي پر ارضاع الولد لايجوز ذالك الاجر للام لانه اخذ الاجرة على فعل واجب عليها، د هغه څخه به دا ګمان كېدى چي اخذ د اجرة پر رضاع د ولد يعني ښځي لره چي مطلقه بعد انقضاء العدة هم نه دى روا الكن په دې ايت فان ارضعن لكم الآية مور اخذ د اجرة پر ارضاع روا بولو، فظهر بهذه الآية ان وجوب الارضاع على اللام مقيد بوجوب رزقها على الاب لقوله تعالى وعلى المولود له رزقهن وكسوتهن ففي حالة الزوجية او العدة عند الطلاق ابوه قائم برزقها او بعد تمام العدة ليس على الاب الرزق والكسوة فيقوم الاجرة مقام الرزق.

"وأتمروا بينكم بالمعروف" خطاب للزوجين يعني هر يو د دوى دوو د هغه بل اوري اذا امره الآخر بمعروف اى ما هو الاحسن في الشرع الانور يعني مېره دې دا بخل نه كوي چي په لږ مبلغ ته: ما زوى ته تى وركوه يا مور دي له مېره څخه بالا تر اجر مثل نه غواړي، والحاصل چي يو و بل ته د اضرار قصد نه كوي.

وَإِن تَعَاسَرْتُمْ فَسَتُرْضِعُ لَهُ أُخْرَىٰ ۝٦

كه پر تاسي ايها الابوين سختي وه، يعني ارضاع پر مور باندي سخته وه نو دې منع وكړه له ارضاع څخه مع وفور شفقتها على الولد فليس على الاب اجبارها عليه او دا دي معذوره و بولي لظن عجزها عن الارضاع مع الشفقة الوافرة لها على الولد. او كه مور صرف بهانه كول ارضاع ورته ګرانه وه په واقع كي نو دا ګناه ګاره ده عند الله وان كان عسر على الاب اعطاء الأم اجرها چي دې غوښتى او پلار بله ښځه پيدا كړې ده چي بې اجرته ددې ولد ته شيدې وركولې او يا يې د مور تر اجرت په كمه شيدې وركولې لايجب على اعطاء اجر المثل للام، ويسترضع الاب من غير الام.

"فسترضع له اخرىٰ" ژر دی چي رضاع او تی به ور کړي د خدای لپاره، او په دې کي چي بله ښځه يا مفت يا په کم د اجر مثل د مور شيدې ور کړي په دې کي عتاب دی و مور ته د ولد چي دې ولي سخته لار خپله کړه.

**فائده:** علماء وايي چي په ارضاع کي د غير الام دا شرط دی چي ارضاع بې عند الام وي ما لم تنکح الام زوجًا آخر غير محرم من الولد، ولي غير محرم د ولد د دې له زوی څخه بد راځي.

**يوه سه:** چي په موطاء کي د امام مالک" راغلي دي په روايت د قاسم بن محمد" چي عمر رضي الله عنه يوه ښځه غوښتې وه د المضار له قبيلې څخه فولدت له عاصم بن عمر بيا يې هغه ښځه طلاقه کړه او خپل زوی عاصم چي کوچنی ؤ مور ته يې په لاس ورکړی چي کوريې په قباء کي ؤ، يوه ورځ عمر رضي الله عنه قباء ته ولاړی هورې يې وليدی چي دده زوی عاصم د نورو کوچنيانو سره د قباء بازي کولې، نو يې خپل زوی تر لاس ونيوی پر دابه يې سپور کړی يعني چي مدينې ته يې بوزي (له دې سببه چي دلته په قباء کي بې علمه او بې ادبه کيږي) نو د عاصم انا يعني د مور مور پسي را ميدان کړه او د عمر رضي الله عنه سره يې دعوه سوه يعني چي حق د حضانت د عاصم زما د لور دی، خير خو عمر رضي الله عنه د دې خبره و نه منل حتى ابوبکر خليفة الاول رضي الله عنه ته د اسلام راغله فقال ابوبکر رضي الله عنه خل بينه و بينها (ايله کړه عاصم او انا يې) عمر رضي الله عنه هيڅ نه ورته وويل او خپل زوی عاصم يې د انا په لاس ورکړی، كذا رواه عبد الرزاق، و روی ابن ابي شيبة" قال ابوبکر رضي الله عنه يعني و عمر رضي الله عنه ته چي مسح کول د مور او غېږ د مور او بوی د مور خير دی ده لره يعني عاصم لره تر تا حتى چي بالغ کيږي کوچنی، بيا به هغه د مور او پلار څخه يوه خوا مختاره کړي د ځان لپاره.

**مسئله:** که د کوچني مور مطلقه وه او عده يې هم تېره سوې وه د پلار څخه د زوی اجر مثل نورو مرضاعاتو غوښتی ليس للاب ان يسترضع لابنه غير الام بالاجماع.

لِيُنفِقْ ذُو سَعَةٍ مِّن سَعَتِهِ ط

هر آئينه انفاق دي کوي چي غني وي على قدر غناه (يعني مرضعه ته دي ښه ډوډی مثلاً غوښې يا ورجي وغيرها ورکوي)

وَمَنْ قُدِرَ عَلَيْهِ رِزْقُهُ فَلْيُنْفِقْ مِمَّآ اٰتٰىهُ اللّٰهُ
او که پر چا تنګ ؤ رزق (مثلاً د غوبښو طاقت یې نه درلودی) نو هغه دي نفقه کوي چي خدای ؒ ده ته ورکړي وي یعني علی قدر طاقته.

لَا يُكَلِّفُ اللّٰهُ نَفْسًا اِلَّا مَآ اٰتٰىهَا سَيَجْعَلُ اللّٰهُ بَعْدَ عُسْرٍ يُّسْرًا۝
نه مکلفوي خدای عزوجل هیڅ نفس مګر په هغه شي سره چي خدای ؒ ده ته ورکړی من الیسر و الغنی و الفقر و قلة المال، دا دلیل دی پر عدم وجوب د زیادة پر معسر باندي. وهذا هو ظاهر الروایة من مذهب ابی حنیفةؒ ابن الهمام په فتح القدیر کي وایي چي بناء پر دې روایت که مېړه د ښځي معسر ؤ یعني مسکین ؤ او ماینه یې له غني خاندان څخه وه، نو پر مېړه نفقه د اعسار واجب ده، ولي ماینه کې څه هم غني ده لکن لما تزوجت معسراً فقد رضیت بنفقة المعسرین دلیل یې لایکلف الله الآیة دی.

"سیجعل الله بعد عسر یسراً" قریب ده چي خدای د تنګی وروسته فراخي د رزق پیدا کړي یا عاجلاً یا آجلاً لان الدنیا غاد وراح.

وَكَاَيِّنْ مِّنْ قَرْيَةٍ عَتَتْ عَنْ اَمْرِ رَبِّهَا وَرُسُلِهٖ
او ډېر ("کائن" په معنی د کم خبري مبتداء دی) له قریو څخه (ای اهل قریة) نافرماني شروع کړي له امر څخه د خدای عزوجل او له امر څخه د رسولانو د خدای ؒ ای بالکفر و المعاصي.

فَحَاسَبْنٰهَا حِسَابًا شَدِيْدًا وَّعَذَّبْنٰهَا عَذَابًا نُّكْرًا۝
نو حساب کړی دی موږ هغو له حساب سخت یعني حساب د مناقشة و الاستقصاء وعدم العفو لشيئ، او موږ به دوی معذب کړو په عذاب نابلده سره (فالنکر بمعنی المنکر) وقیل عذاباً فضیعاً من الجوع و القحط و السیف و الاسر و الهلاک)

فَذَاقَتْ وَبَالَ اَمْرِهَا وَكَانَ عَاقِبَةُ اَمْرِهَا خُسْرًا۝
نو وڅکي یعني ورسېدی دوی ته عقوبت د کفر او ګنهو د دوی، نو دی آخیر کار د امر د دوی تاوان في القبر و الآخرة (تاوان دی په معامله کي چي دوږخ یې په بدل کي د جنت رانیوی)

أَعَدَّ اللَّهُ لَهُمْ عَذَابًا شَدِيدًا ۖ فَاتَّقُوا اللَّهَ يَا أُولِي الْأَلْبَابِ ۚ

اى في الآخرة "عذابًا شديدًا" وهو النار المؤبدة عليهم مع لدغ الحيات والعقاب والطعام من شجرة الزقوم وشرب الماء الحارة جدًا من غلبة العطش الى غير ذالك "فاتقوا الله" نو وېرېږئ له عذاب څخه د خداى (يعني لا تطغوا عن امر ربكم ولا تخرجوا عن اوامره تعالى او له رسول څخه د خداى كيلا يصيبكم مثل ما اصابهم) اى خاوندانو د عقلو سليمهؤ "لب" په اصل كي مغز ته د بادام يا جوز وايي، نو عقل سليم د انسانانو مغز دى بدن يې قشر دى او ملبوسات يې قشر القشر دي.

الَّذِينَ آمَنُوا ۚ قَدْ أَنزَلَ اللَّهُ إِلَيْكُمْ ذِكْرًا ﴿١٠﴾

هغه كسان چي ايمان يې راوړى وي ايمانًا حقيقيًا (صفت كاشفه د اولى الالباب دى ولي چي مقتضى د لب ايمان دى) په تحقيق خداى نازل كړى دى (دا جمله حال دى له فاعل څخه د فاتقوا) تاسي ته ذكر يعني القرآن الكريم.

رَّسُولًا يَتْلُو عَلَيْكُمْ آيَاتِ اللَّهِ مُبَيِّنَاتٍ

رسول ("رسولاً" منصوب دى په فعل مقدر سره يعني و ارسل رسولاً يعني محمدًا ﷺ) تلاوت كوي و تاسي ته آيتونه د خداى يعني د قرآن څخه چي واضح الدلالات دي.

**پوښتنه:** چي نسبت د تلاوت و رسول ته حقيقةً دى او و قرآن ته مجازًا دى.

لِّيُخْرِجَ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ مِنَ الظُّلُمَاتِ إِلَى النُّورِ ۚ

چي وباسي دا رسول يا قرآن هغه كسان چي ايمان يې پر رسول او قرآن راوړى دى او عملونه صالح هم كوي له تاريكيو څخه (اى الكفر والجهل) و نور روښنايي ته چي ايمان او فقه او اعمال صالحه دي چي موجب د نور دي په اخرت كي.

**پوښتنه:** په موصول كي چي الذين امنوا آه دى ايمان او عمل صالح راغلي دي، نو دوى خو د ظلماتو څخه د كفر او جهل وتلي دي فما معنى قوله ليخرج من الظلمات الى النور؟

**ځواب:** مراد دوام د اخراج د ظلمات الى النور دى.

وَمَنْ يُؤْمِنْ بِاللّٰهِ وَيَعْمَلْ صَالِحًا يُدْخِلْهُ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَآ اَبَدًا ؕ

څوک که ايمان راوړي پر خدای ﷻ يعني په وحدانيت سره او عمل صالح من الفرائض والواجبات وغير ذالک هم وکړي خدای ﷻ به يې داخل کړي يعني په ورځ د قيامت و جنتو ته چي بهيږي به لاندي تر درختو د هغو ويالې يعني څلور، الماء والعسل والبن والخمر چي همېشه به وي دوی په هغو جنتو کي تر ابده پوري لايخرجون ولايموتون ولايهرمون، ولا خوف عليهم ولا هم يحزنون.

قَدْ اَحْسَنَ اللّٰهُ لَهٗ رِزْقًا ۝

**پوه سه:** چي ضمير د له راجع دی ومن ته نو ټولو مؤمنانو ته شامل دی.

**ترجمه:** ښه به ورکړي خدای ﷻ و ده ته رزق يعني الجنة التي لاتنقطع نعيمها وفيه تعظيم لما رزقوا.

اَللّٰهُ الَّذِيْ خَلَقَ سَبْعَ سَمٰوٰتٍ وَّمِنَ الْاَرْضِ مِثْلَهُنَّ ؕ

الله هغه ذات دی چي پيدا کړي يې دي اووه اسمانونه، او مځکه هم د اسمانو رنګه يعني مځکه هم اووه طبقې لکه اسمانونه چي يو تر بل لوړ دي.

**نکته:** لفظ الله مبتدا ده او موصول سره د صله يې خبر دی، او سبع سموات يې نکره راوړه للتعظيم الدال على كمال قدرة صانعها على وفق حكمته الشاملة، له ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دی چي په داسي وخت کي نبي الله ﷺ ناست ؤ او اصحاب رضي الله عنهم هم ناست وه چي وريځ پيدا سوه، فقال النبي ﷺ هل تدرون ما هذا؟ اشاره يې و وريځي ته وکړه، قالوا الله ورسوله اعلم.

**سوال:** وريځ خو هرچا پيژندل چي سحاب ده نو دوی ولي وويل والله ورسوله اعلم؟

**ځواب:** د تعظيم له کبله د عليه الصلوة والسلام او بل دا چي د دوی دا خيال ؤ چي عليه الصلوة والسلام په دې سوال کي يو حکمت لري، قال هذا العنان چي د وريځي بل نوم دی دا روايا ده د مځکي (يعني اوبوونکې د مځکي) يسوقها الله خدای ﷻ روانه کړې ده و داسي قوم ته چي نه د خدای ﷻ شکر وايي او نه يې عبادت

کوي يعني الكفرة ثم قال هل تدرون ما فوقكم؟ قالوا الله ورسوله اعلم، قال فانها الرقيع سقف محفوظ وموج مكفوف ثم قال هل تدرون ما بينها وبينكم. څونه مسافه ده په مابين کي د رقيع او ستاسي؟ قالوا الله ورسوله اعلم. قال بينكم وبينها خمس مائة عام (۵۰۰) کاله مسافت دی، ثم قال هل تدرون ما فوق ذالک؟ قالوا الله ورسوله اعلم، سماآن بعد ما بينها خمسة مائة عام ثم قال كک تی عد سبع سموات بين السماء و الارض ثم قال هل تدرون ما فوق ذالک (يعني تر اوو اسمانو لوړ) قالوا الله ورسوله اعلم، قال فوق ذالک العرش الى اخير الحديث الطويل المشتمل على المتشابهات.

يَتَنَزَّلُ الْأَمْرُ بَيْنَهُنَّ لِتَعْلَمُوٓا أَنَّ اللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ

جاري دی حکم د خدای او قضاء د خدای په مابين کي د دغو اسمانو وينفذ حكمه تعالى وقضائه تعالى فيهن كلها چي تاسي په پوه سئ چي خدای پر هر شي قادر دی ولي دا علويات يې پر ترتيب مذكور پيدا کړه نو قدرت پر دې هم لري چي اموات و موقف ته د حساب او جزاء بعث کړي.

وَأَنَّ اللَّهَ قَدْ أَحَاطَ بِكُلِّ شَيْءٍ عِلْمًا

او په دې هم پوه سئ چي خدای پر هر شي احاطه کړې ده، وقوله علمًا تمیز محول له فاعل څخه دی يعني احاط علمه تعالى بكل شيئ، ولي چي يوه خونه بېله داسي چا چي علم د بنايي يې نه وي زده نه سي جوړولای، وکذلک يوه دروازه بې نجاره چي عالم په نجاری نه وي نه يې سي جوړولای. فكيف لايدل هذا العالم الكبير على علم صانعه الخبير البصير.

**درويش وايي:** چي تفسير د سورة الطلاق په توفيق د خدای عزوجل پر يوه نيمه بجه د ماپښين ۱۵ د جمادی الاول سنه (۱۴۳۳) هجري قمري پای ته ورسېدی، و لله الحمد والمنة والصلوة والسلام على خير البرية وعلى آله وصحبه البررة.

سُوْرَةُ التَّحْرِيْمِ مَدَنِيَّةٌ وَهِيَ　بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ　اثْنَا عَشَرَ آيَةً وَفِيْهَا رُكُوْعَانِ

**درويش وايي:** چي د راتلونکي آيت په شان نزول کي متعارضه روايات راغلي دي چي فقير به يې درته بيان کړي ان شاء الله تعالى.

**يَاأَيُّهَا النَّبِيُّ لِمَ تُحَرِّمُ مَا أَحَلَّ اللّٰهُ لَكَ تَبْتَغِي مَرْضَاتَ أَزْوَاجِكَ**

اى نبي ولې ته حراموې هغه شيان چي خداى حلال کړي دي و تاته، ته غواړې رضٰى د خپلو مابينو، بخاري او مسلم له عطاء څخه روايت کړى دى، دى وايي چي ما واورېدل له عائشي ﷺ څخه چي نبي ﷺ به د زينب بن جحش په حجره کي ډېر درنګ کاوه چي د هغې د خپلوانو له خوا څخه يو چا عسل راوړي وه نو هغه عسل به يې خوړل، نو عائشي او حفصي (يعني بنت عمر ﷺ) اتفاق سره وکړى چي هري يوې ته چي عليه الصلوة والسلام ورنژدې سو هغه دي ورته ووايي اجد منک ريح مغافير (چي د يوې درختي ژړا ده بدبويه) خير فدخل رسول الله ﷺ على احداهما، هغې هغه خبره د مغافير ورته وکړه، عليه الصلوة والسلام ورته وويل لا بأس شربت عسلاً عند زينب بن جحش وقد حلفت (يعني لا اشرب العسل) ولا تجزي احداً يعني مرضات نسائه.

**درويش وايي:** چي په بعض روايا تو کي راغلي دي چي رسول الله ﷺ يشرب العسل عند سودة ﷺ فيدخل على عائشة ﷺ فقالت اني اجد منک ريح مغافير ثم دخل على حفصة ﷺ فقالت مثل ذالک عليه الصلوة والسلام لعله شراب اى عسل شربته عند سودة ؓ والله لا اشربه، قال الحافظ ابن حجر ؒ في شرح البخاري الراجح ان صاحبة العسل زينب بنت جحش ؓ لا سودة ؓ لان مسند عبيد بن عمير اثبت من طريق ابن ابى ملكية، ډېر مفسرين ؒ پر دې رايه دي چي دا ايت په تحريم کي د مارية ؓ دى چي يوه مينځه وه چي عليه الصلوة والسلام ته المقوقس را استولې وه، البغوي ؒ وايي چي عليه الصلوة والسلام يقسم بين نسائه اى المنكوحة فلما كانت يوم حفصة بنت عمر ﷺ هغې د عليه الصلوة والسلام څخه اجازه واخسته چي زه به د پلار کره ولاړه سم عليه الصلوة والسلام هم اجازه ورکړه چي هغه ولاړه رسول الله ﷺ ماريه القبطيه راوغوښته هغه چي راغله د حفصي ؓ په خونه يې دننه کړه نو وطي يې ورسره شروع کړې، حفصة ؓ چي بيرته د پلار له کوره راغله د

خوني دروازه د دننه له خوا بنده وه، نو حفصهؓ د دروازې سره کښېنسته، نو علیه الصلوة والسلام له خوني را ووتی چي پر مخ مبارک یې خوله را ایله وه او حفصې ؓ ژړله، فقال ﷺ پر څه شي ژاړې؟ دې ورته وویل چي تا چي ما ته د پلار د کور اجازه را کړه د دې لپاره چي مینځه دي را وستل زما خوني ته فوقعت علیها في یومي وعلی فراشي اما رئیت لي حرمت ولاحقًا، چي ورته کار د ماینې سره چا نه دی کړی، علیه الصلوة والسلام ورته وویل چي دا خو زما مینځه ده ما ته خدای روا کړې ده، خو حفصې ؓ و خپلي ژړا ته دوام ورکړی، علیه الصلوة والسلام ورته وویل چي مه ژاړه ماریه پر ما حرام ده التمس بذالک رضاک، او دا خبره یې هم حفصې ؓ ته وکړه چي په دې موضوع به څوک نه خبروې، علیه الصلوة والسلام چي له کوره ووتی حفصې ؓ د عائشې ؓ د خوني دېوال وروټکاوه، عائشه ؓ چي راغله حفصې ؓ ورته وویل چي زېری مي درباندي علیه الصلوة والسلام ماریه پر ځان حرامه کړه له دې څخه خدای خلاصي کړو.

**درویش وایي:** چي له دغي ماریه ؓ څخه خدای عزوجل و علیه الصلوة والسلام ته زوی ورکړی وُ چي نوم یې ابراهیم پر ایښی وُ او د رضاع په حال کي یعني چي یوې ښځي ته یې د رضاع لپاره سپارلی وُ او په عمر کي تقریبًا د (۱۶) میاشتو وُ وفات سو، انا لله وانا الیه راجعون، او د علیه الصلوة والسلام نور ټوله عیال نر او ښځي د ام المؤمنین خدیجة الکبرٰی ؓ له نسل څخه وه، مګر حکمت د خدای عزوجل دی نر عیال د خدیجة الکبرٰی ؓ بلوغ ته نه دی رسېدلی یعني وفات به سو او ښځینه عیالو نه یې پاته وه د نکاح تر وخته پوري لکه فاطمة ؓ زوجة علي ؓ وغیرهن.

وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ①

خدای بخښونکی دی د دغه ذلت وتاته فانه لا ینبغي تحریم ما احل الله "رحیم" حیث رحمک فجعل لک من التحریم ولم یؤاخذک به.

قَدْ فَرَضَ اللّٰهُ لَكُمْ تَحِلَّةَ اَيْمَانِكُمْ ۚ وَاللّٰهُ مَوْلٰىكُمْ ۚ وَهُوَ الْعَلِيْمُ الْحَكِيْمُ ②

خدای تاسي ته ستاسي د قسمو کفاره مقرره کړې ده "فرض" ای شرع "تحلة ایمانکم" یعني تحلیل ما حرم بالیمین، او په هدایه کي راغلي دي من حرم شیئًا علی نفسه مما یملکه لم یکن محرمًا علیه نو ده ته روا دی تحلیل د هغه شي او

لازمه ده پر ده کفارة اليمين لان التحليل الحرام يمين عند ابی حنيفةؒ، ولهذا قال في تفسير الحسيني: بدرستى كه بيان كرده خداى تعالى شمارا فرو كشادن سوگندهائ شما را بكفاره دادن آه.

**درويش وايي:** چي پر عليه الصلوة والسلام په دې حلة اليمين کې د تحريم د ماريهؓ کفاره واجبه وه او ده دا کفاره اداء کړه او که څرنګه؟ نعم پر واجبه وه، مقاتلؒ وايي چي عليه الصلوة والسلام په تحليل کې د ماريهؓ مريی ازاد کړی، او الحسنؒ وايي چي کفاره نه وه پر واجب لانه مغفور له، ده ته خو خدای عزوجل بخښنه کړې ده، وهذا ليس بصحيح لان مغفوريتهﷺ لاينا في وجوب شيئ عليه لانهﷺ سهى في الصلوة فسجد سجود السهوة، وهذا الحديث متفق عليه، او غير له سجود السهو لکه سجده تلاوت وهو ايضًا حديث متفق عليه، وصلوة الوتر على المذهب الصحيح.

**فائده جديده:** که چا وويل حرمت علي امتي هذه او طعامي هذا او يا مثلاً فلانی مېوه پر ما حرامه ده يكون يمينًا عند ابی حنيفةؒ او پر تقدير د تحليل د هغه پر ده کفاره لازمه ده وهو المروي عن احمدؒ والاوزاعيؒ وعن ابی بکر و عائشةؓ و يؤيد قول مقاتلؒ قول ابن عباسؓ لقد كان لكم في رسول الله اسوة حسنة يعني والله تاسي لره سته په رسول اللهﷺ سره اقتداء ښه، يعني ده مبارک په تحليل کې د ماريهؓ کفاره د مري په ازادولو سره ورکړه، نو تحريم الحلال که يمين نه وای نو کفارة المين يې ولي ورکوله والله اعلم.

وَاِذْ اَسَرَّ النَّبِيُّ اِلٰى بَعْضِ اَزْوَاجِهٖ حَدِيْثًا

"اذ" منصوب دی په اذكر مقدر سره، او کله چي پټه خبره وکړه النبيﷺ و بعض ازواجو ته (چي مراد حفصه بنت عمرؓ ده) "حديثًا" يوه خبره چي تحريم العسل وه كما في البخاري و مسلم يعني شربت عسلاً عند زينب بنت جحشؓ ولن اعود، او تحريم مارية وهو الراجح عند اهل التفسير چي عليه الصلوة والسلام چي د مارية القبطيةؓ سره وطي وکړې په خوله د حفصهؓ او هغې ته غصه ورغله او ژړل يې عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي دا خبره ته پټه ساته يعني عائشهؓ په خبره نه کړې ماريه پر ما حرامه ده او حفصهؓ في الحال عائشهؓ خبره کړه کمامر، فغضبت عائشةؓ بهذا الموضوع.

فَلَمَّا نَبَّأَتْ بِهِۦ وَأَظْهَرَهُ ٱللَّهُ عَلَيْهِ عَرَّفَ بَعْضَهُۥ وَأَعْرَضَ عَنۢ بَعْضٍ ۖ

الضمير المؤنث راجع الى بعض ازواجه وهي حفصة، يعني انبئت حفصة عائشة "واظهره الله عليه" يعني ظاهر كړی خدای دا سر يعني چي حفصة دا سر و عائشة ته ويلی دی، راوي وايي چي عائشة چي په غضب سوه په تعريس د رسول الله ﷺ په مارية القبطية سره دا يې نه وويل چي زه حفصې خبره کړم "عرف بعضه" بعض خبر يې و حفصه ته بيان کړی چي تا و عائشې ته دا سر رسولی دی، وقصد رسول الله ﷺ جزائها بالطلاق فجاء جبرئيل لا تطلقها فانها صوامة (نفلي روژې نيسي) قوامة (د شپې د تهجد لمونځ کوي) وانها من نسائک في الجنة، فلم يطلقها، او په بعض طرق کي راغلي دي چي قصد چي يې وکړی او طلاق رجعي يې ورکړی جبرئيل راغلی چي رجوع ورته وکړه "واعرض عن بعض" او د بعض خبرو څخه يې اعراض وکړی، راوي وايي چي عليه الصلوة والسلام چي کراهت وليدی په مخ کي د حفصې او ددې ژړا يې وليده او دا چي په خونه کي ددې پر فراش د ماريه قبطيه سره جماع وکړه سوې، نو ددې د خوشحالی لپاره يې يوه خبره دا ورته وکړه چي ماريه پر ما حرامه ده، او بل يې دا خبره ورته وکړه د زړه د زېري لپاره چي خلافت تر ما وروسته به ابی بکر و ابيها عمر ته رسېږي، نو حفصې دا ټوله حال و عائشې ته وويه، نو په ايت کي له عرف بعضه څخه مراد حفصه ده پر سر چي عليه الصلوة والسلام دې ته ويلي وه چي دا خبره به پټه ساتې او دې دا خبره عائشې ته وکړه اظهار د ملامتيا يې حتی اراده د طلاق يې وکړه کما مر عنقريب، او اعراض وکړی عليه الصلوة والسلام د خلافت د ابوبکر الصديق او د عمر فاروق رضي الله عنهما چي دا خبره به خلګو کي قبل الوقت نشر نه سي.

فَلَمَّا نَبَّأَهَا بِهِۦ قَالَتْ مَنْ أَنۢبَأَكَ هَٰذَا ۖ قَالَ نَبَّأَنِىَ ٱلْعَلِيمُ ٱلْخَبِيرُ ﴿٣﴾

نو کله چي خبر ورکړی نبي ﷺ و حفصه ته بما اظهره الله عليه (چي افشاء د سر حفصه کړې ده) نو وويل حفصه، چا تا ته خبر درکړی ددې (يعني د سر د افشاء کولو) عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي زه خبر کړم عليم خبير خدای.

إِن تَتُوبَآ إِلَى ٱللَّهِ فَقَدْ صَغَتْ قُلُوبُكُمَا ۖ

که تاسي توبه وکاږئ (يعني حفصه و عائشه رضي الله عنهما) و خدای ته (چي تاسي دوو کومک سره کاوه علی رسول الله ﷺ و افشاء سره) کوږ والی او ميل کړی ؤ ستاسي زړو

له استقامت څخه پر لار حق حیث رضیتما یعني بافشاء سره بما کره رسول اللهﷺ افشائه من تحریم ماریة، والواجب علی کل واحد ان یحب رسول اللهﷺ ویکره ما کرهه.

**پوه سه:** چي په دي ایت کي التفات له غیبت څخه و خطاب ته دی مبالغة في العتاب لهما، او جواب د شرط محذوف دی ای اتیتما بالواجب یعني تاسي واجب کار پر ځای کړی وای، او دلیل یې د محذوف په ځای کي ودراوه یعني قوله تعالی "فقد صغت".

**پوښتنه:** د دوو ښځو خو دوه زړونه نو قلوب یې جمع راوړی؟

**ځواب:** له دې سببه چي دوی تثنیه في ما هو کالکلمة الواحدة ثقیل په عربیت کي یعني قلبا کما، کما هو في کتب العربیة.

**فائده:** کلمه د فاء في فقد لپاره د سببیت ده لتعلیل الجزاء فان زیغ القلوب سبب للمعصیة والمعصیة سبب لوجوب التوبة کذا في روح المعاني والمظهري.

روی البخاري وغیره عن ابن عباسؓ چي زه همېشه حریص وم پر دې چي د عمرؓ څخه پوښتنه وکړم چي من المرئتین من ازواج النبيﷺ التي قال الله تعالی في شانهما ان تتوبا الی الله فقد صغت قلوبکما لکن وقت د یوازي والي د عمرؓ سره په لاس نه راغلی، حتی چي عمرؓ حج ته تلی زه هم وسره ولاړم، نو عمرؓ له لاري څخه گوښه سو یعني د اودس مات لپاره زما سره مشکوله د اوبو وه، عمرؓ چي فارغ سو ما اوبه ور اچولې او ده اودس تازه کاوه ځای فارغ مي پیدا کړی، فقلت یا امیر المؤمنین من المرئتان اللتان قال الله تعالی ان تتوبا الی الله فقد صغت قلوبکما، قال عجبًا لک یا ابن عباس هما عائشة و حفصة (تعجب دی تا ته چي ته تر اوسه په دې نه یې خبر چي هغه عائشه او حفصه دي) ابن عباس وایي چي امیر المؤمنین عمرؓ قصه له سره راته شروع کړه، قال کنت انا و رجل من الانصار من بني امیة بن زید وهم من عوالي المدینة (د اطرافو د مدینې ؤ) او ما او هغه انصاري نوبت سره ایښی ؤ یوه ورځ به دی راتلی و نبيﷺ ته او یوه ورځ به زه راتلم چي زه به مدینې منورې ته راغلم نو ماښام چي به ورغلم د ورځي ټول حالات من الوحي وغیره من الواقعات به مي انصاري ته بیان کړه او چي دی به مدینې ته راغلی ماښام چي به راغلی ماته به یې ټول حالات بیان کړه.

**درویش وايي**: چي دا د عمر او انصاري ﷺ نوبت ددې لپاره ؤ چي يوه ورځ هر يو چي به کور پاته ؤ د کور خرڅ وغيره به يې تر سره کاوه لکن مع هذا مابنام به راغلی مدينې ته نو له علمي ديني حالات به يې ورته وويل دا کار له ډېره محبت څخه د هر يوه د ديني زده کړې محبت ؤ، خير عمر ابن عباس ﷺ ته وويل چي موږ قريش پر خپلو مايننو باندې غالب ؤ چي موږ مدينې ته هجرت راوکړی او د انصارو همسايه سوو انصار داسي يو قوم ؤ چي ښځې پر دوی غښتلي وې، نو زموږ ښځو هم ادب د انصارو د ښځو زده کړی، نو ما يوه ورځ خپلې ماينې ته ناره وکړه دې سخت جواب راکړی يعني په لوړ اواز يې راته وويل چي څه نارې وهې، ما ددې پر درست جواب دې ته انکار وکړی، دې راته وويل چي ته ولي پر ما انکار کوې فوالله ان ازواج النبي ﷺ و ده ته سخت جوابونه ورکوي او ګناهي يوه د دوی د عليه الصلوة والسلام څخه مروره وي او د ورځې تر مابنامه پورې د عليه الصلوة والسلام سره خبري نه کوي، عمر رض وايي چي زه دې خبري ډېر غمجن کړم، وقلت قد خابت من فعل ذالک وخسرت، عمر رض وايي فجمعت علي ثيابي کالي مي واغوستل فنزلت المدينة فدخلت على حفصة فقلت لها ای حفصة اتغاضب احدی کن النبي ﷺ اليوم الى الليل؟ قالت نعم، قلت قد خبت وخسرت افتاءسنين ان يغضب الله لغضب رسوله ﷺ فتهلکي (يعني في الاخرة لا تستکثری على رسول الله (د عليه الصلوة والسلام څخه ډېر شيان مه غواړه ولا تراجعه في شيئ او جواب مه ورکوه په هيڅ شي چي دی و غواړي، ولا تهجره يعني مخ مه ځني ګرځوه څه وخت چي خبري نه ورسره کوي، او زما څخه غواړه هر شی چي غواړې، ولا يغرنک (تا دې خطا نه باسي) ان کانت جارلک اوضاء منک واحب الى رسول الله ﷺ (که څه هم ستا همسايه يعني عائشه چي تر تا ښائسته هم ده او پر عليه الصلوة والسلام ګرانه هم ده) يعني و ښائستې محبوبې ماينې ته د سرې ډېر درد نه راځي لکه بلې ماينې ته چي نه ډېره ښائسته وي او نه محبوبه د مېړه وي، عمر رض وايي چي موږ به سره ويل چي د غسان قبيله زموږ د جنګ لپاره ځانونه اماده کوي د آسانو پر پښو نعلونه ولي، نو هغه زما ملګری انصاري چي پر خپل نوبت مدينې منورې ته تللی ؤ مابنام چي راغلی دروازه يې ډېر وټکول وقال اثمه هو عمر (عمر کور دی) ففزعت زه

دروازې د عادت د خلاف ټکولو شخه وبېرېدم، زه چي راووتم ده راته وويل: قد حدث اليوم امر عظيم، نن لوی کار پېښ سوی دی، ما ورته وويل اجاء غسان؟ قال لا بل هو اعظم من ذالک و اطول. طلق رسول اللهﷺ ازواجه، عمر وايي قد خابت حفصة وخسرت، زما د مخه لا دا خيال وُ چي دا خبره به پېښېږي فجمعت علي ثيابي وصليت صلوة الفجر مع رسول اللهﷺ فدخل النبيﷺ مشربة (بالا خانې ته) له خلکو شخه يې ځان گوښه کړی، ودخلت علی حفصة فاذا هي تبکی فقلت ما يبکيک الم اکن حذرتک هذا، اطلقکن رسول اللهﷺ؟ دې راته وويل خبره نه يم، دی مبارک په مشربه کي ناست وُ عمرؓ وايي فجئت الی المنبر النبوي فاذا حوله رهط يبکی بعضهم فجلست معهم قليلاً بيا مي سودا غالبه سوه فجئت المشربة التي فيها النبيﷺ فقلت لغلام له استأذن لعمر يعني زما لپاره اجازه وغواړه د ورتلو و عليه الصلوة والسلام ته، فدخل الغلام فکلم النبيﷺ يعني چي عمر اجازه د دخول غواړي عليه الصلوة والسلام هيڅ نه ورته وويل نو غلام چي له مشربه شخه راووتی عمر ته يې وويل چي ما ستا د دخول ذکر عليه الصلوة والسلام ته وکړی هغه هيڅ نه وويل، عمرؓ وايي چي زه بيرته د هغو کسانو سره کښېنستم چي د منبر سره ناست وه او ژړل يې يو کړی ناست بيا مي سودا سوه او هغه غلام ته مي وويل چي ما ته اجازه د دخول د عليه الصلوة والسلام شخه وغواړه، عمرؓ وايي غلام بيرته راغلی او ويې ويل چي ما ستا نوم عليه الصلوة والسلام ته واخستی هيڅ يې نه وويل يعني لا يا نعم، بيا راغلم د منبر نبوي د خلکو سره کښېنستم، دريم وار بيا سودا را ولوېده او راغلم مريي ته مي وويل چي عليه الصلوة والسلام شخه اجازه د راتلو وغواړه مريی عليه الصلوة والسلام ته ورغلی او بيرته راغلی هغه د مخه خبر يې راته وکړه يعني ذکرتک لرسول اللهﷺ فصمت يعني عليه الصلوة والسلام هيڅ خبره راته ونه کړه يا لا يا نعم، بيرته چي زه را روان سوم مريي را ناري کړې چي راسه عليه الصلوة والسلام اجازه درته وکړه، عمر وايي زه چي دننه ورغلم عليه الصلوة والسلام پر يوه بوريا پروت وُ چي د بوريا او د ده تر مابين هيڅ شی هوار نه وُ حتی د بوريا لرگيو د ده مبارک په غوبنو کي تغمې پيدا کړي وې، تکيه يې کړې وه پر يوه بالښت چي پوښ يې د څرمني وُ او په مابين کي يې ليف وه يعني غمبک. فسلمت

عليه ثم قلت (يعني بعد السلام واجابتهﷺ) وانا قائم يا رسول الله اطلقت نسائك (يعني كما قال لعمرؓ رفيقه وشاع خبر الطلاق في الناس ايضًا) عليه الصلوٰة والسلام پورته راته وكتل (ولي عمرؓ ولاړ ؤ) فقال لا، فقلت الله اكبر (د خوشحاليه) وفي رواية بل آليت منهم شهرًا ثم قلت وانا قائم استانس (دده خوشحالي مي غوښته) لو رايتني وكنا معشر قريش نغلب النساء فلما قدمنا المدينة اذا هم (اى الانصار) قوم تغلبهم نسائهم كما مر تفصيلاً فتبسم رسول اللهﷺ ثم قلت يا رسول الله لو رئيتني و دخلت على حفصة فقلت لايغرنك جارتك هي اوضاء منك واحب الى رسول اللهﷺ يريد عائشةؓ كما مر مع الترجمة، فتبسم رسول اللهﷺ تبسمة اخرٰى، عمرؓ وايي چي وروسته زه كښيناستم حين رئته تبسم، ما په خونه كي شاوخوا وكتل فوالله ما رئيت شيئًا يرد البصر (چي ستر كي دي پر تكيه سي) غير د درو پوستكو څخه فقلت يا رسول الله ادع الله لامتك فليوسع الله عليهم (چي دوى ته فراخه رزق وركړي) فان فارس والروم قد وسع عليهم واعطوا من الدنيا وهم لايعبدون الله، نو عليه الصلوٰة والسلام كښيناستی چي دمخه يې تكيه كړې وه كما مر، فقال او في هذا يا ابن الخطاب؟ (ته ددې خبري لپاره راغلی وې) ان اوُلئك اى فارس والروم قوم عجلت لهم طيباتهم في الحيوٰة الدنيا (يعني في الآخرة لهم النار ان لم يؤمنوا) فقلت يا رسول الله ماته بخښنه وكړه، فاعتزل النبيﷺ من اجل ذالك الحديث الذي افشته حفصة الى عائشة من تحريم مارية ونزل آية التخيير للناس (يعني كه يې طلاق غوښتی طلاق وركړه او كه يې ستا سره د پخوا دول بقاء غوښتل، او داسي عليه الصلوٰة والسلام ويلي وه ما انا بداخل عليهن شهرًا من شدة موجدة (له ډېر درد څخه) عليهن حين عاتبه الله يعني يا ايها النبي لم تحرم ما احل الله لك تبتغي مرضات ازواجك الى اخير الآية، نو چي نهه ويشت (۲۹) شپې تېري سوې دخل على عائشةؓ فبدء بها (يعني شروع د تخيير يې له دې څخه وكړی) عائشةؓ ورته وويل چي تا خو قسم اخستی ؤ چي په يوه مياشت كي به خپلو زوجاتو ته نه ورځم، نن خو د مياشتي نهه ويشت تاريخ دی چي ما ورځي او شپې شمېرلي، عليه الصلوٰة والسلام ورته وويل الشهر (يعني دغه مياشت د نهه ويشت ورځو ده) راوي وايي چي هغه مياشت (۲۹) ورځي وه.

**درویش وايي:** چي تر دې ځايه پوري مو د عمر رضي الله عنه قصه هم واوريده چي عليه الصلوة والسلام ځيري دا د عزلت شپې او ورځي تېرولې، لکن مظهري په صفحه (۳۴۰) کي وايي اعتزل رسول الله ﷺ نسائه وقعد في مشربة ام ابراهيم مارية رضي الله عنها حتى نزل آية التخيير او حواله يې البغوي ته کړې ده، زما تردد په دې کي دی چي ام ابراهيم مارية رضي الله عنها خو د عليه الصلوة والسلام مينځه وه مشربه يې کله درلوده، والله اعلم بالصواب، خير اجمالاً قصه خو دا ده تخيير يې له عائشي رضي الله عنها څخه شروع کړی هغې دی مختاره کړی، بيا ټولو ازواجو مطهراتو اقتداء په عائشي رضي الله عنها پسي وکړه، او تفصيل د تخيير ما روى البخاري عن عائشة رضي الله عنها قالت ان رسول الله ﷺ اني ذاكر لك امرًا (زه تاته يوه خبره کوم) او ته يې په جواب کي تلوار مه کوه چي د پلار او مور سره مشوره ونه کړې، دا وايي چي دده مبارک غرض دا و چي زما پلار او مور ما نه امر کوي په فراق د رسول الله ﷺ، ثم قال ان الله قال يا ايها النبي قل لازواجك الى الخير الآيتين، قلت او في هذا استأمر ابوى فاني اريد الله ورسوله والدار الآخرة اى ثوابها وروسته ټولو زوجاتو مطهراتو رضي الله عنهن په عائشة رضي الله عنها پسي اقتداء وکړه في قولها فاني اريد الله ورسوله والدار الآخرة، قال الحافظ ابن حجر رحمه الله في شرح البخاري يحتمل انيكون مجموع هذه الاشياء يعني قصة العسل عند زينب بنت جحش، وقصة مارية وافشاء حفصة السر، وقصة سوالهن الزيادة في النفقة كان سببًا لاعتزالهن وهذا هو الاوفق بمكارم اخلاقه ﷺ وسعة صدره وكثرة صفحه اى عفه، نو دا اعتزال نه دی کړی عليه الصلوة والسلام حتى چي د ازواجو مطهراتو رضي الله عنهن له خوا متکرر دا مذکوره افعال نه دي وجود ته راغلي، والله اعلم.

**درویش وايي:** چي قصه د زيادت دا وه چي روايت يې مسلم کړی دی عن جابر رضي الله عنه انه استأذن عن رسول الله ﷺ الدخول عليه فأذن له فدخل ثم جاء عمر رضي الله عنه فاستأذن له فاذن له فوجد رسول الله ﷺ جالسًا وحوله نسائه واجمًا يعني ساكتًا ونسائه يطلبون الزيادة في النفقات، نو عمر رضي الله عنه د ځان سره داسي خبره وسنجول چي عليه الصلوة والسلام وخاندي، فقال عمر رضي الله عنه يا رسول الله لو رئيت كه تا ليدلي وای چي بنت خارجة چي د عمر رضي الله عنه کور والاه چي زما څخه يې سوال د زيادة في النفقة وکړی زه ور ولاړ سوم تر ستوني مي ونيول ښه مي کړه، فضحك رسول الله ﷺ وقال هن (اى

الازواج المطهراتؓ) حولي كما ترى تسألوني النفقة اى الزيادة فيها فقام ابوبکرؓ الى عائشةؓ تر غاړه يې ونيول خپه يې کړه، وقام عمرؓ الى حفصةؓ تر غاړه يې ونيول خپه يې کړه او عليه الصلوة والسلام پر خندل دواړو خپلو لوڼو ته وويل لا تسألين رسول اللهﷺ ابدًا ما ليس عنده انتهى.

وَإِن تَظَٰهَرَا عَلَيۡهِ فَإِنَّ ٱللَّهَ هُوَ مَوۡلَىٰهُ وَجِبۡرِيلُ وَصَٰلِحُ ٱلۡمُؤۡمِنِينَۖ

د تثنيه ضمير راجع دى و عائشةؓ او حفصةؓ ته. او د عليه ضمير راجع دى و عليه الصلوة والسلام ته يعني که تاسي دوې يو د بلي سره کومک سئ پر ضد د عليه الصلوة والسلام يعني بما يسوءه چي د عليه الصلوة والسلام خوا په بدېږي من افشاء السر وغيره او توبه ونه کاږئ (دا شرط دى جزاء يې محذوف ده، اى لا تظفرا عليه) برى پر عليه الصلوة والسلام نه سئ پيدا کولاى بدليل قوله تعالى ”فان الله“ دليل دى د محذوف جزاء ”هو“ ضمير فصل دى لپاره د تاکيد ”مولاه“ اى ناصره ”وجبرئيل“ رئيس الملائكة المقربين يعني جبرئيل هم معاون دى ”وصالح المؤمنين“ لفظ د صالح که څه هم مفرد دى مراد څني جنس دى ولذا عم بالاضافة الى الجمع، او بعض مفسرين وايي چي اصل صالحوا ؤ يعني په صيغه د جمع واو څني حذف سو لالتقاء الساكنين، والمراد ان المؤمنين اجمعين اتباعه واعوانه. الكلبيؒ وايي چي مراد له المؤمنين څخه دا دى چي منافق نه وي، و روى عن ابن عباس و ابى بن كعبؓ ان صالحوا المؤمنين ابوبكر و عمرؓ دي.

**پوښتنه:** يوازي خداى عزوجل خو په نصرت کي د عليه الصلوة والسلام کافي ؤ؟

**ځواب:** نعم لکن ذکر د جبرئيلؑ وصالح المؤمنين والملائكة من جملة ما ينصره تعظيمًا لهؤلاء، وخص جبرئيلؑ من الملائكة تعظيمًا له.

وَٱلۡمَلَٰٓئِكَةُ بَعۡدَ ذَٰلِكَ ظَهِيرٌ ۝٤

او ملائکي وروسته تر دغه (اى بعد نصرة الله عزوجل وجبرئيل وصالح المؤمنين) کومک کونکي دي مع كثرتهم.

**سوال:** لفظ د ظهير خو مفرد دى او لفظ د ملائکه جمع دى. فکيف الحمل؟

**ځواب:** البغويؒ وايي هذا من الواحد يؤدى معنى الجمع كما في قوله تعالى حسن اؤلئك رفيقًا.

عَسٰى رَبُّهٗۤ اِنْ طَلَّقَكُنَّ اَنْ يُّبْدِلَهٗۤ اَزْوَاجًا خَيْرًا مِّنْكُنَّ

که چېري رسول الله (ﷺ) تاسي ته طلاق درکړي (يعني ټولو ته) نو عجبه نه ده چي خدای ؒ ده ته ماينې ورکړي چي خيروي تر تاسي.

**پوه سه:** چي ان طلقکن شرط معترض دی په مابين کي د اسم د عسٰى چي ربه او خبر د عسٰى چي ان يبدله دی، و جواب الشرط محذوف ای فلا بأس به، البغوي ؒ وايي هذا اخبار عن القدرة فلا يرد چي څوک د ښځو به خيروي تر عائشه ؓ.

**فائده:** ''ازواجا'' چي يې وويل او سره ددې چي خطاب خو د حفصه او عائشه سره دی تغليبًا، او يا علی تعميم الخطاب.

مُسْلِمٰتٍ مُّؤْمِنٰتٍ قٰنِتٰتٍ تٰٓئِبٰتٍ عٰبِدٰتٍ سٰٓئِحٰتٍ ثَيِّبٰتٍ وَّاَبْكَارًا۝

''مسلمات'' باللسان ''مؤمنات'' بالقلب فلا يلزم التكرار ''قانتات'' يا مصليات يا داعيات يا موظبات علی الطاعة ''تائبات'' ای عن الذنوب او راجعات الی الله تعالی او الی رسول الله ﷺ ''عابدات'' عبادت کونکي د خدای ؒ به وي يا مذللات لامر الرسول ﷺ ''سائحات'' ای صائمات کما قال ابن عباس و ابو هريرة و ابن جبير و قتادة ؓ و الضحاک والحسن و زيد بن اسلم وابنه عبد الرحمن ؒ وروی عن النبي ﷺ، وفي الحديث الصحيح سياحة امتي الصوم، قال الفراء اللغوي ؒ و سمی الصائم سائحًا لان السائح لا زاد معه وانما ياكل من حيث وجد الطعام وكذالک الصائم لا ياكل الا وقت الافطار، وعن زيد بن اسلم وهمان مهاجرات وقال ابن زيد ليس في الاسلام سياحة (ای المفروضة) الا الهجرة فلا يرد علی الحصر ان السياحات الجائزة کثيرة او المندوبة ايضًا کثيرة فتدبر فيه ''ثيبات و ابکارًا'' کنډياني چي مېړه يې مړوي مثلاً او ابکارًا يعني پېغلي.

**فائده:** په مابين کي ددې دوو صفتو يې واو راوړی لتنافيهما کما هو ظاهر.

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا قُوْۤا اَنْفُسَكُمْ وَاَهْلِيْكُمْ نَارًا وَّقُوْدُهَا النَّاسُ وَالْحِجَارَةُ

ای هغه کسانو چي ايمان يې راوړی دی وساتئ خپل ځانونه او خپل اولادونه يا ماينې وغيرها (بالتعليم والتاديب والامر بالمعروف والنهي عن المنکر) له اور څخه يعني په ورځ د قيامت باداء الواجبات بالمعنی الاعم وترک المعاصي

"وقودها" صفت دی د نارًا، يعني هسي اوور چي بلېږي په انسانانو (اى الكفار) او په ډبرو، لکه چي بلېږي اور د دنيا په لرګو سره. وفيه تنبيه على شدة تلك النار.

عَلَيْهَا مَلٰٓئِكَةٌ غِلَاظٌ شِدَادٌ

صفت ثاني دی د اوور، يعني مسلطه وي پر دغه اوور ملکي (چي خزنة جهنم يې بولي) چي سخت مزاجه وي پر اهل النار يعني زړه يې نه پر سوځي "شداد" ډېر قوت لرونکي دي حتى چي يوه ملکه ددوی په يوه دفعه اوويا زره کافران اوور ته غورځوي چي په نامه د زبانيه شهرت لري.

لَّا يَعْصُونَ اللّٰهَ مَآ أَمَرَهُمْ وَيَفْعَلُونَ مَا يُؤْمَرُونَ ﴿٦﴾

دوی نافرماني نه کوي له امر څخه د خدای، يعني هر امر چي دوی ته وسي هغه دوی پر ځای کوي "ويفعلون ما يأمرون" يعني امتناع عن قبول امر الله نه کوي بلکې يې ودون.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ لَا تَعْتَذِرُواْ ٱلْيَوْمَ إِنَّمَا تُجْزَوْنَ مَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿٧﴾

ای هغه کسانو چي په دنيا کي يې کفر کاوه عذر به نه وايا ست نن ورځ يعني د قيامت، ولي د عذر وخت په دنيا کي ؤ او هغه تاسي په کفر کي تېره کړه، نن ورځ تاسي ته جزاء درکول کېږي په هغه شي سره چي تاسي يې عمل کاوه (کلمه د ما موصوله ده عائد يې محذوف دی ای شيئ تعملونه) دا خبره دوی ته هغه کول کېږي چي دوی دوږخ ته داخل کړه سي.

**پوښتنه:** دوی نو څه عذر وايي؟

**ځواب:** يا دا وايي يا ربنا ماكنا مشركين، چي عذر انکار دی يا دا وايي ربنا ابصرنا وسمعنا فارجعنا يعني الى الدنيا نعمل صالحًا چي دا عذر مهلت دی او رجوع و دنيا ته ده.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ تُوبُوٓاْ إِلَى ٱللّٰهِ تَوْبَةً نَّصُوحًا

ای هغه کسانو چي ايمان يې راوړی توبه وکاږئ خدای ته له ټولو معاصيو څخه "توبة نصوحًا" يعني خالصًا من صميم القلب والنصح فکر کول په قول او فعل کي چي په هغه کي ستاسي خير وي، والنصح جاء بمعنى الاخلاص يعني چي خالي وي

له ریاء او سمعه څخه، البغويؒ وایي قال عمر و ابی معاذؓ التوبة النصوح ان يتوب عن الذنب ثم لایعود کما لا يعود اللبن الی الضرع، شیدې و غولانځي ته.

**درويش وايي:** چي جامع تعریف د توبة النصوح ما نقل عن عليؓ چي بیضاوي رانقل کړی دی چي د عليؓ څخه چا سوال د توبة النصوح په باره کي وکړی ده وویل یجمعها ستة اشیاء (۱) علی الماضي من الذنوب الندم (۲) د فرضي عبادات متروکه ؤ اعاده (۳) ورد المظالم مثلاً د چا څخه په غصب روپی یا بل شی اخستل وي (۴) واستحلال الخصوم مثلاً که یې چا ته بنکنځل کړي وه یا یې وهلی ؤ عفوه به ځني غواړي (۵) قصد محکم کول چي بد کار به بیا زه نه کوم (۶) پر طاعاتو د خدای عزوجل ملازمت کوي لکه چي پر معاصیو یې کاوه، او نورو مفسرينو یې بعض د دغو خصالو تفسیر کړی دی کالبغوي والقرطبي والكلبي والحسنؒ وفيما ذكرنا كفاية.

عَسٰى رَبُّكُمْ اَنْ يُّكَفِّرَ عَنْكُمْ سَيِّاٰتِكُمْ وَيُدْخِلَكُمْ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ

ښایي چي رب ستاسي وبخښي ګنهونه تاسي ته ګنهونه ستاسي او تاسي داخل کړئ جنتو ته چي بهېږي لاندي تر درختو د هغو الانهار، شراب، اوبه، شیدې او عسل.

**فائده:** خدای عزوجل لفظ د طمع چي عسٰی ذکر کړی اشارة الی ان کفران السیئات وغیرها تفضل من الله عزوجل والتوبة غیر موجبة لهذه الامور، اذ لا یجب علی الله شيئ، والاشارة الی ان العبد لابد انیکون ابداً بین الخوف والرجاء، اخرج ابو نعیم عن عليؓ قال قال رسول اللهﷺ چي خدای پاک وحي وکړې و یوه نبي ته د انبیاؤ د بني اسرائیلو، قل لاهل طاعتي من امتک ان لا یتکلوا چي دوی دي تکیه نه کوي پر اعمال حسنه ؤ خپل ولي چي زه نه دروم عبداً من عبادي لحساب یوم القیامة الا ان شئت ان اعذبه عذبته، یعني حساب به بالاستیعاب دده د طاعاتو او خپل د نعمتو چي وده ته مي ورکړي وه، نو دده طاعت خلاص سي او زما نعمتونه به ؤ پر پاته وي نو پر هغو به عذاب ورکړم لان الله عزوجل لیس بظلام للعبید، وقل لاهل معصیتي من امتک نا امید کېږئ مه له رحمت څخه زما فاني اغفر الذنوب العظیمة ولا ابالي، ولنعم ماقیل في الفارسیة به بها نمی بخشد و بیهانه می بخشد وفي

الباب احاديث كثيرة قصيرة و طويلة چي ساحه د تفسير ايوبي يې نسي ځايولای.

يَوْمَ لَا يُخْزِي اللّٰهُ النَّبِيَّ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مَعَهٗ

هغه ورځ چي خدای نه ذليلوي النبي (ﷺ) او هغه مسلمانان چي دده سره ملګري دي "يوم" ظرف دی د "ويدخلنكم" او "والذين آه" عطف دی على النبي، خزي د نبي ﷺ او خجالت دده دا دی چي شفاعت دده په باره کي د عاصيانو د امت دده رد کړي ..... بيت:

عطای شفاعت چنان دهند ..... که امت تمامی ز دوزخ رهند

درويش وايي: ... بضاعت نياوردم الا اميد ..... خدايا زعفوم مکن نا اميد

نُوْرُهُمْ يَسْعٰى بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ وَبِاَيْمَانِهِمْ

دا علت دی د "لايخزی الله آه" د دوی، نور د دوی يعني پر پل صراط روان وي د مخ دخوا او پر راسته لاس د دوی، بعض مفسرين وايي چي والذين مبتداء ده او نورهم مبتداء ثاني ده او يسعی خبر د مبتداء ثاني دی او ټوله جمله خبر د "والذين" ده.

يَقُوْلُوْنَ رَبَّنَآ اَتْمِمْ لَنَا نُوْرَنَا وَاغْفِرْ لَنَا ۚ اِنَّكَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ۝

دوی وايي "يقولون" جمله مستأنفه ده يا خبر بعد الخبر د موصول دی، دوی دا خبره هغه وخت کوي چي د منافقينو نور مړ سي او په توره تاريکه کي پر پل صراط د غم په درياب کي غرق وي "ربنا اتمم لنا نورنا" ای زموږ باداره زموږ نور تام وګرځوه زموږ لپاره او موږ ته بخښنه وکړې د تقصيراتو زموږ په تحقيق ته يا ربنا پر هر شي قادر يې، ای مطلقًا.

**پوه سه:** چي دا علت دی د اتمام د نور لتفاوت انوارهم على تفاوت اعمالهم نو وی د دغه تفاوت د نور دفع غواړي تفضلاً.

يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ جَاهِدِ الْكُفَّارَ وَالْمُنٰفِقِيْنَ وَاغْلُظْ عَلَيْهِمْ ۭ

ای نبي جهاد وکړه د کفارو سره (بالسيف والحجة) او د منافقانو سره په رد او رسوايي سره که يې نفاق ښکاره سو، او پر دوی درشت او غليظي او سختي کوه او رحم مه باندي کوه.

وَمَاْوٰىهُمْ جَهَنَّمُ وَبِئْسَ الْمَصِيْرُ ⑨

او ځای د دوی جهنم دی (ضمیر د هم راجع دی و کفارو او منافقینو دوارو ډلو ته) بد ځای دی د ورتګ والمخصوص بالذم محذوف ای النار.

ضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا لِّلَّذِيْنَ كَفَرُوا امْرَاَتَ نُوْحٍ وَّامْرَاَتَ لُوْطٍ

او بیان کړی دی الله مثال د کافرانو لپاره (ای لحال الکفار یوم القیامة) زوجه د نوح ﷺ (چي نوم یې واحلة او کافره وه) او زوجه د لوط ﷺ چي هغه هم کافره وه چي نوم یې واهلة ؤ.

**پوه سه:** چي امرئة نوح او امرئة لوط یا دوړه بدل دی بحذف المضاف ای مثل امرئة نوح وامرئة لوط وکذا في امرئة فرعون.

**فائده:** خدای عزوجل حال د کفارو بیانوي یوم القیامة چي دوی ته به دوږخ په سبب د کفر د دوی او دوی ته فائده نه کوي قرابت د انبیاء حتی ابو طالب او نورو قریشو ته چي پر کفر مړه سوه قرابت بینهم وبین النبي ﷺ في خلاصهم من عذاب النار کما لم ینفع المرتبتین المذکورتین ووصلتها د دوو نبیانو بالزوجیة.

كَانَتَا تَحْتَ عَبْدَيْنِ مِنْ عِبَادِنَا صَالِحَيْنِ فَخَانَتٰهُمَا

چي دې دوو پیوند د زوجیت درلودی د دوو بندګانو یعني نوح ؑ و لوط ؑ "من عبادنا صالحین" مراد د دې عبارت تعظیم د نوح او لوط ؑ دی، مدح د دوی یې وکړه، ولي کمال د صلاح په عصمت سره د من المعاصي التي درجة النبوة.

"فخانتاهما" دې دوو ښځو خیانت وکړی د دې دوو نبیانو سره بالکفر والنفاق، قال ابن عباس ؓ چي زنی د نبي ماینې نه ده کړې نو خیانت د دوی دا ؤ چي پر غیر د دین د نوح او لوط وې نفاقًا چي امرئة نوح به خلګو ته ویل چي زما میړه لیونی دی چي چا به ایمان پر نوح راوړی دې به کافران په خبر کړه، او امرئة لوط قوم ته چي عادت یې لواطت ؤ که د شپې د لوط ؑ کره به مېلمانه راغله دې به خپل کور او ربل کړی قوم به یې پوه سو چي د لوط کره ننه شپه مېلمانه راغلي دي، او که به د ورځې مېلمانه راغله دې به په کور کي دود جوړ کړی په هر حال قوم یې په مېلمنو خبر اوه د لواطت لپاره، الکلبي ؒ وایي چي دا دوې ښځي منافقاني وې او اظهار د ایمان یې کاوه.

فَلَمْ يُغْنِيَا عَنْهُمَا مِنَ اللّٰهِ شَيْئًا وَّقِيْلَ ادْخُلَا النَّارَ مَعَ الدّٰخِلِيْنَ ﴿۱۰﴾

نو دي دوو نبيانو دفع نه كړى عذاب د خداى "عنهما" د ددې دوو ښځو څخه "شيئًا" اى شيئًا من الاغناء، نو شيئًا يا مفعول مطلق دى من غير لفظ الفعل او يا مفعول به دى، نو وويل سول دغو دوو ښځو ته (عند موتهما او يا يوم القيامة) داخل سئ واور ته سره د داخلينو اى سائر الداخلين من الكفرة چي هغو به پيوند د قرابت نه درلودى د انبياوٴ سره.

**پوه سه:** چي په دې ايت سره خداى عزوجل قطع كړه طمع د كافرانو بايمان غيرهم من كانوا حتى الانبياء عليهم السلام.

وَضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا لِّلَّذِيْنَ اٰمَنُوا امْرَاَتَ فِرْعَوْنَ ۘ

او بيانوي خداى مثال د هغو كسانو چي ايمان يې راوړى وي زوجه د فرعون چي آسية بنت مزاحم وُ فانها كانت تحت عدو الله فرعون ولم يضرها كفره.

تاريخ صحيح وايي: چي موسىٰ عليه السلام چي پر ساحرانو د فرعون غالب سو نو امرئة فرعون ايمان راوړى، فرعون الجبار چي د دې په اسلام خبر سو د دوبي ولمر ته به يې پرې ايستل چي خلك به ځني ولاړه ملكو به سايه پر وكړه چي د لمر په تودوخي دا هيڅ نه پوهېدله.

اِذْ قَالَتْ رَبِّ ابْنِ لِيْ عِنْدَكَ بَيْتًا فِي الْجَنَّةِ

"اذ قالت" ظرف دى متعلق په كائن پورې چي هغه صفت دى لمثل امرئة فرعون والتقدير مثل امرئة فرعون كائن وقت قولها "رب ابن عندك" اى ربه جوړ كړې هغه ځاى چي تا ته منظور وي.

**درويش وايي:** فلا حاجة الى ما قال المظهري عندية لا كيف لها فانه تعالى منزه من المكان.

**درويش وايي:** چي مظهري دا ايت د متشابهاتو څخه بولي ضرورت و دې ته څه دى على ما ترجمنا الآية فافهم "بيتًا في الجنة" مظهري وايي چي دې ته خداى كشف كړى د دې ځاى په جنت كي چي دې هم وليدى.

**درويش وايي:** چي عنديت بلا كيف ته ضرورت وُ چي دې په جنت كي خپل خونه وليده.



Scanned by CamScanner

وَنَجِّنِي مِنْ فِرْعَوْنَ وَعَمَلِهِ وَنَجِّنِي مِنَ الْقَوْمِ الظَّلِمِينَ ﴿١١﴾

او ماته نجات راکړه له فرعون څخه او دده له عمل څخه (تعني تعذيبه اياى على الاسلام، وقال مقاتل ارادت بعمله اجبارها على الشرک وقال ابو صالح عن ابن عباس ارادت جماعه معها نو فرعون چي به اراده وکړه ددې سره د جماعو آلة الجماع به يې مراوى سو يعني انتشار به يې پرېښو) او ماته نجات راکړې د هغه قوم څخه چي پر خپل ځان ظلم کوي بالكفر والمعاصي، په قصه کي داسي هم راغلي دي چي فرعون يوه لويه ډبره راواخسته چي ددې پر جسد يې وغورځوي، دې چي خپل ځاى په جنت کي وليدى روح يې قبض سو د فرعون ډبره پر جسد بلا روح ددې واقع سوه ولم تجد المأ. او ابن كيسان وايي رفع الله امرئة فرعون الى الجنة فهي تأكل من ثمار الجنة وتشرب من مياه الجنة والله اعلم.

وَمَرْيَمَ ابْنَتَ عِمْرَانَ الَّتِي أَحْصَنَتْ فَرْجَهَا فَنَفَخْنَا فِيهِ مِنْ رُوحِنَا

او مريم بنت عمران (عطف على امرئة فرعون) چي دې ساتلى ؤ خپل ځان د رجالو څخه (يعني مېړه يې نه درلودى) "فنفخنا فيه" اى نفخ جبرئيل بامرنا په ګرېوان کي د قميص ددې نفخًا واصلاً الى فرجها فحملت بعيسى عليه السلام ضمير فيه راجع الى الفرج.

**فائده:** ولما كان النفخ بامر الله تعالى وان كان ظاهرًا من جبرئيل اسند الله تعالى النفخ الى نفسه او لان افعال العباد مخلوقة لله تعالى "من روحنا" اى روحًا خلقناه بلا توسط زوج.

**فائده:** کلمه د من زائدة في الاثبات عند الاخفش وهو الظاهر وعند سيبوية كلمة من للتبعيض.

وَصَدَّقَتْ بِكَلِمَاتِ رَبِّهَا وَكُتُبِهِ وَكَانَتْ مِنَ الْقَانِتِينَ ﴿١٢﴾

او دې تصديق درلودى په کلمات سره د رب ددې (يعني بما اوحى الى الانبياء والمراد شرائع الله تعالى)

**پوهه:** چي ابو عمر او حفص "كتبه" په صيغه د جمع وايي كما في المصاحف المطبوعة. نو مراد ځني تول کتب منزله دي فهو كعطف التفسير

بكلمات ربها، او باقي قراء يې په صيغه د افراد يعني كتابه وايي، والمراد به ما كتب في اللوح المحفوظ يا جنس الكتب المنزلة "وكانت من القانتين" يعني له جمله ځخه مواظبين على الطاعات.

**پوښتنه:** دا خو ښځه وه نو جمع خو يې قانتات ده نو جمع مذكر يې د څه حكمت لپاره راوړه؟

**ځواب:** يا لپاره د تغليب د جمع مذكر راوړه يا لپاره د تنبيه پر دې چي كه دا ښځه وه لكن په عبادت كي تر رجال كاملانو كمه نه وه، وعن ابى موسىٰؓ قال قال رسول اللهﷺ كمل من الرجال كثير.

**درويش وايي:** چي مراد د كمال مطلق كمال دى لا كمال النبوة خاصة و الا يلزم النبوة في النساء في قولهؒ ولم يكمل من النساء الا اسية امرئة فرعون و مريم بنت عمران، و ان فضل عائشةؓ على النساء كفضل الثريد (ښوروا) على سائر الطعام، رواه الشيخان اى البخاري و مسلم في الصحيحين والترمذي وابن ماجه وابو نعيمؒ.

او الثعلبي او ابو نعيمؒ په حلية كي داسي روايت كړى دى كمل من الرجال كثير ولم يكمل من النساء الا اربع:

(۱) آسية بن مزاحمؓ امرئة فرعون.

(۲) مريم بنت عمرانؓ.

(۳) خديجة بنت خويلدؓ.

(۴) و فاطمة بنت محمدﷺ.

**درويش وايي:** چي مظهريؒ ويلي دي چي مراد له كمال ځخه البلوغ الى كمالات النبوة فما فوقها انتهى، دا خبره دده عقل او نقل دواړه ردوي كما لايخفى فكيف صدر منه مع انه تابع للسنة النبوية شايد په دې خبره كي به ده د چا متابعت كړى وي، وروى عن ام سلمةؓ ان رسول اللهﷺ دعا فاطمةؓ في مرضه التي مات فيه، نو يوه پټه خبره يې ورته وكړه چي فاطمهؓ وژړل. بيا يې پټه خبره ورته وكړه فاطمهؓ وخندل، فلما توفى رسول اللهﷺ ام سلمةؓ وايي چي ما سبب د ژړا او وروسته د خندا وپوښتى فاطمهؓ راته وويل چي عليه الصلوة والسلام راته وويل

چي زه له دې مرضه څخه مرم، نو ما وژړل، وروسته يې راته وويل چي انت سيدة النساء اهل الجنة الا مريم بنت عمرانؑ فضحكت نو ما وخندل.

**درویش وايي:** چي هغه ښځي چي په حديثو كي تاسي واورېدلې هغه خو تر ټولو نساؤ افضلي دي بلا ريب، او د دوی تر منځ د فضيلت علم و خدایﷻ ته وسپاري عقل په دې لار كي ځای نه لري.

**درویش وايي:** چي بحمد الله وحسن توفيقه تفسير د (۲۸) جزء يعني قد سمع الله د دوشنبې په ورځ د ماپښين په وخت كي چي د جمادي الاول اخيري نېټه وه سنه (۱۴۳۳ هجري قمري) پای ته ورسېدی ....... بيت:

د فقير زړه ورځ په ورځ خوشحاله كېږي .... چي تفسير يې و اخير ته نژدې كېږي
دا تفسير زما د عمر سرمايه ده .... نقود څه كوم و بل ته به پاتېږي

سعدي شيرازي قدس سره چه خوش گفته:

تو با خود ببر توشهٔ خويشتن .... كه شفقت نيايد ز فرزند و زن

هغه ورځ به زما د خوشحالۍ وي .... چي تفسير پر والناس باندي درېږي
تفسير د كلام الله لكه باران دی .... په دې باران سره د زړه مځكه اوبېږي

روز محشر كه آيد تصوير جانان دربغل
من نيز حاضر ميشوم تفسير قرآن دربغل

الحمد لله الذي وفقني لتفسير (۲۸) من اجزاء القرآن الكريم والصلوة والسلام على رسوله الكريم وعلى آله وصحبه اجمين.



تفسير ايوبي حنفي د نصيراحمد احمدي لخوا سكين او pdf سو. د دعا په هيله احمدي! واتساپ ۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹

# د تفسير ايوبي د مضامينو فهرست

تفسیر ایوبي حنفي۱۷ ټوک

د نصیراحمد احمدي لـخوا

سکین او pdf سـو.

تاریخ. ۱۳۹۹-۴-۲۲

واتساپ۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹

د دعــا پــه هیله احـمـدي!